سُوْرَةُ بَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ مَکِّیَّةٌ وَّهِیَ مِائَةٌ وَّ
سورۃ بنی اسرآءیل په مکه کښے نازل شو

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ
(شروع) دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے

اِحْدٰی عَشْرَةَ اٰیَةً وَّاثْنَا عَشَرَ رُکُوْعًا
په دے کښے ۱۱۱ ایتونه او ۱۲ رکوع گانې

شروع کوم دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات دَ رحم خاوند دے۔

سُبْحٰنَ الَّذِیْٓ اَسْرٰی بِعَبْدِهٖ لَیْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

پاک دے | هغه ذات چه | بوئے تلو | خپل بنده | دَ شپے | له مسجد | حرام نه

(الله) هغه پاک ذات دے چه خپل بنده (محمد صلی الله علیه وسلم) ئے شپه په شپه دَ مسجدِ حرام (خانه کعبے) نه

اِلَی الْمَسْجِدِ الْاَقْصَا الَّذِیْ بٰرَکْنَا حَوْلَهٗ لِنُرِیَهٗ

طرف دَ مسجد اقصیٰ ته | هغه کوم له چه | برکت ورکړو مونږ | چارچاپیره دَ هغے | چه وښایو مونږ دهٔ ته

مسجد اقصیٰ (بیت المقدس) ته بوتلو چه دَ هغے گیرچاپیره (علاقے) له مونږ برکتونه ورکړی دی چه مونږ دهٔ ته خپلے

مِنْ اٰیٰتِنَا ؕ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِیْعُ الْبَصِیْرُ ① وَاٰتَیْنَا مُوْسَی الْکِتٰبَ وَجَعَلْنٰهُ

خپلے نخښے | بیشکه هغه | آورېدونکے | لیدونکے دے | او ورکړو مونږ | موسیٰ ته | کتاب | او مونږ جوړ کړو هغه

نخښے وښایو، بیشکه الله تعالیٰ آورېدونکے او لیدونکے دے او مونږ موسیٰ له کتاب ورکړو او دا (کتاب) مونږ

هُدًی لِّبَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ اَلَّا تَتَّخِذُوْا مِنْ دُوْنِیْ وَکِیْلًا ② ذُرِّیَّةَ مَنْ

هدایت | بنی اسرائیلو دَ پاره | چه تاسو مهٔ نیسئ | بے له مانه | څوک کارساز | اے اولاده! دَ هغه چا

بنی اسرائیلو دَ پاره دَ هدایت ذریعه گرځولے وه چه (خبردار) زمانه بغیر بل هیڅوک خپل کارساز ونهٔ گڼئ، اے دَ هغه چا اولاده

حَمَلْنَا مَعَ نُوْحٍ ؕ اِنَّهٗ کَانَ عَبْدًا شَکُوْرًا ③ وَقَضَیْنَآ

مونږ سواره کړل | دَ نوح سره | بیشکه هغه ؤ | بنده | شکرگزار | او لیکلی وو مونږ

چه مونږ دَ نوح سره (په کشتئ کښے) سواره کړی وئ، بیشکه نوح یو شکرگزار بنده وو۔ او مونږ بنی اسرائیلو ته په

اِلٰی بَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ فِی الْکِتٰبِ لَتُفْسِدُنَّ فِی الْاَرْضِ مَرَّتَیْنِ

بنی اسرائیلو دَ پاره | په کتاب کښے | چه تاسو به فساد کوئ | په زمکه کښے | دوه ځله

خپل کتاب کښے دا خبره په گوته کړے وه چه تاسو به په ملک کښے دوه ځله فساد کوئ

وَلَتَعْلُنَّ عُلُوًّا کَبِیْرًا ④ فَاِذَا جَآءَ وَعْدُ اُوْلٰىهُمَا بَعَثْنَا

او تاسو به خامخا سرکشی کوئ | سرکشی لویه | پس هرکله چه راشی | (وخت دَ) وعدے | په دواړو کښے د وړومبئ | نو را ولیږو مونږ

او ډیره سرکشی به کوئ، پس هر کله چه په دوؤ کښے دَ وړومبئ وعدے (دَ پوره کیدو) وخت راغے

عَلَیْکُمْ عِبَادًا لَّنَآ اُولِیْ بَاْسٍ شَدِیْدٍ فَجَاسُوْا خِلٰلَ الدِّیَارِ ؕ

په تاسو باندې | خپل بندگان | جنگیالی | سخت | پس دوی به ورننوځی | په مینځ دَ کورونو کښے

نو مونږ په تاسو باندې خپل داسے بندیان ولگو مارل چه هغوئ ډیر جنگیالی وو، نو ستاسو په کورونو دننوتل او دا یوه

وَکَانَ وَعْدًا مَّفْعُوْلًا ⑤ ثُمَّ رَدَدْنَا لَکُمُ الْکَرَّةَ عَلَیْهِمْ وَاَمْدَدْنٰکُمْ

او دا یوه وعده وه | چه پوره کیدونکے وه | بیا مونږ درکړله | تاسو ته | غلبه | په دوی باندې | او مونږ تاسو له مدد درکړو

داسے وعده وه چه خامخا به پوره کیدله۔ بیا مونږ (دوباره) تاسو له په هغوئ باندې غلبه درکړله او په مالونو او په

بِاَمْوَالٍ وَّبَنِيْنَ وَجَعَلْنٰكُمْ اَكْثَرَ نَفِيْرًا ۝٦ اِنْ اَحْسَنْتُمْ اَحْسَنْتُمْ

په مالونو | او ځامنو نو سره | او مونږ جوړ کړئ تاسو | زيات | لښکر | که چرے نيکي وکړه تاسو | نو نيکي مو وکړه

ځامنو مو ستاسو امداد وکړو او تاسو نه مو يو لوئے ټولے جوړ کړو ۔ که تاسو ښه کړئ نو خپل ځان د پاره

لِاَنْفُسِكُمْ ۟ وَاِنْ اَسَاْتُمْ فَلَهَا ۭ فَاِذَا جَآءَ وَعْدُ الْاٰخِرَةِ

د خپلو ځانونو د پاره | او که چرے تاسو بدی وکړه | نو خپلو ځانونو د پاره | بيا هر کله چه راغے | (وخت) د دويم وعدے

ښه کوئ ، او که بد کوئ نو ځان سره به بد کوئ ، نو بيا چه د دويمے ښيتي وخت راغے

لِيَسُوْۗءٗا وُجُوْهَكُمْ وَلِيَدْخُلُوا الْمَسْجِدَ كَمَا دَخَلُوْهُ اَوَّلَ مَرَّةٍ

چه دوی وران کړی | مخونه ستاسو | او چه دوی داخل شي | جومات ته | څنګه چه دوی داخل شوی وو | په اول ځل

چه هغه (دښمن) ستاسو مخونه وران کړی او هغوی په مسجدِ (اقصٰی) کښے ورننوځي لکه چه هغوی په اول ځل ورننوتی

وَّلِيُتَبِّرُوْا مَا عَلَوْا تَتْبِيْرًا ۝٧ عَسٰى رَبُّكُمْ اَنْ يَّرْحَمَكُمْ ۚ

او چه تس نس کړی | کوم ځائے چه غلبه بيا مومي | په پوره تس نس کولو سره | اُميد دے چه | ستاسو رب | هغه به رحم وکړی په تاسو

وو او دا چه کوم ځائے غلبه بيا مومي هغه پوره برباد کړی ۔ اميد دے چه ستاسو رب به تاسو رحم وکړی

وَاِنْ عُدْتُّمْ عُدْنَا ۘ وَجَعَلْنَا جَهَنَّمَ لِلْكٰفِرِيْنَ

او که چرے | تاسو را واپس کيږئ | نو مونږ به هم را واپس شو | او جوړ کړو مونږ | دوزخ | کافرانو د پاره

او که تاسو بيا هغه څه وکړل نو مونږ به هم هغه کوو او مونږ دوزخ کافرانو د پاره قيد خانه جوړه

حَصِيْرًا ۝٨ اِنَّ هٰذَا الْقُرْاٰنَ يَهْدِيْ لِلَّتِيْ هِيَ اَقْوَمُ وَيُبَشِّرُ

قيد خانه | بيشکه دا | قرآن | لاره ښائي | هغه کومه چه | د ټولو نه نيغه ده | او زيرے ورکوی

کړے ده ۔ بيشکه دا قرآن هغه لاره ښائي کومه چه بالکل نيغه ده ، او کوم ايماندار

الْمُؤْمِنِيْنَ الَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ الصّٰلِحٰتِ اَنَّ لَهُمْ اَجْرًا كَبِيْرًا ۝٩ۙ

مؤمنانو ته | هغه کوم چه | عمل کوی | ښه | چه بيشکه دوی له | اجر دے | لوئے

چه نيک کارونه کوی هغوی ته زيرے ورکوی چه د هغوی د پاره ډير لوئے اجر مقرر دے ۔

وَّاَنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ اَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ۝١٠ۧ

او دا چه کوم خلق | ايمان نه راوړی | په آخرت | مونږ تيار کړے دے | هغوی د پاره | عذاب | دردناک

او دا چه کوم خلق په آخرت باندِ ايمان نه راوړی مونږ هغوی د پاره دردناک عذاب تيار کړے دے

وَيَدْعُ الْاِنْسَانُ بِالشَّرِّ دُعَاۗءَهٗ بِالْخَيْرِ ۭ وَكَانَ الْاِنْسَانُ

او دُعا کوی | انسان | د بدئ | په شان د دُعا د ده | د نيکئ | او دے | انسان

او ځنے انسانان د عذاب د پاره داسے دُعا غواړی لکه چه هغه د نيکئ دُعا غواړی ، او انسان ډير تلوار کونکے

عَجُوْلًا ۝١١ وَجَعَلْنَا الَّيْلَ وَالنَّهَارَ اٰيَتَيْنِ فَمَحَوْنَآ اٰيَةَ الَّيْلِ

تلوار کونکے | او مونږ جوړے کړی دی | شپه | او ورځ | دوه نخښے | بے نوره کړه مونږ | نخښه | د شپے

دے ۔ او مونږ د شپے او د ورځے ته دوه نخښے جوړے کړی دی نو د شپے هغه نخښه موتته کړے

وَجَعَلْنَآ اٰيَةَ النَّهَارِ مُبْصِرَةً لِّتَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ

او جوړه کړه مونږ | نخښه دَ ورځې | روښانه | چه تاسو ولټوئ | فضل (روزی) | دَ رب خپل

او دَ ورځې نخښه مو روښانه کړې ده چه تاسو پکښې دَ خپل رب فضل لټولے شئ

وَلِتَعْلَمُوْا عَدَدَ السِّنِيْنَ وَالْحِسَابَ ؕ وَكُلَّ شَيْءٍ فَصَّلْنٰهُ

او چه تاسو معلوم کړئ | شمیر | دَ کلونو | او حساب | او هر څیز | مونږ بیان کړو

او چه دَ کلونو شمیر او (نور) حساب درته معلومیږی ، او هر څیز مونږ په تفصیل سره بیان

تَفْصِيْلًا ⑫ وَكُلَّ اِنْسَانٍ اَلْزَمْنٰهُ طٰٓئِرَهٗ فِيْ عُنُقِهٖ ؕ وَنُخْرِجُ

په تفصیل سره | او هر انسان | زوړند کړو مونږ | دَ ده قسمت (عملنامه) | دَ ده په غاړه کښې | او مونږ به راوباسو

کړے دے ۔ او مونږ دَ هر چا عملنامه دَ هغهٔ دَ غاړے امیل کړے دے ، او دَ قیامت په

لَهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ كِتٰبًا يَّلْقٰىهُ مَنْشُوْرًا ⑬ اِقْرَاْ كِتٰبَكَ ؕ

دَ ده دَپاره | په ورځ دَ قیامت | یو کتاب | چه وُ به موی هغه | سپړ دلے | ولوله | خپل کتاب (عملنامه)

ورځ به ورته یو عملنامه مخامخ کیږدو چه سپړدلے به ئے و وینی (او وُ به وئیلے شی) خپله عملنامه ولوله

كَفٰى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيْبًا ⑭ مَنِ اهْتَدٰى فَاِنَّمَا

کافی یئ | ته پخپله | تن ورځ | دَ خپل ځان خلاف | حساب اخستونکے | چا چه | لاره بیا مونده | نو یقینًا

نن ته دَ خپلے عملنامے دَ حساب دَ پاره په خپله کافی یئ ۔ څوک چه په سمه لاره ځی نو یقینًا دَ

يَهْتَدِيْ لِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ ضَلَّ فَاِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ؕ وَلَا تَزِرُ

هغهٔ لاره بیا مونده | خپل ځان دَ پاره | او څوک چه ګمراه شو | نو بیشکه چه ګمراه شو | خپل ځان دَ پاره | او نهٔ وچتوی پیتے

خپلے فائدے دَ پاره ځی ، او څوک چه بے لارے شی نو هغه دَ خپل نقصان دَ پاره بے لارے شی او هیڅوک به دَ

وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ؕ وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِيْنَ حَتّٰى نَبْعَثَ رَسُوْلًا ⑮

څوک پیتے وچتونکے | پیتے دَ بل | او نهٔ یو مونږ | عذاب ورکوونکی | ترڅو چه | مونږ ولیږو | څوک پیغمبر

بل پیتے نه وچتوی ، او مونږ عذاب نهٔ ورکوو ترڅو چه یو پیغمبر ونهٔ لیږو

وَاِذَآ اَرَدْنَآ اَنْ نُّهْلِكَ قَرْيَةً اَمَرْنَا مُتْرَفِيْهَا فَفَسَقُوْا فِيْهَا

او هر کله چه | مونږ وغواړو | چه مونږ هلاک کړو | یو کلے | نو مونږ حکم وکړو | دَ هغې مالدارو خلقو ته | نو هغوئ نافرمانی وکړه په دے کښې

او هر کله چه مونږ اراده وکړو چه یو کلے دِ هلاک کړو نو دَ هغه ځائے مالدارو خلقو ته حکم وکړو نو (دَ حکمونو منلو په ځائے) هغوی

فَحَقَّ عَلَيْهَا الْقَوْلُ فَدَمَّرْنٰهَا تَدْمِيْرًا ⑯ وَكَمْ اَهْلَكْنَا

بیا ثابته شوه په هغوی باندې | خبره (دَ عذاب) | پس هلاک کړل مونږ هغوی | په پوره شان هلاک | او څومره | مونږ هلاک کړل

پکښې ورانی شروع کړی نو دَ عذاب تا په پرے ولګی نو مونږ هغه تباه او برباد کړو او مونږ څومره (ډیر) اُمتونه

مِنَ الْقُرُوْنِ مِنْۢ بَعْدِ نُوْحٍ ؕ وَكَفٰى بِرَبِّكَ بِذُنُوْبِ عِبَادِهٖ

کلی | دَ نوح ؑ نه پس | او کافی دے | ستا رب | په ګناهونو | دَ بندګانو خپلو

دَ نوح علیه السلام نه پس هلاک کړی دی ، او دا کافی ده چه ستا رب دَ خپلو بندګانو دَ ګناهونو نه

خَبِيْرًاۢ بَصِيْرًا ﴿١٧﴾ مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهٗ فِيْهَا

خبردار | بینا | څوک چه | غواړی | په تلوارۍ (په دنیا کښے) | مونږ به ژر ورکړو | هغهٔ ته | په دے (دنیا) کښے

خبردے او هرڅهٔ وینی ګوری ی څوک چه په تلوارۍ دَ دنیا (ګټو) خواهش لری مونږ به ورله په تلوارۍ په دنیا کښے

مَا نَشَآءُ لِمَنْ نُّرِيْدُ ثُمَّ جَعَلْنَا لَهٗ جَهَنَّمَ ۚ يَصْلٰهَا

څومره چه مونږ وغواړو | چا دَ پاره | چه مونږ دغواړو | بیا | مونږ مقرر کړے دے | هغهٔ دَ پاره | دوزخ | هغه به داخلیږی پدے کښے

ورکړو څومره چه دغواړو او دَ چا په حقله چه دغواړو ، خو بیا به ورله دوزخ تیار کړو چه په هغے کښے به بدحاله

مَذْمُوْمًا مَّدْحُوْرًا ﴿١٨﴾ وَمَنْ اَرَادَ الْاٰخِرَةَ وَسَعٰى لَهَا سَعْيَهَا

بدحاله | شړلے شوے | او څوک چه غواړی | آخرت | او کوشش وکړو هغهٔ | دِ دے دَ پاره | دَ دے مناسب کوشش

او بد حاله ورننوځی ۔ او څوک چه دَ آخرت خواهش ساتی او هغے له دَ هغے په مناسب کوشش کوی

وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ كَانَ سَعْيُهُمْ مَّشْكُوْرًا ﴿١٩﴾ كُلًّا نُّمِدُّ هٰٓؤُلَآءِ

او دے مؤمن وی | پس هم داخلق دی | چه کوشش دَ دوی | قبول شو | هر یو له | مونږ ورکوو | دوی ته هم

او مؤمن هم وی ، نو دَ داسے خلقو کوششونه به مقبول وی ۔ مونږ دَ هر چا امداد کوو دَ دوی هم

وَهٰٓؤُلَآءِ مِنْ عَطَآءِ رَبِّكَ ۭ وَمَا كَانَ عَطَآءُ رَبِّكَ مَحْظُوْرًا ﴿٢٠﴾

او دوی ته هم | له بخشش | دَ رب ستا نه | او نهٔ دے | بخشش | ستا دَ رب | منع شوے

او دَ هغوی هم دا ستا دَ رب ورکړه ده ، او ستا دَ رب ورکړه په چا بنده نهٔ ده ۔

اُنْظُرْ كَيْفَ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ ۭ وَلَلْاٰخِرَةُ اَكْبَرُ دَرَجٰتٍ

وګوره | چه څنګه | مونږ فضیلت ورکړو | څنو له | په څنو بانډِ | او خامخا آخرت دے | لویو درجو والا

ته وګوره ! چه مونږ دوئ له څنګه په یو بل بانډِ (په دنیا کښے) فضیلت ورکړے دے او البته دَ آخرت درجے دَ ټولو نه لوئے

وَّاَكْبَرُ تَفْضِيْلًا ﴿٢١﴾ لَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ فَتَقْعُدَ مَذْمُوْمًا

او ډیر لوئے | په فضیلت کښے | مهٔ مقرروه | دَ الله سره | څوک بل معبود | پس ته به کښینے | بدحاله

او په فضیلت کښے دَ ټولو نه زیاتے دی ۔ الله سره څوک بل معبود مهٔ جوړوه ، کنی بد حاله بے مدد ګاره به

مَّخْذُوْلًا ﴿٢٢﴾ ۧ وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ

بے مدد ګاره | او حکم کړے دے | ستا رب | چه عبادت مهٔ کوئ | مګر صرف دَ هغهٔ | او مور پلار سره

ناست پاتے شے ۔ او ستا رب دا حکم کړے دے چه بے دَ هغهٔ نه دَ بل هیچا عبادت مهٔ کوئ او مور پلار سره

اِحْسَانًا ۭ اِمَّا يَبْلُغَنَّ عِنْدَكَ الْكِبَرَ اَحَدُهُمَآ اَوْ كِلٰهُمَا

احسان کوئ | که چرے دوی ورسیږی | تا سره | بوډاوالی ته | یو له دوی نه | یا دوی دواړه

ښهٔ سلوک سانئ ، کهٔ په دوئ کښے یو یا هغه دواړه ستا په وړاندِ بوډاوالی ته ورسیږی

فَلَا تَقُلْ لَّهُمَآ اُفٍّ وَّلَا تَنْهَرْهُمَا وَقُلْ لَّهُمَا قَوْلًا

پس مهٔ وایه | دوی ته | اُف (هم) | او رټنه مهٔ کوه دوی ته | او وایه | دوی ته | خبره

نو تا سو دوئ ته اُف قدر له هم ونهٔ کړئ او دوی مهٔ رټئ او دوی سره په نرمئ خبره

كَرِيمًا ﴿٢٣﴾ وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ وَقُل

ښه | او ښکته کړه | دوی دپاره | مټې | دعاجزئ | له مهربانئ نه | او ووایه

کوه ـ او دهغوئ په وړاندې په مینه محبت سره دعاجزئ نه ټیټ وسیږه ، او داسے وایه چه

رَّبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيَانِي صَغِيرًا ﴿٢٤﴾ رَبُّكُمْ أَعْلَمُ

اے ربه زما! | په دے دواړو رحم وکړه | لکه څنګه | چه دوی زه پاللے یم | په وړوکوالی کښے | ستاسو رب | ښه پوهیږی

اے زماربه ! په دے دواړو باندې رحم وکړه لکه چه دوی په وړوکوالی کښے زما پالنه کړے ده ، څه چه ستاسو په

بِمَا فِي نُفُوسِكُمْ ۚ إِن تَكُونُوا صَالِحِينَ فَإِنَّهُ كَانَ لِلْأَوَّابِينَ

په هغه څه | چه ستاسو په زړونو کښے دی | که چرے یئ تاسو | نیکان | نو بیشکه هغه | دے | رجوع کوونکو دپاره

زړونو کښے دی ستاسو رب ته ښه معلوم دی ـ که تاسو نیکان یئ ، نو هغه د توبے ایستونکو خلقو د پاره

غَفُورًا ﴿٢٥﴾ وَآتِ ذَا الْقُرْبَىٰ حَقَّهُ وَالْمِسْكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ

بخښونکے | او ورکړه | رشته دارته | حق دهغهٔ | او مسکین | او مسافرته

بخښونکے دے ـ او رشته دار ، محتاج او مسافر ته دهغوئ حق ورکړه

وَلَا تُبَذِّرْ تَبْذِيرًا ﴿٢٦﴾ إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُوا إِخْوَانَ الشَّيَاطِينِ ۖ

او فضول خرڅی مهٔ کوه | په فضول خرڅئ کولو سره | بیشکه فضول خرڅ کوونکی | دی | ورونړه | دشیطانانو

او مال بے ځایه مهٔ الوزوه ـ بیشکه فضول خرڅه خلق د شیطانانو ورونړه دی

وَكَانَ الشَّيْطَانُ لِرَبِّهِ كَفُورًا ﴿٢٧﴾ وَإِمَّا تُعْرِضَنَّ عَنْهُمُ

او دے | شیطان | دخپل رب | ناشکره | او که چرے ته مخ واړوے | له دوی نه

او شیطان د خپل رب ډیر زیات ناشکره دے او که چرے ته له دوی نه څنګ کوے د پاره

ابْتِغَاءَ رَحْمَةٍ مِّن رَّبِّكَ تَرْجُوهَا فَقُل لَّهُمْ قَوْلًا

په انتظار کښے | د رحمت | دخپل رب | چه ته اُمید کوے دهغے | نو وایه | هغوئ ته | خبره

د دے چه ستا د رب له طرف نه هغه فراخی راشی چه ستا ورته اُمید وی نو هغوئ ته په نرمئ سره جواب

مَّيْسُورًا ﴿٢٨﴾ وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُولَةً إِلَىٰ عُنُقِكَ وَلَا تَبْسُطْهَا

په نرمئ | او مهٔ ساته | خپل لاس | تړلے | خپل څټ پورے | او مهٔ خوروه هغه

ورکوه ـ او خپل لاس خپل څټ پورے تړلے مهٔ ساته (یعنی شوم مهٔ جوړیږه) ، او نه ئے بالکل پرانستی

كُلَّ الْبَسْطِ فَتَقْعُدَ مَلُومًا مَّحْسُورًا ﴿٢٩﴾ إِنَّ رَبَّكَ يَبْسُطُ

په پوره خوروولو سره | پس ته به کښینے | ملامته | تش لاسے | بیشکه ستا رب | فراخه کوی

چلوه ، کنی ملامته تش تور لاس به ناست پاتے شے ، بیشکه ستا رب چا د پاره چه غواړی

الرِّزْقَ لِمَن يَشَاءُ وَيَقْدِرُ ۚ إِنَّهُ كَانَ بِعِبَادِهِ

روزی | چا د پاره چه غواړی | او تنګوی | بیشکه هغه | دے | په خپلو بندګانو

رزق فراخه کوی او (چا د پاره چه غواړی) تنګوی ـ بقیناً هغه له خپلو بندګانو نه ښه

خَبِيرًا بَصِيرًا ﴿٣٠﴾ وَلَا تَقْتُلُوٓا أَوْلَادَكُمْ خَشْيَةَ إِمْلَاقٍ

خبردار | دانا | او مهٔ وژنئ تاسو | اولاد خپل | له ويرے | دَ تنګدستئ نه

خبردے او هر څهٔ وينې کوري ، او خپل اولاد دَ غريبئ دَ ويرے نه مهٔ وژنئ ،

نَّحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَإِيَّاكُمْ ۚ إِنَّ قَتْلَهُمْ كَانَ خِطْـًٔا كَبِيرًا ﴿٣١﴾

مونږ | روزي ورکوؤ دوی ته | او تاسو ته (هم) | بيشکه دَ دوی وژل | دَه | ګناه | لويه

مونږ هغوئ له هم روزي ورکوؤ او تاسو له هم ، بيشکه دَ دوئ وژل ډير غټ جرم دے

وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَىٰٓ ۖ إِنَّهُۥ كَانَ فَاحِشَةً وَسَآءَ سَبِيلًا ﴿٣٢﴾

او مهٔ نزدے کيږئ | زنا ته | بيشکه دا | دَه | بے حيائي | او بده | لار ده

او دَ زنا خوا ته هم مهٔ ورنزدے کيږئ دا غټه بے شرمي ده او ډيره خرابه لار ده.

وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِى حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ ۗ

او مهٔ وژنئ | (هغه) نفس | کوم چه حرام کړے دے | الله | مګر | په حق سره

او هغه نفس مهٔ وژنئ دَ کوم (وژل) چه الله تعالیٰ حرام کړی دی مګر په جائزه

وَمَن قُتِلَ مَظْلُومًا فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهِۦ سُلْطَٰنًا

او څوک چه ووژلے شو | په ظلم سره | پس مونږ ورکړے دے | دَ دهٔ وارث ته | قوت (اختيار)

او څوک چه برناحقه ووژلے شي نو مونږ دَ هغهٔ وارث ته اختيار (دَ قصاص) ورکړے دے

فَلَا يُسْرِف فِّى الْقَتْلِ ۖ إِنَّهُۥ كَانَ مَنصُورًا ﴿٣٣﴾ وَلَا تَقْرَبُوا

پس زياتے دِ نهٔ کوی | په وژلو کښے | بيشکه دَ دهٔ | به مدد کولے شي | او مهٔ نزدے کيږئ

نو دهٔ له پکار دی چه (دَ قاتل) په وژلو کښے زياتے نهٔ کوی دے چه دهٔ ته مدد ورکړے شوے دے. او دَ يتيم مال ته

مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِى هِىَ أَحْسَنُ حَتَّىٰ يَبْلُغَ

مال | دَ يتيم ته | مګر په هغه طريقه | چه هغه | دَ ټولو نه ښه وی | تر دے چه | هغه ورسيږی

نزدے هم مهٔ ځئ مګر صرف په هغه طريقه چه دَ دهٔ په حق کښے غوره وی تر دے چه هغه پوخ عمر

أَشُدَّهُۥ ۚ وَأَوْفُوا بِالْعَهْدِ ۖ إِنَّ الْعَهْدَ كَانَ مَسْـُٔولًا ﴿٣٤﴾ وَأَوْفُوا

خپلے ځوانئ ته | او پوره کوئ | وعده | بيشکه | دَ وعدے به | تپوس کولے شي | او پوره ورکوئ

ته ورسيږی او دَ وعدے پابندی سانئ بيشکه دَ وعدے په حقله به تپوس پوښتنه کيږی، او چه (څه)

الْكَيْلَ إِذَا كِلْتُمْ وَزِنُوا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيمِ ۚ ذَٰلِكَ خَيْرٌ

پيمانه | هر کله چه تاسو پيمانه کوئ | او تول کوئ | په تله | سمه | دا | بهتره

پيمانه کوئ نو پوره پوره ئے پيمانه کوئ او (چه تول کوئ نو) په سمه برابره تله بانډِ تول کوئ دا ډير غوره دے

وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا ﴿٣٥﴾ وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ ۚ

او ډيره ښهٔ ده | په لحاظ دَ انجام | او مهٔ ځه | هغه څيز پسے چه نشته دے | تا ته | دَ هغې څهٔ | علم

او دَ انجام په لحاظ سره دَ ټولو نه ښهٔ دے. او په هغه خبرے پسے مهٔ ځه دَ کومے چه تا ته (پوخ) علم نهٔ وی

إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولَٰئِكَ كَانَ عَنْهُ

بیشکه | غوږ | او سترګه | او زړه | دغه ټول | له ده نه

بیشکه د غوږونو، سترګو او د زړه د دې ټولو څیزونو په حقله به د هرچا نه پوښتنه

مَسْئُولًا ﴿٣٦﴾ وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا ۖ إِنَّكَ لَنْ تَخْرِقَ

پوښتنه کیږي | او تلل مه کوه | په زمکه کښې | په غرور سره | بیشکه ته | هیڅ کله نه شې شلولے

کیږي۔ او د زمکے په مخ ایغ نیغ مه ګرځه ته خو نه زمکه شلولے

الْأَرْضَ وَلَنْ تَبْلُغَ الْجِبَالَ طُولًا ﴿٣٧﴾ كُلُّ ذَٰلِكَ كَانَ سَيِّئُهُ

زمکه | او هیڅ کله نه شې رسیدلے | غرونو ته | په اوږدوالی کښې | دا ټول | خراب کارونه

شے او نه په اوږدوالی کښې غرونو ته رسیدلے شے۔ دا ټول خراب کارونه ستا د رب په

عِنْدَ رَبِّكَ مَكْرُوهًا ﴿٣٨﴾ ذَٰلِكَ مِمَّا أَوْحَىٰ إِلَيْكَ رَبُّكَ

ستا د رب په نزد | ناخوښه دی | دا (په هغه خبرو) کښې دی | چه وحی رالیږلے ده | ستا طرف ته | ستا رب

نزد بالکل ناخوښه دی۔ دا (ټولے) خبرے په هغه حکمت کښې شمیردی چه ستا پروردګار

مِنَ الْحِكْمَةِ ۗ وَلَا تَجْعَلْ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ فَتُلْقَىٰ

له حکمت نه | او مه جوړوه | د الله سره | څوک بل معبود | چه بیا ته وغورزولے شے

تاته رالیږلے دے۔ او د الله تعالیٰ سره بل معبود مه شریکوه، ګنی په دوزخ کښې

فِي جَهَنَّمَ مَلُومًا مَدْحُورًا ﴿٣٩﴾ أَفَأَصْفَاكُمْ رَبُّكُمْ بِالْبَنِينَ

په دوزخ کښې | ملامته شوے | شړلے شوے | آیا غوره کړی یئ تاسو | ستاسو رب | ځامنو د پاره

به ملامته او ذلیل ګورزولے شے۔ (اے مشرکانو!) آیا ستاسو رب تاسو له خو ځامن درکړل

وَاتَّخَذَ مِنَ الْمَلَائِكَةِ إِنَاثًا ۚ إِنَّكُمْ لَتَقُولُونَ قَوْلًا عَظِيمًا ﴿٤٠﴾

او نیولی ئے دی | فرښتے (ځان د پاره) | لونړه | بیشکه تاسو | البته وایئ | خبره ډیره (سخته)

او ځپله هغه (ځان له) فرښتے لونړه جوړے کړی دی؟ بیشکه تاسو ډیره سخته خبره کوئ۔

وَلَقَدْ صَرَّفْنَا فِي هَٰذَا الْقُرْآنِ لِيَذَّكَّرُوا وَمَا يَزِيدُهُمْ

او یقیناً مونږ په رنګ رنګ بیان کړے دے | په دے قرآن کښې | چه دوی نصیحت حاصل کړی | او نه زیاتوی دوی (دا قرآن)

او مونږ په دے قرآن کښې (د توحید مضمون) په رنګ رنګ بیان کړے دے چه دوئ پرے پوهه شی۔ مګر (د دے نه خو

إِلَّا نُفُورًا ﴿٤١﴾ قُلْ لَوْ كَانَ مَعَهُ آلِهَةٌ كَمَا يَقُولُونَ

مګر | په نفرت کښې | ووایه | که چرے وے | هغه سره | نور معبودان | لکه څنګه چه | دوی وائی

د دوی (کفارو) نفرت نور زیاتیږی۔ ورته ووایه که چرے الله تعالیٰ سره نور معبودان هم وے لکه چه دوی وائی

إِذًا لَابْتَغَوْا إِلَىٰ ذِي الْعَرْشِ سَبِيلًا ﴿٤٢﴾ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ

نو دغه وخت به | دوی ضرور لټولے وه | د عرش د مالک طرف ته | څه لاره | پاک دے هغه | او اوچت دے

نو په دے صورت کښې به دوی د عرش د مالک طرف ته ضرور څه لاره لټولے وه۔ هغه د داسے خبرو نه پاک دے

عَمَّا يَقُولُونَ عُلُوًّا كَبِيرًا ﴿٤٣﴾ تُسَبِّحُ لَهُ السَّمٰوٰتُ السَّبْعُ

له هغه څه نه | چه دوی وائی | په اوچتوالی | لوئے سره | پاکی بیانوی | دَ هغهٔ | آسمانونه | اووهٔ واړه

او څهٔ چه داخلق وائی له هغے نه هغه زیات اُوچت او لوئے دے۔ اُووهٔ آسمانونه او زمکه او هغه ټول څیزونه

وَالْأَرْضُ وَمَنْ فِيهِنَّ ۚ وَإِنْ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ

او زمکه | او هر هغه څهٔ چه په دے کښے دی | او نهٔ دے | هیڅ څیز | مګر پاکی بیانوی | دَ هغهٔ په حمد سره

چه په دے کښے آباد دی دَ هغهٔ پاکی بیانوی او داسے څیز نشته چه هغه دَ الله دَ تعریف سره دَ هغهٔ پاکی

وَلٰكِنْ لَا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ ۗ إِنَّهُ كَانَ حَلِيمًا غَفُورًا ﴿٤٤﴾

لیکن | تاسو نهٔ پوهیږئ | په تسبیح یادولو دَ دوئ | بیشکه هغه | دے | دَ زغم خاوند | بخښونکے

نهٔ بیانوی، خو تاسو دَ هغوئ په تسبیح نهٔ پوهیږئ، بیشکه هغه ډیر حلیم (او) بخښونکے دے.

وَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ جَعَلْنَا بَيْنَكَ وَبَيْنَ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ

او هر کله چه لولے تهٔ | قرآن | مونږ کوُو | په مینځ ستنا | او په مینځ دَ هغه چا کښے | چه ایمان نهٔ راوړی

او هر کله چه تهٔ قرآن لولے، نو مونږ ستا او دَ هغے خلقو ترمینځهٔ چه په آخرت باندِ ایمان نهٔ

بِالْآخِرَةِ حِجَابًا مَسْتُورًا ﴿٤٥﴾ وَجَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً

په آخرت | بوه پرده | پټه | او مونږ غورزولی دی | دَ دوی په زړونو | پردے

راوړی یوه پټه پرده راواچوُو۔ او مونږ دَ هغوئ په زړونو داسے پردے واچوو چه

أَنْ يَفْقَهُوهُ وَفِي آذَانِهِمْ وَقْرًا ۚ وَإِذَا ذَكَرْتَ رَبَّكَ

چه دوئ پوهه نهٔ شی په دے | او دَ دوی په غوږونو کښے | درون والے | او هر کله چه | تهٔ یادوے | خپل رب

هغوی پرے پوهه نهٔ شی او دَ هغوئ په غوږونو کښے درون والے پیدا کوُو، او هر کله چه تهٔ په قرآن کښے یوازے

فِي الْقُرْآنِ وَحْدَهُ وَلَّوْا عَلَىٰ أَدْبَارِهِمْ نُفُورًا ﴿٤٦﴾ نَحْنُ أَعْلَمُ

په قرآن کښے | یوازے | نو دوی ګرځی | په شا کانو خپلو | په نفرت | مونږ ښهٔ پوهه یُو

دَ خپل رب ذکر کوے، نو هغوئ وړنه شاکړی او په نفرت سره ترے نه روان شی، مونږ ته ښهٔ معلومه

بِمَا يَسْتَمِعُونَ بِهِ إِذْ يَسْتَمِعُونَ إِلَيْكَ وَإِذْ هُمْ

په کوم غرض چه | دوی آوری | دا | هر کله چه | دوی غوږ ږدی | ستا طرف ته | او هر کله چه دوی

ده چه دَ کوم غرض دَ پاره داخلق آوُریدل نه کوی، څهٔ وخت چه دوئ تا ته غوږ ونه نیسی او څهٔ وخت چه دوئ

نَجْوَىٰ إِذْ يَقُولُ الظَّالِمُونَ إِنْ تَتَّبِعُونَ إِلَّا

پټے پټے صلاح مکلے کوی | هر کله چه | وائی | ظالمان | چه تاسو پیروی نهٔ کوئ | مګر

په خپل مینځ کښے پټے پټے صلاح مکلے کوی کوم وخت چه دا ظالمان وائی چه تاسو خو په یو داسے سړی پسے روان

رَجُلًا مَسْحُورًا ﴿٤٧﴾ انْظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوا لَكَ الْأَمْثَالَ

دَ یو سړی | چه په هغهٔ جادو شوے دے | وګوره | چه څنګه | بیانوی | تا دَ پاره | مثالونه

یئی چه دَ جادو عمل پرے شوے دے، ګوره کنه! چه دا خلق تا دَ پاره څنګه څنګه مثالونه بیانوی

فَضَلُّوا فَلَا يَسْتَطِيعُونَ سَبِيلًا ﴿٤٨﴾ وَقَالُوا أَإِذَا كُنَّا

پس دوی بے لارې شول | پس دوی نهٔ شی موندلے | لاره | او دوی وائی | آیا هرکله چه مونږ شو

نو دوئ بخپله گمراه شوی دی او سمه لار موندلے نهٔ شی. او دوی وائی چه آیا هرکله مونږ هډوکی او ډیرا

عِظَامًا وَرُفَاتًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ خَلْقًا جَدِيدًا ﴿٤٩﴾ قُلْ

هډوکی | او چوره | آیا مونږ به | بیا راپاڅولے شو؟ | پیدایښت | نوی کښې | ووایه

چوره شو نو دَ نوی سری به بیا راپیدا کیږو او بیا به راتولیږو؟ ورته ووایه

كُونُوا حِجَارَةً أَوْ حَدِيدًا ﴿٥٠﴾ أَوْ خَلْقًا مِمَّا يَكْبُرُ

شئ تاسو | کانړی | یا اوسپنه | یا یو بل څهٔ څیز | له هغه څهٔ نه | چه لوئے وی

چه تاسو کانړی شئ یا اوسپنه شئ. یا څهٔ بل سخت څیز چه ستاسو په خیال کښے (دَ هغے ژوندی کیدل)

فِي صُدُورِكُمْ ۚ فَسَيَقُولُونَ مَنْ يُعِيدُنَا ۖ قُلِ الَّذِي فَطَرَكُمْ

ستاسو په سینو (زړونو) کښے | بیا زر به دوی وائی | خوک به | مونږ بیا پیدا کړی؟ | ووایه | هغه کوم چه | تاسو پیدا کړی

ډیر گران وی نو دوی به ضرور ووائی چه بیا به مونږ خوک بیا راژوندی کوی؟ ته ووایه چا چه تاسو په وړومبی

أَوَّلَ مَرَّةٍ ۚ فَسَيُنْغِضُونَ إِلَيْكَ رُءُوسَهُمْ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هُوَ ۖ

په اول ځل | پس دوی به وخوزوی | ستا طرف ته | خپل سرونه | او دوی به وائی | کله به وی دا

ځل پیدا کړی وئ، نو (په تعجب سره) ستاسو په مخکښے به سرونه وخوزوی (یعنی خبره به نهٔ منی) او نیوس به وکړی چه دا

قُلْ عَسَىٰ أَنْ يَكُونَ قَرِيبًا ﴿٥١﴾ يَوْمَ يَدْعُوكُمْ فَتَسْتَجِيبُونَ

ووایه | شاید | چه هغه وی | نزدے | په کومه ورځ چه | هغه راوبلی تاسو | نو تاسو به جواب ورکوی (تعمیل به کوی)

به کله وی؟ ورته ووایه کیدے شی چه هغه وخت نزدے راغلے وی، دا به په هغه ورځ وی چه (الله به) تاسو راوغواړی

بِحَمْدِهِ وَتَظُنُّونَ إِنْ لَبِثْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٥٢﴾ وَقُلْ

دَ هغهٔ په ثنا سره | او تاسو به خیال کوئ | چه | تاسو (په دنیا کښے) پاتے شوئ | مگر لږ ساعت | او ووایه

نو تاسو به دَ هغهٔ تعریفونه کوئ او دَ هغهٔ حکم به منئ او دا خیال به کوئ چه تاسو خو ډیر لږ ساعت (په دنیا کښے) پاتے شوی وئ

لِعِبَادِي يَقُولُوا الَّتِي هِيَ أَحْسَنُ ۚ إِنَّ الشَّيْطَانَ يَنْزَغُ

نما بندگانو ته | چه (خبرې) | کومه چه | هغه وائی | دَ ټولونه ښهٔ وی | بیشکه | شیطان | فساد اچوی

او زما بندگانو ته ووایه چه هغه خبره کوئ چه ډیره زیاته ښهٔ وی، بیشکه شیطان دَ دوی ترمینځه فساد

بَيْنَهُمْ ۚ إِنَّ الشَّيْطَانَ كَانَ لِلْإِنْسَانِ عَدُوًّا مُبِينًا ﴿٥٣﴾ رَبُّكُمْ

دَ دوی په مینځ کښے | بیشکه | شیطان | دے | دَ انسان | ښکاره | دښمن | ستاسو رب

اچوی، بیشکه شیطان دَ انسان ښکاره دښمن دے۔ ستاسو رب

أَعْلَمُ بِكُمْ ۖ إِنْ يَشَأْ يَرْحَمْكُمْ أَوْ إِنْ يَشَأْ يُعَذِّبْكُمْ ۚ

ښهٔ پوهه دے | په حال ستاسو | کهٔ چرې | هغه وغواړی | نو رحم به وکړی په تاسو | یا کهٔ چرې هغه وغواړی | نو عذاب به درکړی تاسو

نهٔ ستاسو حال ښهٔ معلوم دے کهٔ چرے هغه وغواړی نو په تاسو به رحم وکړی یا کهٔ هغه وغواړی نو تاسو له به عذاب ورکړی

وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ وَكِيْلًا ﴿٥٤﴾ وَرَبُّكَ اَعْلَمُ بِمَنْ

او مونږ نهٔ یې لیږلے تهٔ | په دوی باندې | ذمه وار | او ستا رب | ښهٔ پوهه دے | په هغه څهٔ چه

او مونږ تهٔ دَ دوئی دَ پاسه څهٔ ذمه وار خولیږلے نهٔ یې . او ستا رب ته ښهٔ معلومه دی څهٔ چه په آسمانونو

فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۗ وَلَقَدْ فَضَّلْنَا بَعْضَ النَّبِيّٖنَ عَلٰى بَعْضٍ

په آسمانونو کښے | او زمکه کښے دی | او بیشکه | فضیلت ورکړے دے مونږ | ځنے پیغمبرانو ته | په ځنو باندې

او زمکه کښے (موجود) دی ، او مونږ ځنے نبیانو له په ځنے (نورو) باندې فضیلت ورکړے دے

وَاٰتَيْنَا دَاوٗدَ زَبُوْرًا ﴿٥٥﴾ قُلِ ادْعُوا الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ

او ورکړو مونږ | داؤد ته | زبور | ووایه | راوبلئ تاسو | هغه څوک چه | تاسو ګمان کوئ

او مونږ داؤد له زبور (نوم کتاب) ورکړے دے . دوی ته ووایه چه تاسو دَ الله نه سوا نور خومره معبودان جوړ کړی دی

مِّنْ دُوْنِهٖ فَلَا يَمْلِكُوْنَ كَشْفَ الضُّرِّ عَنْكُمْ وَلَا تَحْوِيْلًا ﴿٥٦﴾

سوا دَ هغهٔ نه | پس دوی اختیار نهٔ لری | دَ لرے کولو | دَ تکلیف | له تاسو نه | او نهٔ دَ بدلولو

هغوئ خولږ راوبلئ هغوئ نهٔ خو ستاسو څهٔ تکلیف لرے کولے شی او نهٔ (یو مصیبت) بدلولے شی .

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ يَبْتَغُوْنَ اِلٰى رَبِّهِمُ الْوَسِيْلَةَ اَيُّهُمْ

هغه خلق | کوم چه | دوی رابلی | دوی لټوی | خپل رب طرف ته | وسیله | چه څوک له دوی

دوئ چه څوک (په خدایئ باندې) بلی ، هغوئ پخپله دَ ځان په حقله دَ خپل رب نزدیکت لټوی چه (دګورو چه)

اَقْرَبُ وَيَرْجُوْنَ رَحْمَتَهٗ وَيَخَافُوْنَ عَذَابَهٗ ۗ اِنَّ عَذَابَ

زیات نزدے دے | او دوی امید لری | دَ هغهٔ دَ رحمت | او دوی ویریږی | دَ هغهٔ دَ عذاب نه | بیشکه | عذاب

څوک الله ته ډیر نزدے کیږی او دَ هغهٔ دَ رحمت امید وار دی او دَ هغهٔ دَ عذاب نه ویریږی ؟ بیشکه چه ستا دَ رب

رَبِّكَ كَانَ مَحْذُوْرًا ﴿٥٧﴾ وَاِنْ مِّنْ قَرْيَةٍ اِلَّا نَحْنُ مُهْلِكُوْهَا

ستا دَ رب | چه له هغے نه ویره کیدے شی | او نهٔ دے | هیڅ یو کلے | مګر مونږ به | هلاکوونکی یو دَ هغے

دَ عذاب نه ویره پکار ده . او (دَ کافرانو) داسے یو کلے نشته کوم چه مونږ دَ قیامت نه وړاندې

قَبْلَ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ اَوْ مُعَذِّبُوْهَا عَذَابًا شَدِيْدًا ۗ كَانَ ذٰلِكَ

وړاندې | دَ ورځے دَ قیامت نه | یا عذاب ورکوونکی یو دَ هغے | په عذاب | سخت سره | دے | دا

وړاندې هلاک نهٔ کړو یا دَ هغے کلی اوسیدونکو خلقو له سخت عذاب ورنهٔ کړو ، دا (دَ الله) په کتاب

فِى الْكِتٰبِ مَسْطُوْرًا ﴿٥٨﴾ وَمَا مَنَعَنَآ اَنْ نُّرْسِلَ بِالْاٰيٰتِ

په کتاب کښے | لیکلے شوے | او نهٔ دے منع کړی مونږ | چه مونږ ولیږو | نخښے

کښے لیکلی پرانهٔ دی . او مونږ نخښے لیږل ځکه منع کړے چه وړاندینو خلقو

اِلَّآ اَنْ كَذَّبَ بِهَا الْاَوَّلُوْنَ ۗ وَاٰتَيْنَا ثَمُوْدَ النَّاقَةَ

مګر | دا چه دروغ ګڼلے دے | دا | وړاندینو خلقو | او ورکړے وه مونږ | ثمود ته | اوښه

دا دروغ ګڼلے کړے وے ، او مونږ ثمود یانو ته اوښه (دَ صالح دَ نبوت) ښکاره

مُبْصِرَةً فَظَلَمُوْا بِهَا ۭ وَمَا نُرْسِلُ بِالْاٰيٰتِ اِلَّا تَخْوِيْفًا ﴿۵۹﴾

نخښنه | پس ظلم وکړو دوی | په هغې | او نهٔ | لیږو مونږ | نخښې | مګر دَ پاره دَ ویرولو

نخښنه ورکړه ، نو هغوی په دے ظلم وکړو او مونږ خو دا سے معجزے ویرولو دَ پاره رالیږو.

وَاِذْ قُلْنَا لَكَ اِنَّ رَبَّكَ اَحَاطَ بِالنَّاسِ ۭ وَمَا جَعَلْنَا

او هرکله چه | مونږ ووئیل | تا ته | بیشکه | ستا ربّ | راګیر کړی دی | خلق | او نهٔ دے جوړه کړے مونږ

او (اے نبی!) هغه وخت رایادکړه چه مونږ تا ته ووئیل چه ستا رب دَ ټولو خلقو نه راچاپیره دے او دا مونږ چه تا ته

الرُّءْيَا الَّتِيْٓ اَرَيْنٰكَ اِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُوْنَةَ

بنود نه | هغه چه | مونږه بنودلے دَه تا ته | مګر آزمیښت | دَ پاره دَ خلقو | او هغه اُونه | چه پرے لعنت شوے دے

کومه نظاره بنودلے دَه هغه مو دَ خلقو دَ پاره دَ آزمیښت سبب وګرځوله ، او هغه اُونه هم چه په قرآن کښے

فِي الْقُرْاٰنِ ۭ وَنُخَوِّفُهُمْ ۙ فَمَا يَزِيْدُهُمْ اِلَّا طُغْيَانًا كَبِيْرًا ﴿۶۰﴾ وَاِذْ

په قرآن کښے | او مونږ وېرووو دوی | پس نهٔ زیاتوی دا دوی | مګر په سرکشئ | لویه (کښے) | او هرکله چه

پرے لعنت راغلے دے او مونږ خو دا خلق بیا بیا ویروو خو په هغے باندِ دَ دوی سرکشی نوره هم زیاتیږی ، او هرکله

قُلْنَا لِلْمَلٰۗىِٕكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ ۭ قَالَ

مونږ ووئیل | فرښتو ته | چه سجده وکړئ | آدم ؑ ته | نو دوی سجده وکړه | سوا دَ ابلیس نه | دهٔ ووئیل

چه مونږ فرښتو ته ووئیل چه تاسو آدم (علیه السلام) ته سجده وکړئ نو بغیرِ دَ ابلیس نه ټولو سجده وکړه هغه ووئے آیا زهٔ دَه

ءَاَسْجُدُ لِمَنْ خَلَقْتَ طِيْنًا ﴿۶۱﴾ قَالَ اَرَءَيْتَكَ هٰذَا الَّذِيْ

آیا زهٔ سجده وکړم | هغه چا ته | چه تا پیدا کړو | له خټے نه | دهٔ ووئیل | آیا کتلی دی تا | دے کس ته

ته سجده وکړم کوم چه تا دَ خټے نه پیدا کړے دے ، ابلیس ووئیل چه تهٔ خو دے سړی ته لږ وګوره چه تا په

كَرَّمْتَ عَلَيَّ ۡ لَىِٕنْ اَخَّرْتَنِ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَاَحْتَنِكَنَّ

چه عزت ورکړو تا | په ما باندِ | که چرے تا مهلت راکړو ما ته | دَ قیامت تر ورځے پورے | نو بنیاد به او باسم زهٔ

ما باندِ اُوچت کړے دے ، که چرے تهٔ تر قیامته پورے ماله مهلت راکړے نو زهٔ به دَ یو څو تنو نه

ذُرِّيَّتَهٗٓ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۶۲﴾ قَالَ اذْهَبْ فَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ

دَ دهٔ دَ اولاد | سوا | دَ لږو نه | الله وفرمائیل | ځه ! | پس څوک چه | پیروی وکړی ستا | له دوی نه

بغیرِ دَ دهٔ ټول اولاد په خپل قابو کښے راولم ، حکم وشو چه ځه ! څوک چه له دوی نه ستا پیروی وکړی نو

فَاِنَّ جَهَنَّمَ جَزَاۗؤُكُمْ جَزَاۗءً مَّوْفُوْرًا ﴿۶۳﴾ وَاسْتَفْزِزْ مَنِ

نو بیشکه | دوزخ | ستاسو سزا دَه | سزا | پوره | او ګُغولوه | په چا چه

بیشکه دوزخ ستاسو دَ ټولو پوره سزا دَه ، او په دوی کښے چه ستا په چا

اسْتَطَعْتَ مِنْهُمْ بِصَوْتِكَ وَاَجْلِبْ عَلَيْهِمْ بِخَيْلِكَ

ستا وس رسی | له دوی نه | په خپل آواز سره | ګُزغلوه | په دوی باندِ | سواره خپل

وس رسی نو هغوئ په خپل آواز سره ګُغولوه او په دوی باندِ (دَ خپلو فوجونو) سواره او پیاده

وَرَجِلِكَ وَشَارِكْهُمْ فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ وَعِدْهُمْ ط

او خپل پیاده | او شریک شه دوی سره | په مالونو کښې | او په اولاد (کښې) | او وعده ورکړه دوی ته

راؤخیژوی ، او هغوئ سره په مالونو او په اولاد کښې ځان له برخه ونیسه ، او هغوئ سره وعدې

وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطٰنُ اِلَّا غُرُوْرًا ﴿۶۴﴾ اِنَّ عِبَادِيْ لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ

او وعده نه کوی دوی سره | شیطان | مګر (صرف دوکه) | بیشکه | بندګان زما | نشته دے ستا | په دوی باندې

کوه او کومے وعدے چه شیطان هغوی سره کوی هغه ټوله دوکه ده۔ بیشکه زما په (مخلصانو) بندګانو به ستا زور

سُلْطٰنٌ ط وَكَفٰى بِرَبِّكَ وَكِيْلًا ﴿۶۵﴾ رَبُّكُمُ الَّذِيْ يُزْجِيْ لَكُمُ الْفُلْكَ

څۀ زور (غلبه) | او کافی دے | ستا رب | کارساز | ستارب | هغه ذات دے | چه روانوی | تاسو د پاره | کشتئ

نۀ چلیږی او ستا رب کافی کارساز دے ۔ ستاسو رب هغه ذات دے چه تاسو د پاره په سمندر

فِي الْبَحْرِ لِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ ط اِنَّهٗ كَانَ بِكُمْ رَحِيْمًا ﴿۶۶﴾

په دریاب کښې | چه تاسو ولټوئ | د ده فضل | بیشکه هغه | دے په تاسو باندې | ډیر مهربان

کښې کشتئ چلوی چه تاسو د هغهٔ فضل (روزی) ولټوئ ۔ بیشکه هغه په تاسو ډیر مهربان دے.

وَاِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فِي الْبَحْرِ ضَلَّ مَنْ تَدْعُوْنَ اِلَّا اِيَّاهُ ج

او هر کله چه | رسیږی تاسو ته | تکلیف | په سمندر کښې | نو هیرشی | هغه څوک | چه تاسو ئے بلئ | د هغه (الله) نه سوا

او هر کله چه په سمندر کښې تاسو ته څۀ تکلیف رسیږی نو د الله تعالیٰ نه سوا کوم کوم چه تاسو بلئ هغه تاسو نه هیر

فَلَمَّا نَجّٰىكُمْ اِلَى الْبَرِّ اَعْرَضْتُمْ ط وَكَانَ الْاِنْسَانُ كَفُوْرًا ﴿۶۷﴾

بیا هر کله چه | خلاص ئے درکړو | د اوچے طرف ته | نو تاسو مخ واړولو | او دے | انسان | ناشکره

شی، بیا هر کله چه هغه تاسو اوچے طرف ته رابچ کړی نو تاسو مخ واړوئ ، او انسان ډیر ناشکره دے.

اَفَاَمِنْتُمْ اَنْ يَّخْسِفَ بِكُمْ جَانِبَ الْبَرِّ اَوْ يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ

آیا پس تاسو بے ویرے شوئ | چه هغه ښخ کړی | تاسو | طرف | د اوچے کښې | یا رالیږی | په تاسو باندې

آیا تاسو د دے خبرے نه بے غمه شوی یئ چه تاسو اوچے طرف ته راولی او په زمکه کښې مو ښخ کړی یا در باندې د کاڼو شګو

حَاصِبًا ثُمَّ لَا تَجِدُوْا لَكُمْ وَكِيْلًا ﴿۶۸﴾ لا اَمْ اَمِنْتُمْ

کاڼی ورونکے هوا | بیا به ونه مومئ | ځان د پاره | کارساز | یا | تاسو بے ویرے شوئ

سیلئ راولئی ، بیا تاسو د خپل ځان د پاره څوک کارساز بیا نه مومئ ۔ یا تاسو بے فکره شوی یئ

اَنْ يُّعِيْدَكُمْ فِيْهِ تَارَةً اُخْرٰى فَيُرْسِلَ عَلَيْكُمْ قَاصِفًا

له دے نه چه هغه تاسو واپس کړی | په دے کښې | په دویم ځل | بیا رالیږی | په تاسو باندې | سخت طوفان

چه هغه دوباره تاسو دے (دریاب) ته بوځی ، بیا په تاسو باندې د هوا سخت طوفان

مِّنَ الرِّيْحِ فَيُغْرِقَكُمْ بِمَا كَفَرْتُمْ لا ثُمَّ لَا تَجِدُوْا لَكُمْ عَلَيْنَا

د هوا | بیا تاسو غرق کړی | په وجه د دے چه تاسو کفر وکړو | بیا به | ونه مومئ تاسو | ځان د پاره | په مونږ

راولیږی ، بیا تاسو د ناشکرئ په بدله کښې غرق کړی ، نو بیا به هیڅوک زمونږ نه د بدلے پوښتنے

بِهٖ تَبِيْعًا ﴿۶۹﴾ وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيْۤ اٰدَمَ وَحَمَلْنٰهُمْ فِى الْبَرِّ

پہ دے خبرہ | څوک نیولو والا | او بیشکہ | عزت ورکړو مونږ | اولاد د آدم تہ | او مونږ سوارہ کړل دوی | پہ اوچہ

قابل هم بیانہ مومئ او بیشکہ مونږ د آدم اولاد تہ عزت ورکړے دے او مونږ دوئ پہ اوچہ او پہ دریاب دواړو

وَالْبَحْرِ وَرَزَقْنٰهُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ وَفَضَّلْنٰهُمْ عَلٰى كَثِيْرٍ مِّمَّنْ

او سمندر کښے | او مونږ دوی تہ روزی ورکړہ | لہ پاکیزہ څیزونو نہ | او فضیلت ورکړو مونږ دوئ تہ | پہ ډیرو باندِ لہ هغہ چانہ

کښے سوارہ کړهٔ او مونږ دوی لہ د پاکیزہ څیزونو نہ رزق ورکړو او پہ خپل ډیر مخلوقات باندِ مو ورلہ ښکارہ

خَلَقْنَا تَفْضِيْلًا ﴿۷۰﴾ يَوْمَ نَدْعُوْا كُلَّ اُنَاسٍۢ بِاِمَامِهِمْ ۚ

کوم چہ مونږ پیدا کړی دی | پہ فضیلت ورکولو سرہ | پہ کومہ ورځ | چہ راوبلو مونږ | ټول خلق | د دوی د پیشوایانو سرہ

فضیلت ورکړے دے۔ هغہ ورځ رایادہ کړہ چہ مونږ بہ ټول خلق د خپلو خپلو پیشوایانو سرہ راوغواړو

فَمَنْ اُوْتِىَ كِتٰبَهٗ بِيَمِيْنِهٖ فَاُولٰٓئِكَ يَقْرَءُوْنَ كِتٰبَهُمْ

پس چا تہ چہ | ورکړے شوہ | عمل نامہ د هغہ | د هغہ پہ ښی لاس کښے | پس دغہ خلق بہ | لولی | خپلہ عملنامہ

نو د چا عملنامہ چہ د هغوئ ښی لاس کښے ورکړے شوہ، نو هغوئ بہ خپلہ عملنامہ لوستل شروع کړی

وَلَا يُظْلَمُوْنَ فَتِيْلًا ﴿۷۱﴾ وَمَنْ كَانَ فِىْ هٰذِهٖۤ اَعْمٰى فَهُوَ

او پہ دوی بہ ظلم نہ شی کولے | د یو تار برابر | او څوک چہ وی | پہ دے (دنیا) کښے | ړوند | نو هغہ (بہ)

او پہ هغوئ بہ د تار برابر هم ظلم نہ کیږی۔ او څوک چہ پہ دے دنیا کښے ړوند پاتے شی پس هغہ بہ پہ

فِى الْاٰخِرَةِ اَعْمٰى وَاَضَلُّ سَبِيْلًا ﴿۷۲﴾ وَاِنْ كَادُوْا

پہ آخرت کښے (هم) | ړوند (وی) | او ډیر زیات بے لارہ دے | د لارے نہ | او یقینًا | دوی نزدے

آخرت کښے هم ړوند وی او د (خلاصون) لارے نہ بہ ډیر زیات بے لارے وی، او (اے نبی!) دوئ پہ دے خبرہ

لَيَفْتِنُوْنَكَ عَنِ الَّذِىْۤ اَوْحَيْنَاۤ اِلَيْكَ لِتَفْتَرِىَ عَلَيْنَا غَيْرَهٗ ۖ

چہ البتہ وغولوی تا | لہ هغہ څیز نہ چہ | وحی کړے دہ مونږ | تا تہ | چہ تہ وتړے | پہ مونږ | بلہ خبرہ بے لہ دے نہ

کښے ډیر کوشش کړے دے چہ تا د هغہ وحی نہ چہ مونږ درتہ درلیږلے دہ وغولوی پہ دے شان چہ تہ پہ مونږ باندِ ځان نہ څہ دروغ وتړے

وَاِذًا لَّاتَّخَذُوْكَ خَلِيْلًا ﴿۷۳﴾ وَلَوْلَاۤ اَنْ ثَبَّتْنٰكَ لَقَدْ كِدْتَّ

او هغہ وخت | بہ دوی نیولے وے تہ | دوست | او کہ چرے مونږ ستا قدم کلک کړے نہ وے | یقینًا نزدے وہ

او کہ تا دغسے کړے وے نو دوئ بہ (خپل ځان سرہ) خوږ اشنا کړے وے۔ او کہ مونږ ستا قدم کلک کړے نہ وے نو دا خبرہ

تَرْكَنُ اِلَيْهِمْ شَيْئًا قَلِيْلًا ﴿۷۴﴾ اِذًا لَّاَذَقْنٰكَ ضِعْفَ الْحَيٰوةِ

چہ تہ مائل شوے | د دوی طرف تہ | لږ شان | هغہ وخت | بہ مونږ څکولے وو تا تہ | غبرگہ (سزا) | د ژوند

بعید لا نہ وہ چہ تہ ورتہ لږ شان مائلہ شوے وے۔ پہ دے صورت کښے بہ مونږ تا لہ پہ ژوند کښے او د مرگ

وَضِعْفَ الْمَمَاتِ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ عَلَيْنَا نَصِيْرًا ﴿۷۵﴾

او غبرگہ (عذاب) | د مرگ (نہ پس) | بیا بہ نہ موندلو تا | ځان د پارہ | پہ مقابلہ زمونږ کښے | څوک مددگار

نہ پس د غبرگے سزا مزہ څکولے وہ نو بیا بہ تا زمونږ پہ مقابلہ کښے هیڅوک مددگار موندلے نہ وو۔

وَاِنْ كَادُوْا لَيَسْتَفِزُّوْنَكَ مِنَ الْاَرْضِ لِيُخْرِجُوْكَ مِنْهَا وَاِذًا

او بیشکه نژدے دو | چه دوی تیر باسی تا | زمکے (دَ مکے) نه | چه دوی وُباسی تا | له دے ځلے نه | او دغه وخت کښے

او نژدے وه چه دوی (کافرانو) دَ دے زمکے (دَ مکے نه) ستا قدمونه خوټولے وے چه تا دَ دے (ملک) نه بهر اوباسی، او

لَّا يَلْبَثُوْنَ خِلٰفَكَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۷۶﴾ سُنَّةَ مَنْ قَدْ اَرْسَلْنَا

به پاتے نهٔ شی دوی | پس له تا نه | مگر | لږ | په شان دَ دستور | دَ هغه چا چه | را لیږلے دو مونږ

په دے حال کښے به هم ستا دَ وتلو نه پس دوی ډیر لږ د لته پاتے شی۔ (دا زمونږ پخوانے دستور دے) لکه څنګه چه زمونږ دا

قَبْلَكَ مِنْ رُّسُلِنَا وَلَا تَجِدُ لِسُنَّتِنَا تَحْوِيْلًا ﴿۷۷﴾ ع ۸ اَقِمِ

له تا نه وړاندې | له پیغمبرانو زمونږ نه | او دَ به نهٔ مومے ته | زمونږ په سنت کښے | څهٔ بدلون | قائم کړه

دستور دَ هغې پیغمبرانو په حقله راغلے دے چه له تا نه وړاندې مو لیږلی وو او زمونږ په دستور کښے به هیڅ تبدیلی بیا نهٔ مومے۔

الصَّلٰوةَ لِدُلُوْكِ الشَّمْسِ اِلٰى غَسَقِ الَّيْلِ وَقُرْاٰنَ

مونځ | په وخت دَ زوال | دَ نمر | تر تیارے پورے | دَ شپے | او قرآن (لوله)

تهٔ خپل مونځ کوه، دَ نمر دَ ځوړېدلو نه (پس)، دَ شپے تر تیارے (خوریدو) پورے او (دے نه علاوه) دَ صبا

الْفَجْرِ ۭ اِنَّ قُرْاٰنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُوْدًا ﴿۷۸﴾ وَمِنَ الَّيْلِ

دَ صبا | بیشکه | قرآن (لوستل) | دَ صبا | دَ حاضرئ وخت دے (دَ فرښتو) | او دَ شپے په څهٔ برخه کښے

مونځ هم کوه، بیشکه دَ صبا دَ مونځ کول (دَ فرښتو) دَ حاضرئ وخت دے۔ او دَ شپے په یوه برخه

فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ ۖ عَسٰٓى اَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ

بیدارا اوسه | په دے (قرآن) سره | دا زیات دی | ستا دَ پاره | نژدے ده | چه تا وُدروی | ستا رب

کښے هم دَ تهجد مونځ کوه چه دا ستا دَ پاره زیاتی (مونځ) دے۔ اُمید دے چه ستا رب به تا له په مقام محمود

مَقَامًا مَّحْمُوْدًا ﴿۷۹﴾ وَقُلْ رَّبِّ اَدْخِلْنِىْ مُدْخَلَ صِدْقٍ

په مقام محمود کښے | او ووایه | اے زما ربه! | داخل کړه ما | په داخلولو | غوره سره

کښے ځلے درکړی۔ او ووایه اے زما ربه! ما (په مدینه کښے) په ښهٔ شان داخل کړه

وَّاَخْرِجْنِىْ مُخْرَجَ صِدْقٍ وَّاجْعَلْ لِّىْ مِنْ لَّدُنْكَ سُلْطٰنًا

او بهر ته راوله ما | په راویستلو | غوره سره | او راکړه | ماله | له خپل طرف نه | غلبه

او (له مکے نه) ما په عزت سره وُباسه او ماله دَ خپل طرف نه غلبه او مدد

نَّصِيْرًا ﴿۸۰﴾ وَقُلْ جَآءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ ۭ اِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ

خپل مدد سره | او ووایه | راغے | حق دین | او ورک شو | باطل دین | بیشکه | باطل | دی

راکړه۔ او دا اعلان وکړه چه حق (بس دا دے) راغے او باطل (لاهو) ورک شو۔ بیشکه باطل خو (همیشه هم) دَ ورکیدو

زَهُوْقًا ﴿۸۱﴾ وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ وَّرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ۙ

وُرکیدونکی | او مونږ نازلوُو | له قرآن نه | هغه څهٔ چه هغه | شفا ده | او رحمت دے | مؤمنانو دَ پاره

ثیز وو | او مونږ په قرآن کښے داسے څیزونه رالیږو چه دَ مؤمنانو دَ پاره شفا او رحمت دے

وَلَا يَزِيدُ الظّٰلِمِينَ اِلَّا خَسَارًا ﴿٨٢﴾ وَاِذَآ اَنْعَمْنَا عَلَى الْاِنْسَانِ

او نهٔ زياتوی | په حق دَ ظالمانو کښې | مګر نقصان | او هر کله چه | انعام وکړو مونږ | په انسان

او دَ ظالمانو په حق کښې له دِ ے نه هم نقصان زياتيږی. او هر کله چه مونږ پو انسان له نعمتونه ورکړو

اَعْرَضَ وَنَاٰ بِجَانِبِهٖ ۚ وَاِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ كَانَ يَئُوسًا ﴿٨٣﴾ قُلْ

نو دے مخ واړوی | او تاؤ کړی ډډه خپله | او هر کله چه ورسيږی ده ته | بدی | نو دے شی | نا اُميده | ووايه

نو بيا زمونږ دَ حکمونو نه) هغه مخ اړوی او ډډه وګړی او چه لږ تکليف ورته ورسيږی نو ژر نا اُميده شی (اے نبی!) دوی

كُلٌّ يَّعْمَلُ عَلٰى شَاكِلَتِهٖ ۗ فَرَبُّكُمْ اَعْلَمُ بِمَنْ هُوَ

هر څوک | کار کوی | په خپله طريقه باندِ | پس ستاسو رب | ښهٔ پوهه دے | په هغه چا چه هغه

ته) ووايه چه هر څوک په خپله طريقه باندِ عمل کوی. بيشکه ستاسو رب هغه څوک ښهٔ پيژنی کوم چه دَ ټولو

اَهْدٰى سَبِيلًا ﴿٨٤﴾ وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الرُّوحِ ۗ قُلِ الرُّوحُ

زيات صحيح | لاره باندِ دے | او دوی تپوس کوی له تانه | دَ روح په حقله | ته ووايه | چه روح

نه زيات په سمه لاره باند دے. او خلق له تا نه دَ روح په حقله تپوس کوی. (دوی ته) ووايه چه روح زما دَ رب دَ حکم

مِنْ اَمْرِ رَبِّي وَمَآ اُوتِيتُمْ مِّنَ الْعِلْمِ اِلَّا قَلِيلًا ﴿٨٥﴾ وَلَئِنْ

زما دَ رب په حکم دے | او نهٔ دے درکړے شوے تاسو ته | له علم نه | مګر لږ شان | او که چرے

نه (پيدا) دے. او تاسو ته خو ډير لږ علم درکړے شوے دے. او که چرے مونږ

شِئْنَا لَنَذْهَبَنَّ بِالَّذِيٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ ثُمَّ لَا تَجِدُ

مونږ وغواړو | نو خامخا به يوسو مونږ | هغه څهٔ چه | وحی کړے ده مونږ | ستا طرف ته | بيا | به ته نهٔ مومے

وغواړو نو کومه وحی چه مونږ تا ته درکړے ده هغه به در نه واپس کړو، بيا به درته په دے حقله زمونږ

لَكَ بِهٖ عَلَيْنَا وَكِيلًا ﴿٨٦﴾ اِلَّا رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ ۗ اِنَّ

خپل ځان دَ پاره په دے سره | زمونږ په مقابله کښې | کارساز | مګر | رحمت | ستا دَ رب له طرف نه | بيشکه

په مقابله کښې هيڅوک مددګار پيدا نهٔ شی، خو دا په تا باندِ دَ خپل رب ډير لوے رحم دے، (چه تا ته ئے

فَضْلَهٗ كَانَ عَلَيْكَ كَبِيرًا ﴿٨٧﴾ قُلْ لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ الْاِنْسُ وَالْجِنُّ

دَ هغهٔ فضل | دے | په تا باندِ | لوئے | ووايه | که چرے | جمع شی (اتفاق وکړی) | انسانان | او پيريان

وحی درکړے ده) بيشکه په تا دَ هغهٔ فضل ډير لوے دے (اے نبی!) ته ووايه چه که ټول بنيادم او پيريان راټول شی

عَلٰٓى اَنْ يَّاْتُوا بِمِثْلِ هٰذَا الْقُرْاٰنِ لَا يَاْتُونَ بِمِثْلِهٖ وَلَوْ كَانَ

په دے (خبره) چه دوی راوړی | په شان | دَ | قرآن | هيڅ کله به دوی راونهٔ وړی | په شان دَ دے | او که چرے شی

چه دَ دے قرآن په شان يو بل قرآن جوړ کړی نو (هيڅ چرے) دَ دے په شان جوړ ولے نهٔ شی، اګر که دوی ټول

بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيرًا ﴿٨٨﴾ وَلَقَدْ صَرَّفْنَا لِلنَّاسِ فِي هٰذَا الْقُرْاٰنِ

ځنے دَ دوی | ځنو دَ پاره | مددګار | او بيشکه | مونږ په رنګ رنګ بيان کړو | خلقو دَ پاره | په دے قرآن کښې

دَ يو بل مددګار وی. او مونږ خلقو ته په دے قرآن کښې هر قسم ښهٔ ښهٔ مضمونونه په رنګ رنګ

مِنْ كُلِّ مَثَلٍ ۡ فَاَبٰٓى اَكْثَرُ النَّاسِ اِلَّا كُفُوْرًا ﴿۸۹﴾ وَقَالُوْا

هر | مثال | پس قبول نهٔ کړو | اکثر خلقو | سوا | دَ ناشکرئ نه | او دوی وویل

بیان کړی دی ، خو بیا هم اکثر خلق تړے نه بغیر دَ انکار کولو نه پاتے نهٔ شول ۔ او دوی وائی چه مونږ

لَنْ نُّؤْمِنَ لَكَ حَتّٰى تَفْجُرَ لَنَا مِنَ الْاَرْضِ يَنْۢبُوْعًا ﴿۹۰﴾

مونږ به هیڅ کله ایمان رانهٔ وړو | په تا | تر دے چه | تهٔ جاری کړے | مونږ دَ پاره | له زمکے نه | څهٔ چینه

په تا هیڅرے ایمان نهٔ راوړو ، ترڅو چه تهٔ مونږ له دَ مزکے (دَ تل) نه یوه چینه راونهٔ باسے ۔

اَوْ تَكُوْنَ لَكَ جَنَّةٌ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّعِنَبٍ فَتُفَجِّرَ الْاَنْهٰرَ

یا وی | تا دَ پاره | یو باغ | دَ کجورو | او دَ انګورو | پس ته جاری کړه | نهرونه

یا ستا دَ کجورو او انګورو باغ وی ، او تهٔ دَ هغے په مینځ کښے ځائے په

خِلٰلَهَا تَفْجِيْرًا ﴿۹۱﴾ اَوْ تُسْقِطَ السَّمَآءَ كَمَا زَعَمْتَ عَلَيْنَا

دَدے په مینځ کښے | بهیدل ی | یا تهٔ راوغورزوه | اسمان | لکه څنګه چه | تهٔ ګمان کوے | په مونږه

ځائے نهرونه وبهیوے ، یا څنګه چه تهٔ وائے چه په مونږ باندِ دَ اسمان ټکړے

كِسَفًا اَوْ تَاْتِيَ بِاللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ قَبِيْلًا ﴿۹۲﴾ اَوْ يَكُوْنَ لَكَ

ټوټے ټوټے | یا راوله | الله | او فرښتے | (زمونږ) مخامخ | یا | وی | تا دَ پاره

راوغورزوے یا الله تعالیٰ او فرښتے مونږ ته مخامخ راولے ، یا دا چه ستا دَ سرو زرو

بَيْتٌ مِّنْ زُخْرُفٍ اَوْ تَرْقٰى فِى السَّمَآءِ ؕ وَلَنْ نُّؤْمِنَ لِرُقِيِّكَ

کور | له سرو زرو نه | یا ته بره وخیژے | آسمان ته | او هیڅ کله به مونږ ونهٔ منو | ستا پورته ختل

یو کور وی یا دا چه تهٔ بره آسمان ته وخیژے او مونږ به ستا (آسمان ته) ختل هم نهٔ منو

حَتّٰى تُنَزِّلَ عَلَيْنَا كِتٰبًا نَّقْرَؤُهٗ ؕ قُلْ سُبْحَانَ رَبِّيْ هَلْ كُنْتُ

تر دے چه | تهٔ نازل کړے | په مونږ باندِ | یو کتاب | چه ولولو مونږ هغه | تهٔ ووایه | پاک دے | زما رب | نهٔ یم زهٔ

ترڅو چه تهٔ په مونږ یو کتاب راونهٔ لیږے کوم چه مونږ ولولو ، تهٔ ورته ووایه چه زما رب پاک دے ، زهٔ خو صرف

اِلَّا بَشَرًا رَّسُوْلًا ﴿۹۳﴾ وَمَا مَنَعَ النَّاسَ اَنْ يُّؤْمِنُوْٓا اِذْ جَآءَهُمُ

مګر یو بنیادم | رالیږلے شوے | او نهٔ دے منع کړی | خلق | له دے نه چه دوی دِ ایمان راوړی | هر کله چه راغلو دوی ته

یو پیغام رسوونکے انسان یم ، او دوی څهٔ بلے (غیتے) خبرے دَ ایمان راوړلو نه منع نهٔ کړل څهٔ وخت چه هدایت

الْهُدٰٓى اِلَّآ اَنْ قَالُوْٓا اَبَعَثَ اللّٰهُ بَشَرًا رَّسُوْلًا ﴿۹۴﴾ قُلْ لَّوْ كَانَ

هدایت | مګر دا چه | دوی وویل | آیا لیږلے دے | الله | یو بنیادم | پیغمبر | ووایه | که چرے وے

ورته راغلو خو بس دے خبرے چه دوی وویل چه آیا الله (هیله بیله) یو بنیادم پیغمبر را لیږلو؟ تهٔ ورته ووایه چه

فِى الْاَرْضِ مَلٰٓئِكَةٌ يَّمْشُوْنَ مُطْمَئِنِّيْنَ لَنَزَّلْنَا عَلَيْهِمْ

په زمکه کښے | فرښتے | چه ګرځیدلے | په آرام | نو مونږ به ضرور رالیږلے وو | په دوی باندِ

که په زمکه باندِ فرښتے ګرځیدلے او په آرام سره اوسیدلے نو مونږ به ضرور په هغوئ باندِ

مِّنَ السَّمَآءِ مَلَكًا رَّسُوْلًا ﴿٩٥﴾ قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا ۢ

له آسمان نه | فرښته | پیغمبر | ووایه | کافی دے | الله | ګواه

فرښته رسول رالیږلے وے ، ته ورته ووایه چه زما او ستاسو ترمینځه الله تعالیٰ د ګواهئ

بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ ۭ اِنَّهٗ كَانَ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرًا ۢ بَصِيْرًا ﴿٩٦﴾ وَمَنْ

په مینځ زما | او په مینځ ستاسو کښے | بیشکه هغه دے | په خپلو بندګانو | خبردار | بینا | او چا ته چه

دپاره کافی دے ۔ الله تعالیٰ د خپلو بندګانو په حال ښه خبردے هرڅه وینی ګوری ، څوک چه

يَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ ۚ وَمَنْ يُّضْلِلْ فَلَنْ تَجِدَ لَهُمْ

لار ونښائی | الله | پس هم هغه | هدایت موندونکے دے | او څوک چه | هغه بے لارے کړی | نو ته به هیڅ کله بیا نه مومے | دوی له

الله تعالیٰ په سمه لار روان کړی نو هغه سمه لار بیا مومی ۔ او څوک چه بے لارے کړی نو هیڅوک به بغیر د خدائے نه د

اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِهٖ ۭ وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَلٰي وُجُوْهِهِمْ

(څوک) مدد ګار | بغیر د هغه نه | او مونږ به راپاڅوو دوی | په ورځ د قیامت | په مخونو د دوی

هغوی مدد ګار بیا نه مومے ، او مونږ به دوی د قیامت په ورځ پر مخ راندۀ ، ګونګیان

عُمْيًا وَّبُكْمًا وَّصُمًّا ۭ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۭ كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنٰهُمْ

راندۀ | او ګونګیان | او کاڼۀ | ځائے د دوی | دوزخ دے | هر کله چه | په مړکیدو راشی | نو زیاتوو به مونږ په هغوئی

او کاڼۀ راپاڅوو ، د دوی ټیکاؤنړه دوزخ دے ، هر کله چه د هغے لمبے په کمیدو راشی نو مونږ به ئے نورے

سَعِيْرًا ﴿٩٧﴾ ذٰلِكَ جَزَاۗؤُهُمْ بِاَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِنَا وَقَالُوْٓا

اور | دا | د دوی سزا ده | په وجه د دے چه دوی | انکار کولو | زمونږ د آیتونو نه | او وئیل به ئے

زیاتے غرغنے کړو ۔ دا د هغوئی سزا ده ، ځکه چه هغوئی زمونږ د آیتونو نه انکار کړے وو ۔ او دا به ئے وئیل

ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا وَّرُفَاتًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ خَلْقًا جَدِيْدًا ﴿٩٨﴾

آیا هر کله چه شو مونږ | هډوکی | او ریزه ریزه | آیا مونږ | به خامخا پاڅولے شو | په پیدا کولو | د نوی سره

چه هر کله مونږ هډوکی او ریزه ریزه شو نو آیا بیا به د نوی سره راپیدا کیږو

اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ قَادِرٌ

آیا دوی ونۀ لیدل | چه بیشکه الله | کوم چه | پیدا کړی دی | آسمانونه | او زمکه | هغه قادر دے

آیا دوی دے خبرے ته نۀ ګوری چه هغه الله چه (ټول) آسمانونه او زمکه ئے پیدا کړی دی په دے هم قادر

عَلٰٓي اَنْ يَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ وَجَعَلَ لَهُمْ اَجَلًا لَّا رَيْبَ فِيْهِ ۭ فَاَبَى

په دے چه | پیدا کړی | په شان د دوی | او مقرر کړے ئے ده | دوی ته یاره | نیټه | چه په دے کښے هیڅ شک نشته | نو قبول نۀ کړو

دے چه د دوی غوندے خلق راپیدا کړی ؟ هغۀ دوئی له یوه نیټه مقرر کړے ده چه هیڅ شک په کښے نشته ، نو

الظّٰلِمُوْنَ اِلَّا كُفُوْرًا ﴿٩٩﴾ قُلْ لَّوْ اَنْتُمْ تَمْلِكُوْنَ خَزَاۗىِٕنَ رَحْمَةِ

ظالمانو | مګر ناشکری | ووایه | کۀ چرے | وئ تاسو مالکان | د خزانو | د رحمت

ظالمانو د انکار نه سوا (هیڅ) قبول نۀ کړل ۔ ته ووایه کۀ چرے تاسو زما د رب د رحمت د خزانو مالکان

رَبِّيٓ اِذًا لَّاَمۡسَكۡتُمۡ خَشۡيَةَ الۡاِنۡفَاقِ ؕ وَكَانَ الۡاِنۡسَانُ

زما د رب | دغه وخت به تاسو ضرور منع کولو | له ویرې نه | د خرڅ کیدو | او دے | انسان

شوي وے، نو بیا به هم تاسو د هغې د ختمیدو د ویرې نه لاسونه نیولي وو او انسان ډیر زړه تنګے

قَتُوۡرًا ۟﴿۱۰۰﴾ وَلَقَدۡ اٰتَيۡنَا مُوۡسٰى تِسۡعَ اٰيٰتٍۢ بَيِّنٰتٍ فَسۡــَٔلۡ

ډیر زړه تنګے | او بیشکه مونږ ورکړې دي | موسیٰ ته | نهه | نخښې | روښانه | پس تپوس وکړه

دے۔ او بیشکه مونږ موسیٰ (علیه السلام) له نهه څرګندې نخښې ورکړې وې ، نو بني اسرائیلو

بَنِيۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ اِذۡ جَآءَهُمۡ فَقَالَ لَهٗ فِرۡعَوۡنُ اِنِّيۡ

له بني اسرائیلو نه | هر کله چه راغے دوی ته | پس ووئیل | دهٔ ته | فرعون | بیشکه زهٔ

نه پوښتنه وکړه ، هر کله چه (موسیٰ علیه السلام) دوی ته راغے نو فرعون دهٔ ته ووئیل اے موسیٰ! زما خیال

لَاَظُنُّكَ يٰمُوۡسٰى مَسۡحُوۡرًا ﴿۱۰۱﴾ قَالَ لَقَدۡ عَلِمۡتَ مَاۤ اَنۡزَلَ

خامخا ګمان کوم په تا | اے موسیٰ! | چه جادو در باندې شوے | دهٔ ووئیل | بیشکه | پوهه یې ته | چه نهٔ دي نازل کړي

دے چه په تا باندې چا جادو کړے دے۔ (موسیٰ) ووئیل چه تا ته ښه معلومه ده چه د آسمانونو او

هٰۤؤُلَآءِ اِلَّا رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ بَصَآئِرَ ۚ وَاِنِّيۡ لَاَظُنُّكَ

دا (نخښې) | مګر | رب د آسمانونو | او زمکې | دلیلونه | او بیشکه زهٔ | ګمان کوم په تا

زمکې د پروردګار نه سوا دا (نخښې) بل چا نهٔ دي نازلې کړې دا (تاسو د پاره) د پوهې خبرې دي او اے فرعونه! بیشکه زهٔ

يٰفِرۡعَوۡنُ مَثۡبُوۡرًا ﴿۱۰۲﴾ فَاَرَادَ اَنۡ يَّسۡتَفِزَّهُمۡ مِّنَ الۡاَرۡضِ

اے فرعونه! | د هلاک شوي | پس هغهٔ اراده وکړه | چه | راؤباسي دوی | له زمکې نه

خیال کوم چه تهٔ به هلاک شې ، نو فرعون اراده وکړه چه هغوئ د (مصر) ملک نه وُباسي

فَاَغۡرَقۡنٰهُ وَمَنۡ مَّعَهٗ جَمِيۡعًا ۙ﴿۱۰۳﴾ وَّقُلۡنَا مِنۡۢ بَعۡدِهٖ

نو مونږ دے غرق کړو | او څوک چه | د دهٔ سره وو | ټول | او مونږ ووئیل | پس له دهٔ نه

نو مونږ هغه او د هغهٔ ټول ملګری په یو ځائے غرق کړل او د هغهٔ نه پس مو بني اسرائیلو

لِبَنِيۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ اسۡكُنُوا الۡاَرۡضَ فَاِذَا جَآءَ وَعۡدُ

بني اسرائیلو ته | تاسو وُسیږئ | په زمکه کښې | بیا هر کله چه | راشي | وعده

ته ووئیل چه په دے ملک کښې وُسیږئ ، نو هر کله چه د آخرت د وعدے وخت

الۡاٰخِرَةِ جِئۡنَا بِكُمۡ لَفِيۡفًا ؕ﴿۱۰۴﴾ وَبِالۡحَقِّ اَنۡزَلۡنٰهُ وَبِالۡحَقِّ

د آخرت | مونږ به راولو | تاسو | په جمع | او په حق سره | مونږ نازل کړے دے دا | او په حق سره

راشي ، نو مونږ به تاسو ټول راغونډ کړو ، او مونږ دا کلام په حقه نازل کړے دے ، او دا په حقه

نَزَلَ ؕ وَمَاۤ اَرۡسَلۡنٰكَ اِلَّا مُبَشِّرًا وَّنَذِيۡرًا ﴿۱۰۵﴾ وَقُرۡاٰنًا فَرَقۡنٰهُ

نازل شوے دے | او نهٔ یې رالیږلے مونږ ته | مګر زیرے ورکوونکے | او ویروونکے | او قرآن | مونږ جُدا جُدا کړو دا

نازل شوے دے او مونږ تهٔ زیرے ورکوونکے او ویروونکے جوړ کړے رالیږلے یې۔ او دا قرآن چه دے نو دا مونږ

لِتَقْرَاَهٗ عَلَى النَّاسِ عَلٰى مُكْثٍ وَّنَزَّلْنٰهُ تَنْزِيْلًا ﴿۱۰۶﴾

چه لولے ئے ته هغه | خلقو ته | په قلارۍ قلارۍ | او مونږ نازل کړو دا | په لږ لږ نازلولو سره

چه اُجدا برخے کړے دے چه ته ئے خلقو ته په قلارۍ قلارۍ ولولے ، او مونږ دا لیږلے هم لږ لږ دے

قُلْ اٰمِنُوْا بِهٖٓ اَوْ لَا تُؤْمِنُوْا ۭ اِنَّ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ

ووایه | ایمان راوړئ تاسو په دے | یا ایمان راوړئ مه تاسو | بیشکه | هغه خلق کوم ته چه | ورکړے شوے دے | علم

اے نبی! دے خلقو ته) ووایه چه که تاسو پرے ایمان راوړئ او که نه راوړئ ، بیشکه کوم خلقو ته چه له دے نه دمخه علم

مِنْ قَبْلِهٖٓ اِذَا يُتْلٰى عَلَيْهِمْ يَخِرُّوْنَ لِلْاَذْقَانِ سُجَّدًا ﴿۱۰۷﴾

له دے نه دمخه | هرکله چه هغه لوستلے شی | په دوی باندے | دوی پریوځی | په مخونو خپلو | سجده کوونکی

(کتاب) ورکړے شوے دے ، هرکله چه دَ هغوی په وړاندے ولوستلے شی نو هغوی ورته پړمخے په سجده پریوځی

وَّيَقُوْلُوْنَ سُبْحٰنَ رَبِّنَآ اِنْ كَانَ وَعْدُ رَبِّنَا لَمَفْعُوْلًا ﴿۱۰۸﴾

او دوی وائی | پاک دے | زمونږ رب | بیشکه ده | وعده | زمونږ دَ رب | خامخا پوره کیدونکے

او دا وائی چه زمونږ رب پاک دے ، بیشکه زمونږ دَ رب وعده پوره کیدونکے ده ۔

وَيَخِرُّوْنَ لِلْاَذْقَانِ يَبْكُوْنَ وَيَزِيْدُهُمْ خُشُوْعًا ﴿۱۰۹﴾ السجدة

او دوی پریوځی | په مخونو خپلو | ژړا کوونکی | او (قرآن) زیاتوی دوی | په عاجزئ کښے

او هغوی پړمخے پریوځی او (دَ دے قرآن په آوریدلو) دَ هغوی عاجزی نوره هم زیاته شی

قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ اَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ ۭ اَيًّا مَّا تَدْعُوْا فَلَهُ

ووایه | وُبلئ تاسو | الله | یا وُبلئ تاسو | (په وئیلو دَ) رحمٰن | په کوم نوم چه ئے | تاسو وُبلئ | نو هم دَ هغه دی

ووایه چه که تاسو (دَ) الله (په نوم) بلنه وُکړئ او که (دَ) رحمٰن (په نوم) بلنه وکړئ په کوم نوم چه ئے وُبلئ نو دَ هغهٔ

الْاَسْمَاۗءُ الْحُسْنٰى ۚ وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا

نومونه | دَ ټولو نه ښه | او ډیر په اوچت آواز مهٔ وایه | مونځ خپل | او مهٔ ئے په پټه وایه

ټول نومونه ښائسته دی ، او ته خپل مونځ ډیر په اوچت آواز هم مهٔ لوله او (بالکل) چُپ ئے هم مهٔ لوله

وَابْتَغِ بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيْلًا ﴿۱۱۰﴾ وَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ

او وُلټوه | په مینځ دَ دے کښے | لاره | او ته ووایه | ټول تعریفونه | الله دَ پاره دی

بلکه دَ دے ترمینځهٔ طریقه اختیار کړه ، او ته ووایه ټول تعریفونه دَ الله تعالیٰ دَ پاره دی

الَّذِيْ لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَّلَمْ يَكُنْ لَّهٗ شَرِيْكٌ فِي الْمُلْكِ

کوم چه | نهٔ دے نیولے (ځان دَ پاره) | اولاد | او نشته دے | دَ دهٔ | څوک شریک | په بادشاهئ کښے

کوم چه نهٔ څوک څوک ځوئے جوړ کړے دے او نهٔ دَ دهٔ په بادشاهئ کښے څوک شریک شته

وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ وَلِيٌّ مِّنَ الذُّلِّ وَكَبِّرْهُ تَكْبِيْرًا ﴿۱۱۱﴾ ع

او نشته دے | دَ دهٔ | څوک مددګار | دَ کمزورئ له وجهے نه | او دَ دهٔ لوئی بیان کړه | ښه لوئی

او نهٔ هغه کمزورے دے چه څوک ئے مددګار شی ، او دَ هغهٔ لوئی ډیره ډیره بیانوه ۔

سُوْرَةُ الْكَهْفِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مِائَةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَّعَشْرُ اٰيٰتٍ وَّاثْنَا عَشَرَ رُكُوْعًا

سورۂ کھف پہ مکہ کبنے نازل شوے دہ پہ دے کبنے | (شروع) دَ اللہ پہ نوم چہ لوئے مهربان دیر زیات رحم کوونکے دے | یو سل لس اٰیتونہ او دولس رکوع گانے دی

دَ اللہ پہ نوم شروع کوم چہ لوئے مهربان دَ بیر زیات رحم خاوند دے

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ عَلٰى عَبْدِهِ الْكِتٰبَ وَلَمْ يَجْعَلْ لَّهٗ

ټول تعریفونه | اللہ دَپارہ دی | چا چہ | نازل کړو | پہ خپل بندہ | کتاب (قرآن) | او پیدا ئے نہ کړو پہ هغے کبنے

ټول تعریفونه اللہ دَ پارہ دی چہ پہ خپل (خاص) بندہ ئے دا کتاب رانازل کړو ، او پہ هغے کبنے ئے دَ ذرے هومره

عِوَجًا ۜ ۝١ قَيِّمًا لِّيُنْذِرَ بَاْسًا شَدِيْدًا مِّنْ لَّدُنْهُ وَيُبَشِّرَ

څۀ کوږوالے | سم نیغ | چہ ووېروی (خلق) | دَ عذاب | سخت نہ | دَ دۀ لہ طرفہ نہ | او چہ زیرے ورکړی

کوږ پیچ پرے نۀ ښودو ، سم نیغ لاره ښودونکے (کتاب) چہ دَ هغے سخت عذاب (خلق) ووېروی چہ دَ اللہ دَ طرفہ دے او چہ هغے

الْمُؤْمِنِيْنَ الَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ الصّٰلِحٰتِ اَنَّ لَهُمْ اَجْرًا حَسَنًا ۝٢

مؤمنانو تہ | هغو تہ چہ | عمل کوی | نیک | چہ | دوی دَ پارہ | اجر دے | ښۀ

مؤمنانو لہ زیرے ورکړی څوک چہ نیک کارونہ کوی چہ دَ هغوئی دَ پارہ ډیر ښۀ اجر مقرر دے .

مّٰكِثِيْنَ فِيْهِ اَبَدًا ۝٣ وَّيُنْذِرَ الَّذِيْنَ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا ۝٤

اوسیدونکی بہ وی | پہ هغے کبنے | همیشہ | او چہ ویروی | هغہ خلق چہ | وائی | نیولے دے | اللہ | ځوئے

چہ تل عمری بہ پکبنے اوسیږی ، او چہ هغہ کسان (دَ اللہ دَ ښوکے نہ) ویروی چہ داوائی چہ اللہ (ځان لہ) یو ځوئے جوړ کړے

مَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ وَّلَا لِاٰبَآئِهِمْ ۭ كَبُرَتْ كَلِمَةً تَخْرُجُ

نشتہ دے دوی تہ | پہ دے | څۀ علم | او نۀ دَ دوی پلارانو تہ | لوئے دہ | دا خبره | چہ وځی

دے ، دَ دے نہ دوی تہ څۀ علم شتہ او نۀ دَ دوی پلارنیکۀ تہ وو (دا) ډیره سخته خبره دہ چہ دَ دوئی دَ

مِنْ اَفْوَاهِهِمْ ۭ اِنْ يَّقُوْلُوْنَ اِلَّا كَذِبًا ۝٥ فَلَعَلَّكَ بَاخِعٌ

دَ دوی دَ خولو نہ | دوی نۀ وائی | مګر (صرف) دروغ | نو شاید تۀ | هلاکوونکے یے

خولو نہ وځی یقیناً دا خلق سراسر دروغ وائی (اے پیغمبره) کۀ چرے دوی پہ دے کلام

نَّفْسَكَ عَلٰٓى اٰثَارِهِمْ اِنْ لَّمْ يُؤْمِنُوْا بِهٰذَا الْحَدِيْثِ اَسَفًا ۝٦

دَ خپل ځان | دَ دوی نہ وروستو | کۀ چرے دوی ایمان رانۀ وړی | پہ دے خبره | دَ غم پہ وجہ

ایمان رانۀ وړی ، نو شاید چہ تۀ دَ دوی پہ غم کبنے خپل ځان هلاک کړے .

اِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الْاَرْضِ زِيْنَةً لَّهَا لِنَبْلُوَهُمْ اَيُّهُمْ

بیشکہ مونږ جوړ کړی دی | څۀ چہ | پہ زمکہ دی | ښائست | هغے دَ پارہ | چہ مونږ پہ دوی ازمیښت وکړو | چہ څوک پہ دے کبنے

بیشکہ څۀ چہ پہ زمکہ دی مونږ هغہ دَ زمکے دَ پارہ ښائست جوړ کړے دے دَ پارہ دَ دے چہ مونږ پہ هغو خلقو

اَحْسَنُ عَمَلًا ۝٧ وَاِنَّا لَجٰعِلُوْنَ مَا عَلَيْهَا صَعِيْدًا

زیات ښۀ دے | پہ عمل کبنے | او بیشکہ مونږ | خامخا کوونکی یو | څۀ چہ پہ دے (زمکہ) دی | صفا میدان

ازمیښت وکړو چہ پہ دوی کبنے څوک ښۀ عمل کوونکی دی او (هغہ وخت بہ راشی چہ) مونږ بہ دَ دے زمکے پہ مخ موجود ټول څیزونہ

جُرُزًا ﴿۸﴾ اَمْ حَسِبْتَ اَنَّ اَصْحٰبَ الْكَهْفِ وَالرَّقِيْمِ ۙ كَانُوْا

بےگیاه | آیا تاگمان وکړو؟ | چه | اصحاب کهف (غاروالا) | او غروالا | وو

سپینه ډاګه پریږدو. آیا ستا دا خیال دے چه دَ غار او دَ لیکلے تختئ خاوندان زمونږ (دَ قدرت) په نخښو

مِنْ اٰيٰتِنَا عَجَبًا ﴿۹﴾ اِذْ اَوَى الْفِتْيَةُ اِلَى الْكَهْفِ فَقَالُوْا رَبَّنَآ

زمونږ له نخښونه | عجیبه | هر کله چه پناه واخسته | یو څو ځوانانو | په غار کښے | نو دوی ووئیل | اے ربه زمونږ

کښے یوه ډیره عجیبه نخښه وُو؟ څهٔ وخت چه دغے ځلمو په غار کښے پناه واخسته نو وُئے وئیل چه اے زمونږ ربه!

اٰتِنَا مِنْ لَّدُنْكَ رَحْمَةً وَّهَيِّئْ لَنَا مِنْ اَمْرِنَا رَشَدًا ﴿۱۰﴾

راکړه مونږ ته | له خپل طرف نه | رحمت | او پیدا کړه | مونږ دَپاره | زمونږ په کار کښے | سمون

مونږ ته دَ خپل طرف نه رحمت راکړه او زمونږ دِے کار له دَ سمون خوړو سامان راپیدا کړه.

فَضَرَبْنَا عَلٰٓى اٰذَانِهِمْ فِى الْكَهْفِ سِنِيْنَ عَدَدًا ﴿۱۱﴾ ۙ ثُمَّ بَعَثْنٰهُمْ

نو مونږ پرده واچوله | دَ دوی په غوږونو | په غار کښے | څو کلونه په شمیر | بیا | مونږ راپاڅول دوی

نو مونږ دَ هغوئ په غوږونو باندِ په دغه غار کښے تر ډیرو کلونو (دَ خوب) پرده واچوله. بیا مو راپاڅول چه وګورو

لِنَعْلَمَ اَىُّ الْحِزْبَيْنِ اَحْصٰى لِمَا لَبِثُوْٓا اَمَدًا ﴿۱۲﴾

چه مونږ معلوم کړو | چه چا ته | په دواړو ډلو کښے | په ښهٔ شان یاد دهٔ | دَ پاتے کیدو | موده

چه په دغه دواړو ډلو کښے کوم یو ته (په دے حالت کښے) دَ پاتے کیدو دَ مودے نه زیات واقف دے.

نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَاَهُمْ بِالْحَقِّ ؕ اِنَّهُمْ فِتْيَةٌ اٰمَنُوْا

مونږ بیانوؤ | تا ته | خبر دَ دوی | په حقه | بیشکه دوی | یو څو ځوانان وو | چه ایمان ئے راوړو

مونږ تا ته دَ دوی حالات صحیح صحیح بیانوؤ، بیشکه دا یو څو ځوانان وُو چه په خپل رب

بِرَبِّهِمْ وَزِدْنٰهُمْ هُدًى ﴿۱۳﴾ ۖ وَّرَبَطْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اِذْ

په خپل رب | او مونږ نور زیات ورکړو دوی ته | هدایت | او مونږ مضبوط کړل | دَ دوی زړونه | هر کله چه

باندِ ئے ایمان راوړے وُو او مونږ دوی ته نور زیات هدایت ورکړے وو او مونږ دَ دوئ زړونه (په صبر سره) مضبوط کړی

قَامُوْا فَقَالُوْا رَبُّنَا رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ لَنْ نَّدْعُوَا۟

دوی ودریدل | نو دوی ووئیل | زمونږ رب | رب دے | دَ آسمانونو | او زمکے | هیڅ کله به مونږ ونهٔ بلو

وو څهٔ وخت چه دوئ (پوره مستعد) تیار شول او وئے وئیل چه زمونږ رب دَ آسمانو او زمکے رب دے مونږ به هیڅکله بے دَ هغهٔ

مِنْ دُوْنِهٖٓ اِلٰهًا لَّقَدْ قُلْنَآ اِذًا شَطَطًا ﴿۱۴﴾ هٰٓؤُلَآءِ قَوْمُنَا

بے له دهٔ نه | بل معبود | بیشکه وئیلی به وی مونږ | دغه وخت | بے ځایه خبره | دا دے | زمونږ قوم

نه بل څوک په معبود کیدو نهٔ بلو، کنی ډیره بے ځایه خبره به مو کړی وی، دے خلقو (یعنی) زمونږ خپل قوم

اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً ؕ لَوْلَا يَاْتُوْنَ عَلَيْهِمْ بِسُلْطٰنٍ

دوی نیولی دی | بے له هغهٔ نه | نور معبودان | ولے نهٔ | راوړی دوی | په دوی | څهٔ دلیل

دَ الله نه سیوا نور خلق ځان له معبودان نیولی دی، دوئ په دغه (فرضی) معبودانو باندِ ولے یو ښکاره دلیل نهٔ

بَيِّنٍ ۭ فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ⑮ وَاِذِ

واضح | پس څوک | زیات ظالم دے | له هغه چانه | چه وتړی | په الله باندِ | دروغ | او هرکله چه

دپاسانِ کوی؟ او دَهغه چانه زیات ظالم څوک کیدے شي چه په الله باندِ دَدروغو تهمت تړی، او هرکله چه

اعْتَزَلْتُمُوْهُمْ وَمَا يَعْبُدُوْنَ اِلَّا اللّٰهَ فَاْوٗٓا اِلَى الْكَهْفِ يَنْشُرْ

تاسو دَدوی نه جدا شوئ | او دَکوموچه دوی عبادت کوی | سیوا دَ الله نه | نو پناه واخلئ | په غار کښے | خور به کړی

تاسو هغوئ (مشرکان) او دَکوموچه هغوئ دَ الله تعالیٰ نه سیوا عبادت کوی پریښودل نو په غار کښے پناه واخلئ، ستاسو

لَكُمْ رَبُّكُمْ مِّنْ رَّحْمَتِهٖ وَيُهَيِّئْ لَكُمْ مِّنْ اَمْرِكُمْ مِّرْفَقًا ⑯

تاسو دَپاره | ستاسو رب | خپل رحمت | او پیدا به کړی | تاسو دَپاره | ستاسو په کار کښے | آسانی

رب به تاسو دَپاره خپل رحمت خور کړی او ستاسو کارونو کښے به دَ آسانئ (سامان) پیدا کړی۔

وَتَرَى الشَّمْسَ اِذَا طَلَعَتْ تَّزٰوَرُ عَنْ كَهْفِهِمْ ذَاتَ الْيَمِيْنِ

او ته به ووینے | نمر | هرکله چه راخیژی | (نو) بیچ کیږی | دَدوی له غار نه | ښی طرف ته

او چه نمر راخیژی نو ته به ئے ګورے چه دَهغوئ غار نه ښی اړخ ته بیچ کیږی

وَاِذَا غَرَبَتْ تَّقْرِضُهُمْ ذَاتَ الشِّمَالِ وَهُمْ فِيْ فَجْوَةٍ مِّنْهُ ۭ

او هرکله چه | پریوزی | نو په ډډه تیریږی له دوئ | کس اړخ ته | او دوی | په ارت ځائے کښے دی | دَدے (غار)

او چه ډوبیږی نو دَهغوئ نه کس اړخ ته ډډه کوی او هغوئ دَغار په ارت بیرت ځائے کښے دو

ذٰلِكَ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ ۭ مَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ ۚ

دا | له نخښونه دی | دَ الله | چانه چه | هدایت وکړی | الله | نو هغه | لاره موندونکے دے

دا دَ الله تعالیٰ دَ نخښو نه (یوه نخښه) ده څوک چه الله تعالیٰ په سمه لار واچوی نو هغه په سمه لار روان شی

وَمَنْ يُّضْلِلْ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ وَلِيًّا مُّرْشِدًا ⑰

او څوک چه | هغه بے لارے کړی | نو هیڅ کله به ونه مومے ته | دهٔ دَپاره | څوک دوست | سمه لار ښودونکے

او څوک چه بے لارے کړی نو هیڅوک به دَهغهٔ مددګار لار ښودونکے بیا نهٔ مومے۔

وَتَحْسَبُهُمْ اَيْقَاظًا وَّهُمْ رُقُوْدٌ ڰ وَّنُقَلِّبُهُمْ ذَاتَ الْيَمِيْنِ

او ته به ګمان وکړے په دوی | دَ ویښو | حال دا دے چه دوی | اُوده دی | او مونږ اړوو راړوو دوی | ښی طرف ته

او (اے مخاطبه!) ته به خیال کوې چه دوی ویښ دی حال دا دے چه دوی اوده دی، او مونږ دوی ښی او کس اړخ ته

وَذَاتَ الشِّمَالِ ڰ وَكَلْبُهُمْ بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِالْوَصِيْدِ ۭ

او کس طرف ته | او دَدوی سپے | خورے کړی دی | خپلے دواړه ښنګلے | په دُورشل

اړوو راړوو، او دَ دوئ سپے په دُورشل باندِ خورے ښنګلے ناست دے

لَوِ اطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ لَوَلَّيْتَ مِنْهُمْ فِرَارًا وَّلَمُلِئْتَ مِنْهُمْ رُعْبًا ⑱

کهٔ ورشے ته | په دوی باندِ | نو ته به ګرځے | له دوی نه | په تیښته | او ډک به شے ته | له دوی نه | په ویره

کهٔ تا ورته (هیله غونډ) سر ورښکاره کړے دے نو یستنه به ترے تښتیدلے وے او دَهغوئ رعب به درباندِ خور شوے وو۔

وَكَذٰلِكَ بَعَثْنٰهُمْ لِيَتَسَآءَلُوْا بَيْنَهُمْ ؕ قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ كَمْ

او هم دغه شان | موږ دوی راپاخول | چه پښتنه وکړي د یو بل نه | په خپل مینځ کښې | دوئیل یو ویونکي | له دوی نه | څومره

او دغه شان موږ دوی راویښ کړل چه په خپل مینځ کښې د یو بل نه پښتنه وکړي ، نو یو تن پکښې دوئیل چه تاسو به

لَبِثْتُمْ ؕ قَالُوْا لَبِثْنَا يَوْمًا اَوْ بَعْضَ يَوْمٍ ؕ قَالُوْا رَبُّكُمْ

درنګ وکړو تاسو | دوی دوئیل | موږ پاتے شو | یوه ورځ | یا څه برخه | د ورځے | دوی دوئیل | ستاسو رب

څومره موده دلته تیره کړی وی ؟ دوی دوئیل موږ یوه ورځ یا د یوې ورځے څه حصه تیره کړه (بیا) دوی دوئیل ، ستاسو رب

اَعْلَمُ بِمَا لَبِثْتُمْ ؕ فَابْعَثُوْٓا اَحَدَكُمْ بِوَرِقِكُمْ هٰذِهٖٓ

ښه پوهه دے | په هغه چه څومره پاتے شوئ تاسو | پس ولیږئ | یو له تاسو نه | په دے روپو خپلو | چه دا دی

ښه پوهه دے چه تاسو څومره موده تیره کړه نو (دا بحث پریږدئ خو) یو تن د یوے روپئ سره ښار طرف ته

اِلَى الْمَدِيْنَةِ فَلْيَنْظُرْ اَيُّهَآ اَزْكٰى طَعَامًا فَلْيَاْتِكُمْ بِرِزْقٍ

ښار طرف ته | پس ودِ ګوری | چه کوم یو | ښه پاکیزه دے | طعام | نو هغه دِ راوړی تاسو ته | رزق

ولیږئ ، نو ودِ ګوری چه د کوم خوراک ښه پاکیزه دے نو د هغے نه دِ څه لږ ډیر خوراک تاسو ته

مِّنْهُ وَلْيَتَلَطَّفْ وَلَا يُشْعِرَنَّ بِكُمْ اَحَدًا ﴿١٩﴾ اِنَّهُمْ

له هغے نه | او نرمی دِ کوی | او نهٔ دِ خبروی | په تاسو باندِ | هیڅوک | بیشکه دوی

له راوړی او خلقو سره دِ خوږے پستے (خبرے) کوی او ستاسو حال دِ چا ته نهٔ وائی ، که هغوئ

اِنْ يَّظْهَرُوْا عَلَيْكُمْ يَرْجُمُوْكُمْ اَوْ يُعِيْدُوْكُمْ فِيْ مِلَّتِهِمْ

که غالب شی دوی | په تاسو باندِ | نو سنګسار به کړی تاسو | یا به واپس راولی تاسو | په خپل دین کښے

درباند خبر شو نو سنګسار به مو کړی ، او خپل مذهب ته به مو بیا واپس کړی

وَلَنْ تُفْلِحُوْٓا اِذًا اَبَدًا ﴿٢٠﴾ وَكَذٰلِكَ اَعْثَرْنَا عَلَيْهِمْ لِيَعْلَمُوْٓا

او هیڅ کله به کامیاب نهٔ شئ | په دغه وخت کښے | همیشه | او دغه شان | موږ خبردار کړل خلق | په دوی باندِ | چه پوهه شی دوی

او که چرے داسے وشو نو تاسو به چرے هم کامیاب نهٔ شئ او دغه شان موږ خلق د هغوئ په حال خبر کړل چه پوهه دے

اَنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّاَنَّ السَّاعَةَ لَا رَيْبَ فِيْهَا ؗ

بیشکه | وعده د الله | رښتیا ده | او دا چه | قیامت | هیڅ شک نشته | په دے کښے

پوهه شی چه د الله تعالیٰ وعده رښتیا ده ، او دا چه د قیامت په راتلو کښے هیڅ شک نشته ،

اِذْ يَتَنَازَعُوْنَ بَيْنَهُمْ اَمْرَهُمْ فَقَالُوا ابْنُوْا عَلَيْهِمْ بُنْيَانًا ؕ

هر کله چه دوی جګړه کوله | په خپل مینځ کښے | د دوی په معامله کښے | نو دوی دوئیل | جوړ کړئ | په دوی | عمارت

هر کله چه (د هغے زمانے خلقو) د دوئ په حقله په خپل مینځ کښے جګړه کوله نو دوئ دوئیل چه په دوئ باندِ یو عمارت جوړ

رَبُّهُمْ اَعْلَمُ بِهِمْ ؕ قَالَ الَّذِيْنَ غَلَبُوْا عَلٰٓى اَمْرِهِمْ لَنَتَّخِذَنَّ

رب د دوی | ښه پوهه دے | په دوی | دوئیل | هغو خلقو | چه غالب وو | په خپل کار باندِ | خامخا به جوړ کړو موږ

کړئ ، د هغوئ رب ته د هغوئ حال ښه معلوم دے ۔ نو څوک چه په خپل کار باندِ غالب وو ، هغوئ دوئیل چه موږ خو به

نصف القرآن باعتبار عدد الحروف بان التاء بعد الياء من النصف الاول واللام الثاني من النصف الاخير ١٢

عَلَيْهِم مَّسْجِدًا ﴿٢١﴾ سَيَقُولُونَ ثَلَٰثَةٌ رَّابِعُهُمْ كَلْبُهُمْ وَيَقُولُونَ

په دوی | بو جومات | اوس به وائي دوی | هغه درې دي | څلورم د دوی | سپے دے | او وبه وائي دوی

دلته یوه عبادتخانه جوړه وو. (اوس) څوک به وائي چه هغوئ درې تنه وو او څلورم ئې سپے وو او څوک به وائي چه پنځه

خَمْسَةٌ سَادِسُهُمْ كَلْبُهُمْ رَجْمًا بِالْغَيْبِ وَيَقُولُونَ سَبْعَةٌ

هغه پنځه دي | شپږم د دوی | سپے دے | په ویشتلو | غائبانه | او وبه وائي دوی | هغه اووه دي

تنه وو او شپږم ئې سپے وو ، دا ټولے بے تحقیقه خبرے دی ، او څوک به ووائي چه اووه تنه وو

وَثَامِنُهُمْ كَلْبُهُمْ قُل رَّبِّىٓ أَعْلَمُ بِعِدَّتِهِم مَّا يَعْلَمُهُمْ

او اتم د دوی | سپے د دوی دے | ته ووایه | زما رب | ښه پوهه دے | په تعداد د دوی | نه دي پوهه په دوی باندے

او اتم د دوی سپے وو ، (اے پیغمبره!) ته ووایه زما رب ته د هغوی شمیر ښه معلوم دے ، په دوی

إِلَّا قَلِيلٌ ۚ فَلَا تُمَارِ فِيهِمْ إِلَّا مِرَآءً ظَٰهِرًا وَلَا تَسْتَفْتِ

مګر لږ خلق | پس جګړه مه کوه | په دے (باره) کښے | سیوا د بحث | ظاهري (سرسری) نه | او تپوس مه کوه

باندے صرف لږ غوندے خلق پوهه دي ، پس ته د سرسری بحث نه سیوا د دوی په باره کښے زیات بحث مه کوه او د دوی

فِيهِم مِّنْهُمْ أَحَدًا ﴿٢٢﴾ وَلَا تَقُولَنَّ لِشَا۟ىْءٍ إِنِّى فَاعِلٌ ذَٰلِكَ

په دے (باره) کښے | په هغوئ کښے | له هیچا نه | او مه وایه | هیڅ څیز ته | چه بیشکه زه کوونکے یم | دا

په حقله په دے خلقو کښے د هیچا نه تپوس مه کوه ، او د هیڅ څیز په حقله دا مه وایه چه زه به ئے صبا له

غَدًا ﴿٢٣﴾ إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ ۚ وَٱذْكُر رَّبَّكَ إِذَا نَسِيتَ وَقُلْ

صبا نه | مګر دا چه | وغواړی الله | او یادوه | خپل رب | هرکله چه له تا نه هیر شی | او ووایه

کوم ، سوا د دے نه چه الله تعالیٰ ئے غواړی او خپل رب یادوه هرکله چه خبره درنه هیره شی او ووایه

عَسَىٰٓ أَن يَهْدِيَنِ رَبِّى لِأَقْرَبَ مِنْ هَٰذَا رَشَدًا ﴿٢٤﴾ وَلَبِثُوا۟

امید دے | چه ما ته لاره وښائي | زما رب | زیاته نزدے | له دے نه | د ښیګړے | او دوی پاتے شول

چه امید دے چه زما رب ما ته دا سے لاره وښائي چه د دے نه ډیره نزدے (خبره) را ته سمه کړی ، او دغه خلق

فِى كَهْفِهِمْ ثَلَٰثَ مِا۟ئَةٍ سِنِينَ وَٱزْدَادُوا۟ تِسْعًا ﴿٢٥﴾ قُلِ ٱللَّهُ

په غار کښے | درے | سوه | کاله | او زیات کړل دوی | نهه (کاله نور) | ووایه | الله

په خپل غار کښے نهه کاله د پاسه درے سوه کاله (اوده) پاتے شول . ته ووایه چه الله تعالیٰ

أَعْلَمُ بِمَا لَبِثُوا۟ ۖ لَهُۥ غَيْبُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۖ أَبْصِرْ بِهِۦ وَأَسْمِعْ ۚ

ښه پوهه دے | چه څومره موده دوی پاتے شول | هم د هغه دي | غیب | د آسمانونو | او د زمکے | هغه ښه وینی | او ښه اوری

ته ښه معلومه ده چه څومره موده پاتے شوی وو ، هغه ته د آسمانونو او زمکے ټولے غیبي خبرے معلومے دي هغه هرڅه لیدونکے

مَا لَهُم مِّن دُونِهِۦ مِن وَلِىٍّ وَلَا يُشْرِكُ فِى حُكْمِهِۦٓ أَحَدًا ﴿٢٦﴾ وَٱتْلُ

نشته دوی د پاره | له هغه نه سیوا | څوک مددګار | او هغه نه شریکوی | په خپل حکم کښے | څوک | او ته لوله

او هرڅه اوریدونکے دے ، الله نه سیوا د دوی بل مددګار نشته او نه هغه په خپل حکم کښے بل څوک شریکوی . او ته لوله

مَآ اُوْحِيَ اِلَيْكَ مِنْ كِتَابِ رَبِّكَ ۚ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ ۚ

هغه څه چه | وحی ئے شوې ده | ستا طرف ته | ستا د رب له کتاب نه | نشته هیڅوک بدلونکے | دَ هغهٔ دَ خبرو

کو مه وحی چه درته دَ خپل رب دَ کتاب په ذریعه راغلې ده ، دَ هغهٔ دَ خبرو هیڅ بدل پیدا کیدے نهٔ شی

وَلَنْ تَجِدَ مِنْ دُوْنِهٖ مُلْتَحَدًا ﴿۲۷﴾ وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ

او نهٔ به هیڅ کله ونهٔ مومے | دَ هغهٔ نه سیوا | څهٔ پناه | او راټینګ کړه | خپل ځان | دَ هغه خلقو سره

او دَ هغهٔ نه بغیر به هیچرے تهٔ پناه بیا نهٔ مومے (اے پیغمبره!) تهٔ خپل ځان په هغه چاپوره ټول ساته

يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ

چه بلی | خپل رب | سحر | او ماښام | دوی غواړی | رضا دَ دهٔ

چه سحر ماښام خپل پروردګار یادوی او دَ هغهٔ رضامندی غواړی

وَلَا تَعْدُ عَيْنٰكَ عَنْهُمْ ۚ تُرِيْدُ زِيْنَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَلَا تُطِعْ

او نهٔ دِ تیریږی | ستا سترګے | له دوی نه | چه غواړے تهٔ | ښائست | دَ ژوند دَ دُنیا | او مهٔ منه وینا

او خپلے سترګے دَ هغوئ نه مهٔ اړوه چه دَ دنیا دَ ژوند دَ ښائست طلب ګار شے او دَ هغه چا خبره مهٔ

مَنْ اَغْفَلْنَا قَلْبَهٗ عَنْ ذِكْرِنَا وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ وَكَانَ اَمْرُهٗ

دَ هغه چا | چه غافله کړے دے مونږ | زړهٔ دَ هغهٔ | دَ خپل ذکر نه | او پیروی ئے کړے ده | دَ خواهش خپل | او دے | کار دَ هغهٔ

منه چه دَ هغهٔ زړهٔ مونږ دَ خپل ذکر نه غافله کړے دے او هغهٔ دَ خپل خواهش پیروی وکړه او دَ هغهٔ کار دَ

فُرُطًا ﴿۲۸﴾ وَقُلِ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكُمْ ۚ فَمَنْ شَآءَ فَلْيُؤْمِنْ

له حد نه تیر شوے | او ته ووایه | دا حق دے | له طرف دَ رب ستاسو نه | نو څوک چه | غواړی | نو ایمان دِ راوړی

حد نه تیر شوے دے او دا ووایه چه دا قرآن ستاسو دَ رب له طرف نه برحق دے نو څوک چه غواړی ایمان دِ راوړی

وَّمَنْ شَآءَ فَلْيَكْفُرْ ۙ اِنَّآ اَعْتَدْنَا لِلظّٰلِمِيْنَ نَارًا ۙ اَحَاطَ بِهِمْ

او څوک چه غواړی | نو کافر دِ شی | بیشکه مونږ تیار کړے دے | ظالمانو دَ پاره | اور | راګیر به کړی | دوی

او څوک چه غواړی نو کفر دِ وکړی ، مونږ ظالمانو له داسے اور تیار کړے دے چه دَ هغې پردے به تړے نه دَ هغے

سُرَادِقُهَا ۚ وَاِنْ يَّسْتَغِيْثُوْا يُغَاثُوْا بِمَآءٍ كَالْمُهْلِ يَشْوِي

پردے دَ هغې | او که چرے | دوی فریاد وکړی | نو فریاد به ئے واوری | په اوبو | په شان دَ ویلے شوې تانبے | چه ورِیتوی به

غاړے راچاپیره وی او که چرے هغوی (دَ تندے) فریاد کوی نو دَ ویلے شوې تانبے په شان یشیکے اوبهٔ به ورته ملاویږی چه

الْوُجُوْهَ ۚ بِئْسَ الشَّرَابُ ۚ وَسَآءَتْ مُرْتَفَقًا ﴿۲۹﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

مخونه | بد | څښل دی | او بد دے | ځائے دَ استوګنے | بیشکه | هغه خلق چه | ایمان ئے راوړو

مخونه به وریت کړی ، څومره خراب څښل به وی او څومره خراب ځائے به وی ۔ بیشکه چا چه ایمان راوړے دے

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ اِنَّا لَا نُضِيْعُ اَجْرَ مَنْ اَحْسَنَ عَمَلًا ﴿۳۰﴾

او عمل ئے وکړو | نیک | بیشکه مونږ | نهٔ ضائع کوو | اجر | چا چه | ښهٔ کړے دے | عمل

او نیک کارونه ئے کړی دی نو مونږ دَ هغه چا اجر هیڅکله نهٔ ضائع کوو چه نیک کارونه کوی

أُولَٰٓئِكَ لَهُمْ جَنَّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهِمُ ٱلْأَنْهَٰرُ يُحَلَّوْنَ

هم داخلق دی | چه دوئ پاره | باغونه دی | دَ همیشه اوسیدو | بهیږی | لاندِ دَ دے نه | نهرونه | اچولے به شی دوئ ته

داهغه خلق دی چه دوئ له همیشه سمسور پاتے کیدو ونکی باغونه دی چه لاندِ به ترے نه ولے بهیږی ، دَ سرو زرو

فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ وَيَلْبَسُونَ ثِيَابًا خُضْرًا مِّن سُندُسٍ

په هغے کښے | کنګن | دَ سرو زرو | اودوی به اغوندی | جامے | شنے | دَ باریکو ریښمو

کنګن به ورته (په لاسونو کښے) اچولے شی ، او شنے نرئ او غټے ریښمینے جامے به

وَإِسْتَبْرَقٍ مُّتَّكِـِٔينَ فِيهَا عَلَى ٱلْأَرَآئِكِ ۚ نِعْمَ ٱلثَّوَابُ وَحَسُنَتْ

او غټو ریښمو | تکیه لګوونکی به وی | په هغے کښے | په تختونو | ښهٔ | جزاده | او ښهٔ دے

اغوندی ، په تختونو به ئے تکیه لګولے وی ، څنګه ښهٔ بدله ده ، او څنګه ښهٔ

مُرْتَفَقًا ﴿٣١﴾ وَٱضْرِبْ لَهُم مَّثَلًا رَّجُلَيْنِ جَعَلْنَا لِأَحَدِهِمَا جَنَّتَيْنِ

ځائے دَ ارام | او بیان کړه | دوی ته | مثال (حال) | دَ دوو سړو | مونږ جوړ کړل | یو له دوی نه | دوه باغونه

ځائے دے . او اے پیغمبره!) ته دوئ ته دَ هغه دوه کسانو حال واوروه چه مونږ پکښے یو ته دَ انګورو دوه باغونه

مِنْ أَعْنَٰبٍ وَحَفَفْنَٰهُمَا بِنَخْلٍ وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمَا زَرْعًا ﴿٣٢﴾

دَ انګورو دَ اونو | او مونږ راګیر کړل دا دواړه | دَ کجورو (په اونو) | او جوړ کړو مونږ | په مینځ دَ دے کښے | فصل

ورکړی وو او هغه مو دَ کجورو په اونو کښے راګیر کړی وو او دَ هغے باغونو ترمینځه مو (شنهٔ زرغون) پټی جوړ کړی وو.

كِلْتَا ٱلْجَنَّتَيْنِ ءَاتَتْ أُكُلَهَا وَلَمْ تَظْلِم مِّنْهُ شَيْـًٔا ۚ وَفَجَّرْنَا

دواړو | باغونو به | راوړلے | میوے خپلے | او نهٔ | به ئے کمولو | له میوئ نه | څهٔ څیز | او جاری کړے وو مونږ

دواړو باغونو به خپلے پوره پوره میوے ورکولے او دَ دواړو پیداوار کښے به هیڅ قسم له کے نهٔ راتلو او مونږ دَ دغے

خِلَٰلَهُمَا نَهَرًا ﴿٣٣﴾ وَكَانَ لَهُۥ ثَمَرٌ فَقَالَ لِصَٰحِبِهِۦ وَهُوَ يُحَاوِرُهُۥٓ

دَ دواړو په مینځ کښے | لښتے | او وے | دهٔ لره | میوے | نو دهٔ وویل | خپل ملګری ته | او دهٔ خبرے کولے دَ هغه سره

دواړو (باغونو) ترمینځه دَ اوبو لښتے بهیولے وو . او دَ دِ سړی نورهم میوه وغیره وه نو هغهٔ خپل ملګری ته په خبرو خبرو کښے

أَنَا۠ أَكْثَرُ مِنكَ مَالًا وَأَعَزُّ نَفَرًا ﴿٣٤﴾ وَدَخَلَ جَنَّتَهُۥ

زهٔ | ډیر یم | له تا نه | په مال کښے | او زیات عزتمند یم | په لحاظ دَ خلقو | او دے داخل شو | په خپل باغ کښے

وویل چه زهٔ تا نه په مال کښے هم زیات یم او په ملګرو ساتو هم غالب یم او هغه خپل باغ ته ورننوتو .

وَهُوَ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِۦ قَالَ مَآ أَظُنُّ أَن تَبِيدَ هَٰذِهِۦٓ أَبَدًا ﴿٣٥﴾

او دے | ظلم کوونکے وو | په خپل ځان | دهٔ وویل | زهٔ ګمان نهٔ کوم | چه برباد به شی | دا | چرے

او په خپل ځان ئے زیاتے کولو . هے وئیل چه زهٔ خیال نهٔ کوم چه دا (باغ) به برباد شی

وَمَآ أَظُنُّ ٱلسَّاعَةَ قَآئِمَةً وَلَئِن رُّدِدتُّ إِلَىٰ رَبِّى لَأَجِدَنَّ

او زهٔ ګمان نهٔ کوم | چه قیامت به | قائم شی | او که چرے | زهٔ واپس کړے شوم | خپل رب ته | نو خامخا به بیا مومم

او نهٔ دا خیال کوم چه قیامت به (چرے) راشی . او که زهٔ خپل رب ته (بالفرض) پسته ورسیدم نو دَ دے

خَيْرًا مِّنْهَا مُنْقَلَبًا ﴿٣٦﴾ قَالَ لَهٗ صَاحِبُهٗ وَهُوَ يُحَاوِرُهٗٓ اَكَفَرْتَ

د بیرته | له دے نه | ځائے د ورتلو | وویئیل | ده ته | ملګری د ده | او هغه د ده سره خبرے کولے | آیا ته کفر کوے

(باغ) نه به هم بهتر ځائے بیا موموم (په دے بانډ) هغه ملګری ورته وویئیل کوم چه ورسره خبرے کولے چه آیا ته

بِالَّذِيْ خَلَقَكَ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ ثُمَّ سَوّٰىكَ

هغه سره چا چه | ته ئے پیدا کړے | له خاورے نه | بیا | له نطفے نه | بیا | ئے ته پوره جوړ کړے

د هغه ذات نه انکار کوے کوم چه ته ئے د خاورے نه پیدا کړے؟ بیائے د څاڅکی (اوبو) نه شروع کړے او بیائے سم دم

رَجُلًا ﴿٣٧﴾ لٰكِنَّا۠ هُوَ اللّٰهُ رَبِّيْ وَلَآ اُشْرِكُ بِرَبِّيْٓ اَحَدًا ﴿٣٨﴾

سړے | لیکن زه (وایم) | هم هغه الله | زما رب دے | او زه نه شریکوم | خپل رب سره | هیڅوک

سړے جوړ کړے۔ لیکن زه خو دا وایم چه هم الله تعالیٰ زما رب دے او زه خپل رب سره څوک نه شریکوم۔

وَلَوْلَآ اِذْ دَخَلْتَ جَنَّتَكَ قُلْتَ مَا شَآءَ اللّٰهُ ۙ لَا قُوَّةَ اِلَّا

او ولے نه | هر کله چه ته داخل شوے | خپل باغ ته | تا وویئیل | څه چه الله غوښتلی وی | نشته دے قوت | مګر صرف

او هر کله چه ته خپل باغ ته ورننوتے نو تا داسے ولے ونه وئیل چه الله چه څه غواړی (هغه کیږی) د الله د مدد نه

بِاللّٰهِ ۚ اِنْ تَرَنِ اَنَا اَقَلَّ مِنْكَ مَالًا وَّوَلَدًا ﴿٣٩﴾ فَعَسٰى رَبِّيْٓ

د الله (ورکړے شوے) | که ګورے ته ماته | چه زه کم یم | له تا نه | په مال کښے | او اولاد کښے | نو شاید چه | زما رب

بغیر هیڅ طاقت نشته، که چرے ته ما په مال او اولاد کښے خپل ځان نه کم ګورے، نو نزدے ده چه زما رب

اَنْ يُّؤْتِيَنِ خَيْرًا مِّنْ جَنَّتِكَ وَيُرْسِلَ عَلَيْهَا حُسْبَانًا مِّنَ السَّمَآءِ

ما ته راکړی | ښه | ستا له باغ نه | او راولیږی | په هغے (باغ) | آفت | له آسمان نه

ما له له تا نه ښه باغ راکړی او په دے باغ یانڼ د بره نه یو غیبی آفت راولی

فَتُصْبِحَ صَعِيْدًا زَلَقًا ﴿٤٠﴾ ۙ اَوْ يُصْبِحَ مَآؤُهَا غَوْرًا فَلَنْ تَسْتَطِيْعَ

بیا هغه شی | د خاورے میدان | خویونکے | یا شی | او به د هغے | ښکته | بیا ته هیڅکله ونه کړے شے

او دا (باغ) آواره ښو بیند ه میدان پاتے شی۔ یا د دے باغ اوبه په کونړه لاهے شی او بیا ئے ته (د راخیژولو)

لَهٗ طَلَبًا ﴿٤١﴾ وَاُحِيْطَ بِثَمَرِهٖ فَاَصْبَحَ يُقَلِّبُ كَفَّيْهِ عَلٰى مَآ اَنْفَقَ

د دے | تلاش | او چاپیره شو (عذاب) | په میوو د هغه | پس شو هغه | چه مړوړل ئے | خپل لاسونه | په هغه څه چه | ده لګولی وو

هیڅ کوشش ونه کړے شے نو د هغه د میوو نه عذاب راچاپیره شو نو هغه په هغه سرمایه لاسونه ومړوړل کوم چه

فِيْهَا وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا وَيَقُوْلُ يٰلَيْتَنِيْ لَمْ اُشْرِكْ

په هغے کښے | او هغه | راپریوتے وو | په خپلو چتونو | او وئے وئیل | اے کاش! | ما نه شریکولے

هغه په هغے کښے لګولے وه او د هغے باغ ټول څپرونه راپریوتی وو، او دا به ئے وئیل چه اے کاش! ما د خپل رب

بِرَبِّيْٓ اَحَدًا ﴿٤٢﴾ وَلَمْ تَكُنْ لَّهٗ فِئَةٌ يَّنْصُرُوْنَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

خپل رب سره | هیڅ کس | او نه شو | ده د پاره | هیڅ ټولے | چه د ده مدد ئے کړے وے | د الله نه سیوا

سره هیڅوک شریک کړے نه وے۔ او هیڅ یو داسے ټولے ورسره ملګرے نه شو چه د الله په مقابله کښے ئے د هغه مدد

وَمَا كَانَ مُنْتَصِرًا ﴿۴۳﴾ هُنَالِكَ الْوَلَايَةُ لِلّٰهِ الْحَقِّ ۚ هُوَ خَيْرٌ ثَوَابًا

اونهٔ وو بچپله دَ بدلے اخستو قابل | په دا سے موقع | اختیار | دَ الله دَ پاره دے | برحق | هغه | بهتر دے | په ثواب ورکولو کښے

کړے وے اونهٔ ئے (زمونږه نه) بدله اخستے شوه ، په دا سے وخت کښے کاروَنه سمول دَ برحق خدائے کار دے ۔ هم هغه بهتر ثواب

وَخَيْرٌ عُقْبًا ﴿۴۴﴾ وَاضْرِبْ لَهُمْ مَثَلَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَآءٍ

او بهتر دے | په بدله ورکولو کښے | او بیان کړه | دوئ دَ پاره | مثال | دَ ژوند دَ دنیا | چه هغه په شان دَ اوبو دے

ورکوونکے او غوره بدله ورکوونکے دے ۔ او (اے نبی! تهٔ) دوی ته دَ دُنیا دَ ژوند مثال بیان کړه (هغه داسے دے) لکه چه

اَنْزَلْنٰهُ مِنَ السَّمَآءِ فَاخْتَلَطَ بِهٖ نَبَاتُ الْاَرْضِ فَاَصْبَحَ

چه مونږ دا رالیږلی دی | له آسمان نه | پس ورګډ شو | دَ دے په ذریعه | شینکے | دَ زمکے | بیا هغه شوه

اُوبه ، کومے چه مونږ دَ آسمان نه راؤورولے ، بیا دَ هغے په وجه ښهٔ ګور شینکے راووتو کیرږی او بیا هغه ذرے

هَشِيْمًا تَذْرُوْهُ الرِّيٰحُ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ مُّقْتَدِرًا ﴿۴۵﴾

چوره چوره | چه الوزوی هغے لره | هواګانے | او دے الله | هر څیز باندِ | قدرت لرونکے

ذرے شی چه یادونه ئے (اخوا دیخوا) الوزوی را الوزوی او الله تعالیٰ په هر څیز پوره پوره قدرت لری

اَلْمَالُ وَالْبَنُوْنَ زِيْنَةُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ

مال | او ځامن | زینت دی | دَ دنیا په ژوند کښے | او باقی پاتے کیدونکی | نیکیانے | غوره دی

مال او اولاد خو تش دَ دنیا دَ ژوندون ښائست دے او باقی پاتے کیدونکی نیک عملونه چه دی ، نو هغه ستا

عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ اَمَلًا ﴿۴۶﴾ وَيَوْمَ نُسَيِّرُ الْجِبَالَ وَتَرَى

ستا دَ رب په نزد | په ثواب کښے | او ډیر ښهٔ دی | په اُمید کښے | او په کومه ورځ | چه روان به کړو مونږ | غرونه | او تهٔ به وینے

دَ رب سره دَ ثواب په حقله هم ښهٔ دے او دَ اُمید ساتلو په حقله هم ښهٔ دے او په کومه ورځ چه مونږ غرونه لرے کړو او تهٔ به

الْاَرْضَ بَارِزَةً ۙ وَّحَشَرْنٰهُمْ فَلَمْ نُغَادِرْ مِنْهُمْ اَحَدًا ﴿۴۷﴾

زمکه | هوار میدان | او مونږ به دوی جمع کړو | بیا به مونږ پرے نهٔ ږدو | له دوی نه | هیڅوک

ووینے چه ټوله زمکه یو هوار میدان پاتے شوے دے او مونږ به خلق جمع کړو نو هیڅوک به پکښے باقی پرے نهٔ ږدو ۔

وَعُرِضُوْا عَلٰى رَبِّكَ صَفًّا ؕ لَقَدْ جِئْتُمُوْنَا كَمَا خَلَقْنٰكُمْ

او دوی به پیش کړے شی | ستا دَ رب په وړاندِ | په قطار کښے | بیشکه تاسو راغلئ مونږ ته | څنګه چه مونږ پیدا کړی وئ

او ټول به ستا دَ رب په وړاندِ په قطار ودرېدونکے (ولاړ) پیش کولے شی (او ورته به وویلے شی) څنګه چه مونږ تاسو په اول ځل پیدا کړی وئ

اَوَّلَ مَرَّةٍ ۭ بَلْ زَعَمْتُمْ اَلَّنْ نَّجْعَلَ لَكُمْ مَّوْعِدًا ﴿۴۸﴾ وَوُضِعَ الْكِتٰبُ

په اول ځل | بلکه تاسو ګمان کولو | چه مونږ به هیڅ کله مقرر نهٔ کړو | تاسو دَ پاره | څهٔ میعاد | کښیښه ښودے شی | عملنامه

هغسے (نن) تاسو زمونږ مخے ته راغلی یئ لیکن ستاسو خو دا خیال وو چه مونږ به در باندِ (دا) مقرر وخت نهٔ راولو او عمل نامه به کښیښودے شی

فَتَرَى الْمُجْرِمِيْنَ مُشْفِقِيْنَ مِمَّا فِيْهِ وَيَقُوْلُوْنَ يٰوَيْلَتَنَا مَالِ

پس وبه وینے | ګناهګاران | ویریدونکی | له هغه څهٔ نه چه په هغے کښے دی | او وُبه وائی | اے افسوس! | څهٔ حال دے

نو تهٔ به مجرمان ووینے چه دَ هغے (دَ لیک) نه ویریږی او دا به وائی چه هائے زمونږ بده نصیبه ! دَ دے عمل نامے خو عجیبه

هٰذَا الْكِتٰبِ لَا يُغَادِرُ صَغِيْرَةً وَّلَا كَبِيْرَةً اِلَّآ اَحْصٰهَا

دَدے | عملنامے | چه نهٔ پریږدی | هیڅ وړه ګناه | او نهٔ | لویه | مګر راګیره کړے ئے ده

حال دا دے چه هیڅ یوه ګناه نهٔ وړه او نهٔ لویه ئے باقی پریښودے ده خو هره یوه ئے لیکلے ده۔

وَوَجَدُوْا مَا عَمِلُوْا حَاضِرًا ؕ وَلَا يَظْلِمُ رَبُّكَ اَحَدًا ﴿۴۹﴾ ع

او بیا به مومی | هغه څه چه | دوی کړی دی | (خپل) وړاندې | او ظلم به و نهٔ کړی | رب ستا | په هیچا

او کوم عملونه چه ئے کړی هغه دی به ټول موجود بیا مومی ، او ستا رب په هیچا زیاتے نهٔ کوی

وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ ؕ

او هر کله چه وویل مونږ | فرښتو ته | سجده وکړئ | آدم ته | پس سجده وکړه دوی | سیوا | د ابلیس نه

او هر کله چه مونږ فرښتو ته حکم وکړو چه تاسو آدم علیه السلام ته سجده وکړئ نو ټولو سجده وکړه مګر ابلیس (ونه کړه)

كَانَ مِنَ الْجِنِّ فَفَسَقَ عَنْ اَمْرِ رَبِّهٖ ؕ اَفَتَتَّخِذُوْنَهٗ وَذُرِّيَّتَهٗٓ

هغه وو | له پیریانو نه | پس هغهٔ نافرمانی وکړه | د خپل رب د حکم | نو آیا تاسو جوړوئ هغه | او | د هغهٔ اولاد

هغه په (اصل کښے) پیرے وو نو د خپل رب د حکم نه ئے نافرمانی وکړه نو آیا اوس تاسو هغه او د هغهٔ اولاد

اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِىْ وَهُمْ لَكُمْ عَدُوٌّ ؕ بِئْسَ لِلظّٰلِمِيْنَ بَدَلًا ﴿۵۰﴾

دوستان | زما نه سیوا | او هغه دی | ستاسو | دښمنان | بد دے | د ظالمانو د پاره | بدله

زما په مقابله کښے په دوستئ نیسئ ، حال دا چه هغوئ خو ستاسو (څرګند) دښمنان دی ظالمانو له څومره خرابه بدله ورکړے شو

مَآ اَشْهَدْتُّهُمْ خَلْقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلَا خَلْقَ اَنْفُسِهِمْ ۪

نهٔ وو حاضر کړی ما دوی | (په وخت) د پیدا ونښت | د آسمانونو | او د زمکے | او نهٔ (په وخت) د پیدا ونښت د دوی د ځانونو

ما نهٔ خو دوئ د آسمانونو او د مزکے د پیدا ونښت په وخت کښے رابللی وو او نهٔ د دوئ د خپل پیدا ونښت په وخت کښے

وَمَا كُنْتُ مُتَّخِذَ الْمُضِلِّيْنَ عَضُدًا ﴿۵۱﴾ وَيَوْمَ يَقُوْلُ نَادُوْا

او نهٔ یم زهٔ | نیوونکے | د ګمراه کوونکو | مددګاران | او په کومه ورځ | چه الله وفرمائی | راوغواړئ

او زهٔ داسے (عاجزه) نهٔ وم چه ګمراه کوونکی به م خپل مددګاران جوړول او په کومه ورځ چه (الله) وفرمائی چه زما

شُرَكَآءِىَ الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ فَدَعَوْهُمْ فَلَمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَهُمْ وَجَعَلْنَا

زما شریکان | په کوم چه | تاسو ګمان کولو (د معبود) | پس دوی آ هغوی راوبلی | نو هغوی به جواب ورکوی | دوی ته | او مونږ به جوړ کړو

هغه شریکان راوغواړئ په کوم چه تاسو (د معبودانو) خیال کولو نو دوئ به ئے راوبلی خو هغوئ به هیڅ جواب ورنه کړی

بَيْنَهُمْ مَّوْبِقًا ﴿۵۲﴾ وَرَاَ الْمُجْرِمُوْنَ النَّارَ فَظَنُّوْٓا اَنَّهُمْ مُّوَاقِعُوْهَا

د دوی په مینځ کښے | یوه پرده | او وبه وینی | مجرمان | اور | نو دوی به یقین وکړی | چه دوی | پریوتونکی دی به دے کښے

او مونږ به د دوئ (او د معبودانو) تر مینځه یوه پرده ودروو او مجرمان به په خپلو سترګو دوزخ ووینی او دا یقین به ئے راشی چه

وَلَمْ يَجِدُوْا عَنْهَا مَصْرِفًا ﴿۵۳﴾ ع وَلَقَدْ صَرَّفْنَا فِىْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ

او دوی به نهٔ مومی | له هغے نه | خلاص (د بچ وتلو) | او بیشکه | په رنګ رنګ مونږ بیان کړل | په دے قرآن کښے

دوی په کښے ورغوزیدونکی دی او د هغے نه د بچ کیدو به هیڅ لار نهٔ مومی ، او مونږ په دے قرآن کښے د خلقو (د پوهولو) د پاره

لِلنَّاسِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ ؕ وَكَانَ الْاِنْسَانُ اَكْثَرَ شَیْءٍ جَدَلًا ﴿۵۴﴾

دَ پاره دَ خلقو | دَ هر قسم | مثالونه | او دے | انسان | دَ هر څیز نه زیات | جګړه مار

رنګ رنګ مثالونه بیان کړل ، خو انسان په جګړه کولو کښې دَ هر څه نه سیوا دے .

وَمَا مَنَعَ النَّاسَ اَنْ یُّؤْمِنُوْٓا اِذْ جَآءَهُمُ الْهُدٰی وَیَسْتَغْفِرُوْا

او نه دی منع کړی | خلق | چه دوی ایمان راوړی | هر کله چه راغلو دوی ته | هدایت | او چه بخښنه وغواړی

او دا خلق دَ هدایت راتلو نه پس نو څه څیز دَ ایمان راوړلو نه او دَ خپل رب نه دَ بخښنے غوښتلو نه

رَبَّهُمْ اِلَّآ اَنْ تَاْتِیَهُمْ سُنَّةُ الْاَوَّلِیْنَ اَوْ یَاْتِیَهُمُ الْعَذَابُ

له رب خپل نه | سیوا دَ دے نه چه | راشی دوی ته | طریقه دَ بخوانو خلقو | یا راشی دوی ته | عذاب

منع کړی دی؟ خو بس دا چه (دوی انتظار کوی چه) دَ بخوانو خلقو غوندې معامله دِ ورسره وشی یا دِ ورباندې

قُبُلًا ﴿۵۵﴾ وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِیْنَ اِلَّا مُبَشِّرِیْنَ وَمُنْذِرِیْنَ ۚ وَیُجَادِلُ

مخامخ | او مونږ نه لیږو | پیغمبران | مګر زیری ورکوونکی | او ویروونکی | او جګړه کوی

مخامخ عذاب راشی . او مونږ پیغمبران صرف په دے وجه رالیږو چه خلقو ته زیرے واوری او عذاب نه ئے وویروی او کوم

الَّذِیْنَ كَفَرُوْا بِالْبَاطِلِ لِیُدْحِضُوْا بِهِ الْحَقَّ وَاتَّخَذُوْٓا اٰیٰتِیْ

هغه خلق | چه کافران شول | په ناحقه | چه بے اثره کړی دوی | په دے سره | حقه (خبره) | او ونیول دوی | آیتونه زما

خلق چه منکران دی په ناحقه جګړے کوی چه حق پرے بے اثره کړی ، او هغوی خو زما دَ قدرت)

وَمَآ اُنْذِرُوْا هُزُوًا ﴿۵۶﴾ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِاٰیٰتِ رَبِّهٖ

او هغه څه | چه دوی پرے ویرولے شی | په توقه | او څوک دے | زیات ظالم | له هغه چا نه | چه پوهه کړے شی | په آیتونو | دَ رب خپل

نخښے او دَ کوم څیز نه چه ویرولے شوی (هغه ټول) توقے مسخرے ګڼړی او دَ هغه چا نه عنې ظالم څوک کیدے شی؟ چه دَ خپل رب

فَاَعْرَضَ عَنْهَا وَنَسِیَ مَا قَدَّمَتْ یَدٰهُ ؕ اِنَّا جَعَلْنَا

نو هغه مخ واړوی | له هغے نه | او هغه هیر کړی | هغه څه | چه وړاندې لیږلی دی | دواړو لاسونو دَ ده | بیشکه مونږ اچولی دی

(دَ قدرت) دَ نخښو په ذریعه ورته نصیحت وکړے شی نو هغه ترے نه مخ وګرځوی او خپل (دَ ګناه) کارونه هیر کړی او مونږ دَ

عَلٰی قُلُوْبِهِمْ اَكِنَّةً اَنْ یَّفْقَهُوْهُ وَفِیْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا ؕ

دَ دوی په زړونو باندې | پردے | چه دوی په دے پوهه (نه) شی | او دَ دوی په غوږونو کښے | درون والے

دوی په زړونو باندې پردے راغوړځولے دی چه ګنی په دے (قرآن) دِ پوهه شی او دوی مو په غوږونو درانه

وَاِنْ تَدْعُهُمْ اِلَی الْهُدٰی فَلَنْ یَّهْتَدُوْٓا اِذًا اَبَدًا ﴿۵۷﴾ وَرَبُّكَ

او که چرے | ته دوی راوبلے | هدایت طرف ته | نو دوی به هیڅکله لار بیا نه مومی | په دغه وخت | همیشه | او ستا رب

کړی دی او که ته ئے (هر څومره) سمے لارے ته راوبلے خو دوی به هیڅرے سمے لارے ته رانه شی . او ستا رب

الْغَفُوْرُ ذُو الرَّحْمَةِ ؕ لَوْ یُؤَاخِذُهُمْ بِمَا كَسَبُوْا لَعَجَّلَ لَهُمُ

بخښونکے | خاوند دَ رحمت دے | که چرے هغه نیولے دوی | په هغه څه چه کړی دی دوی | نو هغه به زر لیږلے وو | دوی ته پاره

بخښونکے ډیر رحم کوونکے دے . که الله تعالیٰ دَ دوی په عملونو باندې دَ دوی نیول کولے نو سمدستی به ئے پرے

الْعَذَابَ ؕ بَلْ لَّهُمْ مَّوْعِدٌ لَّنْ يَّجِدُوْا مِنْ دُوْنِهٖ مَوْئِلًا ﴿٥٨﴾

عذاب | بلکه | دوی دَپاره | یو میعاد دے | چه هیڅکله به دوی بیا نهٔ مومی | دَ دے نه سیوا | دَ پناه ځائے

عذاب راوستے وو، خو دوی له ئے داسے یو وخت مقرر کړے وو چه دَ هغے نه په هیڅ ځائے کښے پناه موندلے نهٔ شی

وَتِلْكَ الْقُرٰۤى اَهْلَكْنٰهُمْ لَمَّا ظَلَمُوْا وَجَعَلْنَا لِمَهْلِكِهِمْ مَّوْعِدًا ﴿٥٩﴾ ع

او دا | کلی چه | مونږ دوی هلاک کړل | هرکله چه دوی ظلم وکړو | او مونږ مقرر کړو | دَ دوی دَ تباهئ دَپاره | یو مقرر وخت

او دغه کلی هرکله چه دوی ظلم وکړو مونږ تباه کړل او مونږ دَ دوی دَ تباهئ دَپاره یو وخت مقرر کړے وو

وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِفَتٰىهُ لَاۤ اَبْرَحُ حَتّٰۤى اَبْلُغَ مَجْمَعَ الْبَحْرَيْنِ

او هرکله چه ووئیل | موسیٰؑ | خپل ځوان (شاګرد) ته | زهٔ به نهٔ ودریږم | ترڅو چه | زهٔ ورسیږم | دملاویدو ځائے | دَ دوؤ دریابونو

او هرکله چه موسیٰ خپل شاګرد ته ووئیل چه زهٔ به روان یم ترڅو چه زهٔ دوه بندئ ته ورسم

اَوْ اَمْضِىَ حُقُبًا ﴿٦٠﴾ فَلَمَّا بَلَغَا مَجْمَعَ بَيْنِهِمَا نَسِيَا حُوْتَهُمَا فَاتَّخَذَ

یا به روان یم | تر کلونو | بیا هرکله چه هغه دواړه ورسیدل | ځائے دَ ملاویدو ته | دَ دواړو ترمینځه | نو هیر کړو دوی | کب خپل | پس ونیوله هغهٔ

کنی په کلونو کلونو به دغسے منزل کوم نو هرکله چه دواړه تنه هغے دوه بندئ ته ورسیدل نو خپل مهے ترے هیر شو نو هغهٔ په

سَبِيْلَهٗ فِى الْبَحْرِ سَرَبًا ﴿٦١﴾ فَلَمَّا جَاوَزَا قَالَ لِفَتٰىهُ اٰتِنَا

لاره خپله | په دریاب کښے | په شان دَ سرنګ | بیا هرکله | چه دوی وړاندې تیر شول | نو ئے ووئیل | خپل شاګرد ته | راوړه مونږ ته

دریاب کښے (ځان له) لاره ونیوله چه یو سرنګ ئے جوړ وو. نو هرکله چه دواړه وړاندې تیر شول نو موسیٰؑ خپل شاګرد ته ووئیل چه

غَدَآءَنَا ؗ لَقَدْ لَقِيْنَا مِنْ سَفَرِنَا هٰذَا نَصَبًا ﴿٦٢﴾ قَالَ اَرَءَيْتَ اِذْ

ناشته زمونږ | بیشکه ومونده مونږ | دَ خپل دے سفر نه | تکلیف | هغهٔ ووئیل | آیا تا ولیدل؟ | هرکله چه

ناشته راوړه، مونږ خو په دے نننی منزل باندې ډیر ستړی شو. هغهٔ ورته ووئیل آیا تا ونهٔ لیدل؟

اَوَيْنَاۤ اِلَى الصَّخْرَةِ فَاِنِّىْ نَسِيْتُ الْحُوْتَ ؗ وَمَاۤ اَنْسٰنِيْهُ اِلَّا

مونږ ناست وو | دَ ګټ خوا ته | نو بیشکه ما | هیر کړو | کب | او هیر نهٔ کړو له ما نه | مګر

هرکله چه مونږ دَ هغه ګټ خوا ته ناست وو نو زما نه کب (هم هلته) هیر شو او زما نه (تا ته) دَ هغے ذکر کول

الشَّيْطٰنُ اَنْ اَذْكُرَهٗ ۚ وَاتَّخَذَ سَبِيْلَهٗ فِى الْبَحْرِ ۖ عَجَبًا ﴿٦٣﴾ قَالَ

شیطان | چه ما ذکر کړے وے دَ هغے | او هغهٔ ونیوله | خپله لاره | په دریاب کښے | په عجیبه طریقه | موسیٰؑ ووئیل

شیطان هیر کړل. او کب خو په دریاب کښے ځان له په عجیبه شان لار جوړوله موسیٰؑ ووئیل

ذٰلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ ۖ فَارْتَدَّا عَلٰۤى اٰثَارِهِمَا قَصَصًا ﴿٦٤﴾ فَوَجَدَا

هم دا دے (هغه ځائے) | چه مونږ لټولو | بیا هغه دواړه راواپس شول | په نخښو دَ قدمونو خپلو | چه کتل ئے | پس بیا موندو دوی

چه هم دا خو هغه ځائے دے چه مونږ لټولو، نو دواړه په خپلو قدمونو پسے اَړدلی روان شول، نو هغوی زمونږ په

عَبْدًا مِّنْ عِبَادِنَاۤ اٰتَيْنٰهُ رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِنَا وَعَلَّمْنٰهُ مِنْ لَّدُنَّا

یو بنده | زمونږ له بندګانو نه | چه ورکړے وو مونږ دهٔ ته | رحمت | له خپل ځان نه | او مونږ علم ورکړے وو دهٔ ته | له خپل ځان نه

بندګانو کښے یو بنده بیا موندو، چه مونږ ورباندې خپل فضل کړے وو او دَ خپل طرف نه موور ته یو (خاص) علم

عِلۡمًا ﴿٦٥﴾ قَالَ لَهٗ مُوۡسٰی هَلۡ اَتَّبِعُكَ عَلٰۤی اَنۡ تُعَلِّمَنِ مِمَّا

بوعلم | دوئیل | هغهٔ ته | موسیٰ ؑ | آیا پیروی وکړم ستا | په دې (خبره) چه ته زده کړې ماته له هغهٔ نه

ښودلے وو۔ موسیٰ هغهٔ ته ووئیل آیا زهٔ تا سره لاړ شم؟ په دے شرط چه ته ماته د ښیګړے هغه خبرے

عُلِّمۡتَ رُشۡدًا ﴿٦٦﴾ قَالَ اِنَّكَ لَنۡ تَسۡتَطِيۡعَ مَعِیَ صَبۡرًا ﴿٦٧﴾

چه ښودے شوی دی تا ته | څهٔ ښیګړه | دهٔ ووئیل | بیشکه تهٔ به | هیڅ کله ونهٔ کړے شے | ما سره | صبر

وښایئے کومے چه تا ته ښودے شوی دی، (خضرؑ) ووئیل چه تهٔ ما سره په پاتے کیدو به صبر ونهٔ کړے شے۔

وَكَيۡفَ تَصۡبِرُ عَلٰی مَا لَمۡ تُحِطۡ بِهٖ خُبۡرًا ﴿٦٨﴾ قَالَ سَتَجِدُنِیۤ اِنۡ شَآءَ

او څنګه به ته صبر وکړے | په هغه څهٔ | چه احاطه نهٔ ده کړے تا په هغے | د پوهیدو | دهٔ ووئیل | ته به بیا مومے ما | که چیرے وغواړی

او د کومے خبرے چه تا ته خبر نشته نو تهٔ په هغے څنګه صبر کولے شے۔ موسیٰؑ ووئیل که الله تعالیٰ وغواړی نو تهٔ به

اللّٰهُ صَابِرًا وَّلَاۤ اَعۡصِیۡ لَكَ اَمۡرًا ﴿٦٩﴾ قَالَ فَاِنِ اتَّبَعۡتَنِیۡ

الله | صبر کوونکے | او زهٔ به نافرمانی نهٔ کوم | ستا | د څهٔ خبرے | دهٔ ووئیل | پس که چرے | پیروی کوے ته زما

ما صابره بیا مومے او زهٔ به (هیڅ کار) ستا د حکم نه خلاف نهٔ کوم، (خضرؑ) ووئیل چه ښه! که تهٔ ما سره پاتے کیدل غواړے

فَلَا تَسۡـَٔلۡنِیۡ عَنۡ شَیۡءٍ حَتّٰۤی اُحۡدِثَ لَكَ مِنۡهُ ذِكۡرًا ﴿٧٠﴾ ع ٩ ١١ ٢١

نو تپوس مهٔ کوه له مانه | د هیڅ څیز | تردے چه | زهٔ بیان کړم | تا ته | د هغے | ذکر

نو زما نه د هیڅ څیز په حقله تپوس مهٔ کوه ترڅو چه زهٔ په خپله د هغے ذکر درته ونهٔ کړم

فَانۡطَلَقَا ٚ حَتّٰۤی اِذَا رَكِبَا فِی السَّفِيۡنَةِ خَرَقَهَا ؕ قَالَ

نو دواړه روان شول | تردے چه | هر کله دواړه سواره شول | په کشتئ کښے | هغهٔ سورے وکړو په هغے کښے | موسیٰؑ ووئیل

نو دواړه روان شول تردے چه په یوه کشتئ کښے سواره شول نو (خضرؑ) پکښے سورے وکړو، موسیٰؑ ورته

اَخَرَقۡتَهَا لِتُغۡرِقَ اَهۡلَهَا ۚ لَقَدۡ جِئۡتَ شَیۡـًٔا اِمۡرًا ﴿٧١﴾ قَالَ اَلَمۡ اَقُلۡ

آیا تا سورے وکړو په دے کښے | چه تهٔ ډوب کړے | خلق د دے | بیشکه تا وکړو | یو څیز | لوئے | دهٔ ووئیل | آیا ما نهٔ وو وئیلی

ووئیل تا په دے کښے سورے وکړو چه پکښے سواره خلق ډوب کړے دا خو تا عجیبه کار وکړو، (خضرؑ) ووئیل ما نهٔ وئیل چه تهٔ به

اِنَّكَ لَنۡ تَسۡتَطِيۡعَ مَعِیَ صَبۡرًا ﴿٧٢﴾ قَالَ لَا تُؤَاخِذۡنِیۡ بِمَا نَسِيۡتُ

بیشکه تهٔ | به هیڅ کله ونهٔ کړے شے | ما سره | صبر | دهٔ ووئیل | مهٔ نیسه ما | په هغه څهٔ | چه ما هیر کړل

ما سره په پاتے کیدو صبر ونهٔ کړے شے۔ موسیٰؑ ووئیل چه زما په هیره ما مهٔ نیسه

وَلَا تُرۡهِقۡنِیۡ مِنۡ اَمۡرِیۡ عُسۡرًا ﴿٧٣﴾ فَانۡطَلَقَا ٚ حَتّٰۤی اِذَا لَقِيَا غُلٰمًا فَقَتَلَهٗ ۙ

او مهٔ اچوه په ما | زما په معامله کښے | سختی | بیا دواړه روان شول | تردے چه | هر کله دواړه ملاو شول | یو هلک سره | نو هغهٔ قتل کړو

او زما په دې معامله کښے ما سره ډیره سختی مهٔ کوه۔ نو بیا دواړه روان شول تردے چه یو هلک سره ملاو شول نو خضرؑ هغه

قَالَ اَقَتَلۡتَ نَفۡسًا زَكِيَّةًۢ بِغَيۡرِ نَفۡسٍ ؕ لَقَدۡ جِئۡتَ شَيۡـًٔا نُّكۡرًا ﴿٧٤﴾

دهٔ ووئیل | چه تا ووژلو | یو نفس | پاک | بے د قصاص د نفس نه | بیشکه تا وکړو | یو کار | نا خوښه

قتل کړو، موسیٰؑ ووئیل چه ښه! تا یو بے ګناه روح بغیر د بدل نه ووژلو؟ دا خو د ډیر خراب کار دې وکړو

قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكَ اِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِىَ صَبْرًا ﴿٧٥﴾ قَالَ

ودئيل دهٔ | آيا مانهٔ وُو وئيلى | تا ته | بيشكه تهٔ | به هيڅ كله ونهٔ كړے شے | ماسره | صبر | موسىٰ ؑ وُدئيل

(خضر ؑ) ورته دوئيل آيا ما تاته نهٔ وو وئيلى چه تهٔ به هيڅكله ماسره صبر ونهٔ كړے شے. موسىٰ ؑ ووئيل

اِنْ سَاَلْتُكَ عَنْ شَىْءٍۢ بَعْدَهَا فَلَا تُصٰحِبْنِىْ ۚ قَدْ بَلَغْتَ مِنْ لَّدُنِّىْ

كهٔ چرے | زهٔ تپوس وكړم له تا نه | دَ څهٔ څيز | پس له دے نه | نو مهٔ ملګرے كوه ما | بيشكه ته به رسيدلے يُ | زما له طرف نه

كهٔ چرے دَدے نه پس ما دَ څهٔ څيز په حقله تپوس وكړو نو بيا ما ځان سره مهٔ ساته، بيشكه زما په حقله تا خپل

عُذْرًا ﴿٧٦﴾ فَانْطَلَقَا ۫ حَتّٰىٓ اِذَآ اَتَيَآ اَهْلَ قَرْيَةِ ۣ اسْتَطْعَمَآ اَهْلَهَا

عذر ته | بيا دواړه روان شول | تر دے چه | هركله راغلل دوى | دَ يو كلى په خلقو | نو طعام ئے وغوښتلو | دَ كلى دَ خلقو نه

عُذر پوره كړو بيا دواړه روان شول، تر دے چه دَ يو كلى په خلقو تيريدل نو دَ هغوى نه ئے ډوډئ وُغوښتله،

فَاَبَوْا اَنْ يُّضَيِّفُوْهُمَا فَوَجَدَا فِيْهَا جِدَارًا يُّرِيْدُ اَنْ يَّنْقَضَّ

نو هغوئ انكار وكړو | چه ميلمستيا دِوكړى دَ دوئ | پس بيا موندو دوئ | په دے (كلى) كښے | يو ديوال | چه غورزيدو ته تيار وو

خو هغوئ ورته دَ ميلمستيا وركولو نه انكار وكړو نو دوئ په هغے كلى كښے يو (زوړ) ديوال بيا موندو چه غورزيدو ته تيار

فَاَقَامَهٗ ۭ قَالَ لَوْ شِئْتَ لَتَّخَذْتَ عَلَيْهِ اَجْرًا ﴿٧٧﴾ قَالَ

نو هغهٔ دا نيغ كړو | ووئيل موسىٰ ؑ | كهٔ چرے غوښتلے تا | نو اخستے به وو تا | په هغے باندِ | اُجرت | (خضر ؑ) ووئيل

وو، نو خضر ؑ هغه (ديوال) نيغ كړو، موسىٰ ؑ ووئيل كهٔ تا غوښتلے وے نو په دے كار به دِ څهٔ لږ ډير اُجرت اخستے وو، خضر ؑ ووئيل

هٰذَا فِرَاقُ بَيْنِىْ وَبَيْنِكَ ۚ سَاُنَبِّئُكَ بِتَاْوِيْلِ مَا لَمْ تَسْتَطِعْ

داده | جدائى | په مينځ زما | او په مينځ ستا كښے | اوس به زهٔ وښايم تا ته | مطلب | دَ هغه څهٔ | چه تا ونهٔ كړے شو

چه (بس) دا (وخت) زما او ستا دَ جدائى وخت دے. اوس زهٔ دَ دغے واقعاتو په اصليت باندِ تا خبروم چه تا پرے

عَّلَيْهِ صَبْرًا ﴿٧٨﴾ اَمَّا السَّفِيْنَةُ فَكَانَتْ لِمَسٰكِيْنَ يَعْمَلُوْنَ فِى الْبَحْرِ

په هغے باندِ | صبر | هغه كومه | كشتئ چه (وه) | دَ يو څو مسكينانو وه | چه كار به ئے كولو | په درياب كښے

صبر ونهٔ كړے شو، هغه كشتئ چه وه نو هغه دَ يو څو مسكينانو وه چه په درياب كښے به ئے مزدورى كوله

فَاَرَدْتُّ اَنْ اَعِيْبَهَا وَكَانَ وَرَآءَهُمْ مَّلِكٌ يَّاْخُذُ كُلَّ سَفِيْنَةٍ

نو ما وغوښتل | چه عيبژنه كړم دا | او وو | په وړاندِ دَ دوى نه | يو بادشاه | چه نيوله ئے | هر يوه كشتئ

نو ما وغوښتل چه عيب پكښے پيدا كړم او دَ دوئ نه ورستو يو بادشاه وو، چه هر (ښه) كشتئ به ئے

غَصْبًا ﴿٧٩﴾ وَاَمَّا الْغُلٰمُ فَكَانَ اَبَوٰهُ مُؤْمِنَيْنِ فَخَشِيْنَآ اَنْ يُّرْهِقَهُمَا

په زبردستئ | او هغه هلك چه وو | نو دَ هغهٔ مور پلار | مؤمنان | پس مونږ ووېريدو | چه دے به غالب شي په دوى باندِ

په زبردستئ نيوله. او هغه هلك چه وو نو دَ هغهٔ مور او پلار ايماندار وو او مونږ سره ويره پيدا شوه چه چرته

طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ﴿٨٠﴾ فَاَرَدْنَآ اَنْ يُّبْدِلَهُمَا رَبُّهُمَا خَيْرًا مِّنْهُ زَكٰوةً

په سركشئ | او په كفر كښے | پس وغوښتله مونږ | چه بدله وركړى دے دواړو ته | رب دَ دوى | بهتره | له دے نه | په پاكيزګئ كښے

په سركشئ او كفر كښے دے په دوى غالب رانه شي. نو مونږ دا وغوښتله چه دَ دهٔ په بدله كښے به ورله خپل رب داسے اولاد

وَاَقْرَبَ رُحْمًا ﴿٨١﴾ وَاَمَّا الْجِدَارُ فَكَانَ لِغُلٰمَيْنِ يَتِيْمَيْنِ فِي الْمَدِيْنَةِ

او ډیر نژدې | په مهربانئ کښې | او هغه کوم دیوال چې وو | پس هغه وو | د دوو هلکانو | چې یتیمان وو | په ښار کښې

درکړي چې دا نه به ډیر پاکیزه او زیاتمینه ناک وي او هغه دیوال چې وو هغه د ښار د دوو یتیمانو هلکانو (ملکیت) وو او

وَكَانَ تَحْتَهٗ كَنْزٌ لَّهُمَا وَكَانَ اَبُوْهُمَا صَالِحًا ۚ فَاَرَادَ رَبُّكَ

او وه | لاندې د دې نه | خزانه | د دوی | او وو | د دوی پلار | نیک | پس وغوښتله | ستا رب

د دې لاندې د دې دواړو خزانه ښخه وه او د دوی پلار یو نیک سړی وو، نو ستا رب دا وغوښتل چې دوی

اَنْ يَّبْلُغَآ اَشُدَّهُمَا وَيَسْتَخْرِجَا كَنْزَهُمَا ۖ رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ ۚ

چې ورسیږي دا دواړه | خپلې ځوانئ ته | او دا دواړه راوباسي | خپله خزانه | په مهربانئ | د رب ستا

دواړه پوخ عمر ته ورسیږي، او خپله خزانه بخپله راوباسي، دا (هر څه) ستا د رب په مهربانئ سره

وَمَا فَعَلْتُهٗ عَنْ اَمْرِيْ ۗ ذٰلِكَ تَاْوِيْلُ مَا لَمْ تَسْطِعْ عَّلَيْهِ

او نه دې کړې ما دا کار | په خپله رائې سره | دا دې | مطلب | د هغه څه | چې نه شو کولې تا | په هغې

کیدل او ما چې څه کړي دي په خپله مرضۍ مې نه دي کړي، دا دې هغه حقیقت په کوم باندې چې تا صبر

صَبْرًا ﴿٨٢﴾ وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنْ ذِي الْقَرْنَيْنِ ۗ قُلْ سَاَتْلُوْا عَلَيْكُمْ

صبر | او دوی پوښتنه کوي له تا نه | په حقله | د ذوالقرنین | ووایه | زه به واوروم | تاسو ته

ونه کړې شو. او (اې پیغمبره!) تا نه خلق د ذوالقرنین په حقله تپوس کوي، ورته ووایه چې د هغه ذکر درته زه اوس

مِّنْهُ ذِكْرًا ﴿٨٣﴾ اِنَّا مَكَّنَّا لَهٗ فِي الْاَرْضِ وَاٰتَيْنٰهُ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ

د هغې | څه حال | بیشکه مونږ حکومت ورکړې وو | ده ته | په زمکه کښې | او مونږ ورکړې وو ده ته | د هر قسم

آورووم. مونږ هغه له په زمکه باندې حکومت ورکړې وو، او مونږ هغه له هر رنګه ساز و سامان

سَبَبًا ﴿٨٤﴾ فَاَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٨٥﴾ حَتّٰى اِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ الشَّمْسِ وَجَدَهَا

ساز و سامان | نو دې روان شو | په یوه لاره | تر دې چې | هر کله دې ورسیدو | ځلې د ډوبیدو | د نمر ته | نو ده بیاموند هغه

ورکړې وو، نو هغه په یوه لاره روان شو، تر دې چې د نمر د ډوبیدو ځائې ته ورسیدو نو څه ګوري چې هغه د

تَغْرُبُ فِيْ عَيْنٍ حَمِئَةٍ وَّوَجَدَ عِنْدَهَا قَوْمًا ۗ قُلْنَا

چې ډوبیدو | په یوه چینه کښې | د تورې خټې | او ده بیاموندو | د هغې خوا کښې | یو قوم | مونږ ووئیل

تورې خټې په یوه چینه کښې ډوبیږي او د هغې په خوا کښې ئې یو قوم بیاموندو، مونږ ورته ووئیل

يٰذَا الْقَرْنَيْنِ اِمَّآ اَنْ تُعَذِّبَ وَاِمَّآ اَنْ تَتَّخِذَ فِيْهِمْ حُسْنًا ﴿٨٦﴾

اې ذوالقرنین! | یا دا چې سزا ورکړه ته | او یا | دا چې ته اختیار کړه | د دوی په حقله | ښه طریقه

چې اې ذوالقرنین! (ستا اختیار دې) که سزا ورکوې او که دوی سره ښه (نرم) سلوک کوې۔

قَالَ اَمَّا مَنْ ظَلَمَ فَسَوْفَ نُعَذِّبُهٗ ثُمَّ يُرَدُّ اِلٰى رَبِّهٖ فَيُعَذِّبُهٗ

ده ووئیل | هغه چا چې | ظلم ئې وکړو | نو ډیر زر به | مونږ سزا ورکړو دې ته | بیا به واپس کیږي | خپل رب طرف ته | پس عذاب به ورکړي دې ته

هغه ووئیل چې څوک نافرماني کوي نو هغه له به مونږ سزا ورکړو بیا به هغه خپل رب ته واپس کولې شي، نو هغه به ورله

إِذْ أَوْحَيْنَآ إِلَىٰٓ أُمِّكَ مَا يُوحَىٰٓ ﴿٣٨﴾ أَنِ اقْذِفِيهِ فِي التَّابُوتِ

هر کله چه الهام ولیږلو مونږ | ستا د مور طرف ته | د هغه څه | چه الهام ورته کیدے شو | چه وغورځوه دا | په یو صندوق کښے

چه ستا مور ته مو د هغې خبرے الهام وکړو چه د الهام قابله وه (یعنی) دا چه (موسیٰ) په یو صندوق کښے واچوه

فَاقْذِفِيهِ فِي الْيَمِّ فَلْيُلْقِهِ الْيَمُّ بِالسَّاحِلِ يَأْخُذْهُ عَدُوٌّ لِّي

بیا وغورځوه دا | په دریاب کښے | بیا به راوغورځوی | دریاب | په کناره | چه ونیسی دے | دشمن زما

بیا هغه (صندوق) په دریاب کښے لاهو کړه نو دریاب به ئے پخپله غاړے ته راولی او هغه څوک به ئے راونیسی چه

وَعَدُوٌّ لَّهُۥ ۚ وَأَلْقَيْتُ عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّي ۚ وَلِتُصْنَعَ عَلَىٰ عَيْنِيٓ ﴿٣٩﴾

او دشمن د ده | او ما واچولو | په تا باندے | محبت | د خپل طرف نه | او چه ته پالل شے | زما د سترګو په وړاندے

زما هم دشمن دے او د ده هم دشمن دے او ما په تا باندے د خپل اړخ نه (د خلقو) مینه اچولے وه او دا چه ته زما په نګرانئ کښے ستا پالنه وکړے

إِذْ تَمْشِيٓ أُخْتُكَ فَتَقُولُ هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ مَن

هر کله چه تلله | ستا خور | پس وویل دے | آیا | زه ونښایم تاسو ته | هغه څوک چه

شی او هر کله چه ستا خور ورغله او (فرعونیانو ته ئے) وویل چه آیا زه درته د داسے خلقو پته درکړم چه هغوی به ئے (ده)

يَكْفُلُهُۥ ۖ فَرَجَعْنَٰكَ إِلَىٰٓ أُمِّكَ كَيْ تَقَرَّ عَيْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ ۚ

ساتنه وکړی د ده | بیا پسته کړے مونږ ته | ستا د مور طرف ته | چه یخے شی | سترګے د هغې | او غمژنه نه شی

بنه) پالنه وکړی نو مونږ ته خپلے مور ته بیا پسته ورسولے چه د هغې سترګے در باندے یخے شی او نه غمژنه کیږی

وَقَتَلْتَ نَفْسًا فَنَجَّيْنَٰكَ مِنَ الْغَمِّ وَفَتَنَّٰكَ فُتُونًا ۚ

او ووژلو تا | یو سړے | بیا مونږ خلاصے درکړو تا ته | له غم نه | او مونږ په ازمیښت کښے واچولے ته | په ازمیښت کولو سره

او تا یو سړے وژلے وو نو مونږ تا له د دغے غم نه نجات درکړو او ته مو په قسم قسم آزمیښتونو کښے واچولے

فَلَبِثْتَ سِنِينَ فِيٓ أَهْلِ مَدْيَنَ ثُمَّ جِئْتَ عَلَىٰ قَدَرٍ يَٰمُوسَىٰ ﴿٤٠﴾

نو ته پاتے شوے | څو کلونه | په مدین والو کښے | بیا راغلے ته | په مقرر وخت باندے | اے موسیٰ!

نو ته څو څو کاله د مدین په خلقو کښے پاتے شوے، بیا اے موسیٰ! ته په خپل مقرر وخت (د دلته) راغلے

وَاصْطَنَعْتُكَ لِنَفْسِي ﴿٤١﴾ اذْهَبْ أَنتَ وَأَخُوكَ بِـَٔايَٰتِي

او غوره کړے ما ته | د خپل ذات د پاره | لاړ شه | ته | او ستا ورور | زما په نخښو سره

او (بیا) ما ته خپل ځان له غوره کړے (نو اوس) ته او ستا ورور زما د (در بخښلو) نخښو سره لاړ شئ

وَلَا تَنِيَا فِي ذِكْرِي ﴿٤٢﴾ اذْهَبَآ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ إِنَّهُۥ طَغَىٰ ﴿٤٣﴾

او سستی مه کوئ | زما په یاد کښے | تاسو دواړه لاړ شئ | فرعون ته | بیشکه هغه | له حد نه تیر شوے دے

او زما په ذکر کښے سستی مه کوئ، تاسو دواړه فرعون ته ورشئ ځکه چه هغه د حد نه وړاندے تیر شوے دے

فَقُولَا لَهُۥ قَوْلًا لَّيِّنًا لَّعَلَّهُۥ يَتَذَكَّرُ أَوْ يَخْشَىٰ ﴿٤٤﴾ قَالَا

پس ووایئ هغه ته | خبره | نرمه | کیدے شی چه هغه | نصیحت قبول کړی | یا وویریږی | دواړو وویل

نو هغه سره پستے خبرے وکړئ شاید چه نصیحت قبول کړی یا (زما د نیولو نه) ووېریږی دواړو وویل

رَبَّنَآ اِنَّنَا نَخَافُ اَنْ يَّفْرُطَ عَلَيْنَآ اَوْ اَنْ يَّطْغٰى ﴿۴۵﴾ قَالَ

ای زمونږ ربه | بیشکه مونږ ویریږو | چه هغه په زیاتے وکړی | په مونږ | یا یه له حد نه تیرشی | الله وفرمائیل

اے زمونږ ربه! مونږ ویریږو چه چرته په مونږ باندې زیاتے ونه کړی یا زیات سرکشه نه شی، الله وفرمائیل

لَا تَخَافَآ اِنَّنِیْ مَعَكُمَآ اَسْمَعُ وَاَرٰى ﴿۴۶﴾ فَاْتِيٰهُ فَقُوْلَآ

تاسو مه ویریږئ | بیشکه زه | تاسو سره یم | زه آورم | او زه وینم | پس لاړشئ هغه ته | پس ووایئ

چه تاسو ویریږئ مه زه ستاسو ملګرے یم، زه هر څه وینم او کورم، نو دواړه هغه ته ورشئ او ووایئ

اِنَّا رَسُوْلَا رَبِّكَ فَاَرْسِلْ مَعَنَا بَنِیْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۙ

بیشکه مونږ | رالیږلے شوی یو | ستا د رب | پس ولیږه | مونږ سره | بنی اسرائیل

مونږ دواړه ستا د رب رالیږلے شوی یو، نو ته مونږ سره بنی اسرائیل پریږده.

وَلَا تُعَذِّبْهُمْ ؕ قَدْ جِئْنٰكَ بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّكَ ؕ وَالسَّلٰمُ عَلٰى مَنِ

او مه په عذاب کوه دوی | بیشکه مونږ راوړے ده تاته | نخښه | ستا د رب له طرف نه | او سلامتی دې دی | په هغه چا

او هغوی له تکلیفونه مه ورکوه، مونږ تاته ستا د رب د اړخ نه نخښه راوړے ده او سلامتیا د هغه چا (په نصیب)

اتَّبَعَ الْهُدٰى ﴿۴۷﴾ اِنَّا قَدْ اُوْحِیَ اِلَيْنَآ اَنَّ الْعَذَابَ عَلٰى مَنْ كَذَّبَ

چه پیروی وکړی | د هدایت | بیشکه | وحی رالیږلے شوې ده | مونږ ته | چه عذاب | په هغه چا دے | چه دروغ وګڼړی

ده چه په سمه لاره روان وی، مونږ ته خو دا وحی شوې ده چه (د قهر) عذاب هغه چا له مقرر دے چه (پیغمبر) دروغژن

وَتَوَلّٰى ﴿۴۸﴾ قَالَ فَمَنْ رَّبُّكُمَا يٰمُوْسٰى ﴿۴۹﴾ قَالَ رَبُّنَا الَّذِیْٓ

او مخ واړوی | فرعون ووئیل | پس څوک دے | رب ستاسو! | اے موسیٰ! | ووئیل موسیٰ | زمونږ رب هغه دے | چا چه

وګڼړی او (د حق نه) مخ واړوی فرعون ووئیل اے موسیٰ! ستاسو رب څوک دے موسیٰ وفرمائیل چه زمونږ رب هغه دے

اَعْطٰى كُلَّ شَیْءٍ خَلْقَهٗ ثُمَّ هَدٰى ﴿۵۰﴾ قَالَ فَمَا بَالُ الْقُرُوْنِ الْاُوْلٰى ﴿۵۱﴾

ورکړو | هر څیز ته | وجود د ده | بیائے لاره ښودله | ده ووئیل | پس څه | حال دے | د وړومبو امتونو

چه هر څیز له ئے پیدائښت ورکړے دے او بیائے ورته سمه لاره ښودلے ده فرعون ووئیل چه دا ووایه چه د تیرو قومونو څه حال شو

قَالَ عِلْمُهَا عِنْدَ رَبِّیْ فِیْ كِتٰبٍ ۚ لَا يَضِلُّ رَبِّیْ وَلَا يَنْسَى ﴿۵۲﴾ الَّذِیْ

موسیٰ ووئیل | د دے علم | زما رب سره | په کتاب کښے دے | نه غلطیږی | زما رب | او نه هیروی | کوم چه

موسیٰ ووئیل چه د دے علم خو زما رب سره (په لوح محفوظ کښے درج) دے زما رب نه غلطی کوی او نه ترے نه څه هیریږی (الله) هغه

جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ مَهْدًا وَّسَلَكَ لَكُمْ فِيْهَا سُبُلًا وَّاَنْزَلَ

جوړه کړه | تاسو د پاره | زمکه | فرش | او جوړے ئے کړے | تاسو د پاره | په دے کښے | لارے | او نازلے ئے کړے

ذات دے چه زمکه ئے تاسو د پاره فرش کړے ده او تاسو د پاره ئے په هغے کښے لارے جوړے کړی دی او د

مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ؕ فَاَخْرَجْنَا بِهٖٓ اَزْوَاجًا مِّنْ نَّبَاتٍ شَتّٰى ﴿۵۳﴾

له آسمان نه | اوبه | پس راوویستلے مونږ | د دے په ذریعه | ډیر قسمه | سبز یانے | مختلف

آسمان نه ئے اوبه راوورولے، بیا مونږ د هغے په ذریعه قسم قسم شینکے راوویستلے دے (په خپله ئے)

ع ٣٠ / ١١

كُلُوْا وَارْعَوْا اَنْعَامَكُمْ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّاُولِي النُّهٰى ﴿٥٤﴾ مِنْهَا

خورئ | او شروئ | خپل څاروي | بيشکه | په دے کښے | نخښے دي | عقلمندو د پاره | له دے نه

خوړئ او خپل څاروي پيکښے څروئ ، بيشکه په دے کښے عقلمندو د پاره ډيرے نخښے دي مونږ تاسو د دے زمکے

خَلَقْنٰكُمْ وَفِيْهَا نُعِيْدُكُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً اُخْرٰى ﴿٥٥﴾

مونږ تاسو پيدا کړئ | او په دے کښے به | مونږ تاسو واپس راولو | او له دے نه به | مونږ تاسو راوباسو | په دويم ځل

نه پيدا کړي يئ او دے ته به تاسو واپس کوو او هم د دے نه به مونږ يو ځل بيا بهر راوباسو

وَلَقَدْ اَرَيْنٰهُ اٰيٰتِنَا كُلَّهَا فَكَذَّبَ وَاَبٰى ﴿٥٦﴾ قَالَ اَجِئْتَنَا

او خامخا مونږ ورښودلے ده ده ته | ټولے نخښے | ټولے | نو ده دروغ وګڼړلے | او انکار ئے وکړو | دے وئيل | آيا ته راغلے يئے مونږ ته

او هغه ته (يعني فرعون ته) مونږ خپلے ټولے نخښے وښودلے خو هغه دروغ وګڼړلے او انکاري پاتے شو هغه ووئيل اے موسیٰ

لِتُخْرِجَنَا مِنْ اَرْضِنَا بِسِحْرِكَ يٰمُوْسٰى ﴿٥٧﴾ فَلَنَاْتِيَنَّكَ

د پاره د دے چه ته وباسے مونږ | زمونږ له زمکے نه | په خپل جادو | اے موسیٰ ! | پس خامخا به راوړو مونږ تا ته

آيا ته مونږ ته ځکه راغلے يئے چه مونږ د خپل جادو په زور زمونږ د ملک نه وباسے . نو اوس به مونږ هم ستا په

بِسِحْرٍ مِّثْلِهٖ فَاجْعَلْ بَيْنَنَا وَبَيْنَكَ مَوْعِدًا لَّا نُخْلِفُهٗ نَحْنُ

يو جادو | په شان د دے | پس مقرر کړه | په مينځ زمونږ | او په مينځ ستا سو کښے | وخت د وعدے | چه خلاف ونه کړو له هغے نه مونږ

مقابله کښے د غسے جادو راوړاندے کړو ، نو ته زمونږ او د خپل ځان ترمينځه يو داسے ځائے مقرر کړه چه نه به

وَلَآ اَنْتَ مَكَانًا سُوًى ﴿٥٨﴾ قَالَ مَوْعِدُكُمْ يَوْمُ الزِّيْنَةِ

او نه ته | يو ميدان وي | هوار | موسیٰ ووئيل | ستاسو وعده | ورځ | د ښائست ده

ترے مونږ خلاف کوو او نه ته ، په يو هوار ميدان کښے (دا مقابله وي) (موسیٰ) ووئيل چه (ښه ده) تاسو سره د ميلے ورځ

وَاَنْ يُّحْشَرَ النَّاسُ ضُحًى ﴿٥٩﴾ فَتَوَلّٰى فِرْعَوْنُ فَجَمَعَ كَيْدَهٗ

او دا چه راجمع کړے شي | خلق | د څاښت په وخت | بيا واپس شو | فرعون | بيا ده جمع کړو | خپل مکرونه

نيټه شوه او دا چه خلق د نورخورئ نه پس را جمع شي ، غرض دا چه فرعون واپس شو نو خپل د مکر سامان ئے ټول

ثُمَّ اَتٰى ﴿٦٠﴾ قَالَ لَهُمْ مُّوْسٰى وَيْلَكُمْ لَا تَفْتَرُوْا عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا

بيا راغے | ووئيل دوی ته | موسیٰ | افسوس دے په تاسو | مه جوړوئ | په الله باندے | دروغ

راغونډ کړو نو بيا راغے ، موسیٰ هغه خلقو ته ووئيل چه اے بد نصيبو ! تاسو په الله باندے د دروغو بهتانونه مه تړئ

فَيُسْحِتَكُمْ بِعَذَابٍ ۚ وَقَدْ خَابَ مَنِ افْتَرٰى ﴿٦١﴾ فَتَنَازَعُوْٓا

پس هلاک به کړي تاسو | په عذاب | او هغه نامراده شو | چا چه | دروغ جوړ کړل | نو هغوئ په جګړه شو

ګنې هغه به تاسو په عذاب سره هلاک کړي ، او څوک چه دروغ جوړوي هغه نامراده پاتے شوے دے بيا هغوئ په

اَمْرَهُمْ بَيْنَهُمْ وَاَسَرُّوا النَّجْوٰى ﴿٦٢﴾ قَالُوْٓا اِنْ هٰذٰنِ لَسٰحِرٰنِ

په خپل کار کښے | په خپل مينځ کښے | او هغوئ پټے وکړے | مشورے | دوی ووئيل | بيشکه | دا دواړه | جادوګر دي

خپل مينځ کښے په خپله معامله کښے په جګړه شول او پټے مشورے ئے وکړے (بيا ئے) ووئيل چه دا دواړه (ورونړه) هم جادوګر دي

يُرِيْدٰنِ اَنْ يُّخْرِجٰكُمْ مِّنْ اَرْضِكُمْ بِسِحْرِهِمَا وَيَذْهَبَا

غواړي | چه اُوباسي تاسو | ستاسو له زمکے نه | دَ خپل جادو په ذريعه | او دوی لرے کړی (برباد کړي)

(او) داغواړي چه تاسو دَ خپل ملک نه دَ جادو په زور بهر وُباسي ، او ستاسو غوره لاره چاره

بِطَرِيْقَتِكُمُ الْمُثْلٰى ﴿٦٣﴾ فَاَجْمِعُوْا كَيْدَكُمْ ثُمَّ ائْتُوْا صَفًّا ۚ

ستاسو طريقه | بهترينه | نو اتفاق وکړئ | په خپل تدبير باندِ | بيا | راشئ | په صف کښے

ورانه کړي ، نو ټول سره رابو ځائے شئ او دَ خپل فن بند وبست وکړئ نو بيا قطار قطار راشئ

وَقَدْ اَفْلَحَ الْيَوْمَ مَنِ اسْتَعْلٰى ﴿٦٤﴾ قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِمَّآ اَنْ تُلْقِيَ

وبيشکه کامياب شو | نن ورځ | هغه څوک | چه غالب شو | دوی ووئيل | اے موسیٰ ! | يا خو | ته وغورزوه

بيشکه چه نن به هغه څوک ميدان کټي چه غالب راشي ، هغوئ ووئيل چه اے موسیٰ ! يا خو ته (وړومبے خپله امسا)

وَاِمَّآ اَنْ نَّكُوْنَ اَوَّلَ مَنْ اَلْقٰى ﴿٦٥﴾ قَالَ بَلْ اَلْقُوْا ۚ فَاِذَا

او يا | شو مونږ به | اول | غورزوونکي | دُوئے فرمائيل | بلکه | دغورزوئ تاسو | نو ناګهانه

وغورزوه يا هم مونږ وړومبے غورځوو ۔ موسیٰ وفرمائيل چه نا هم تاسو اول وُغورځوئ ، نو ناګهانه

حِبَالُهُمْ وَعِصِيُّهُمْ يُخَيَّلُ اِلَيْهِ مِنْ سِحْرِهِمْ اَنَّهَا تَسْعٰى ﴿٦٦﴾

دَ دوی رسئ | او دَ دوی امسا ګانے | په خيال کښے راغے | دَ ده | دَ دوئ دَ جادو په وجه | چه هغه | منډے وهي

دَ هغوئ پړی او امساګانے دَ موسیٰ په خيال کښے دَ جادو په زورسره داسے ښکاره شوے لکه چه منډے ترهے وهي

فَاَوْجَسَ فِيْ نَفْسِهٖ خِيْفَةً مُّوْسٰى ﴿٦٧﴾ قُلْنَا لَا تَخَفْ اِنَّكَ

پس محسوسه کړه | په خپل زړهٔ کښے | ويره | موسیٰ | مونږ ووئيل | مهٔ ويريږه | بيشکه ته

په دے باندِ موسیٰ په خپل زړهٔ کښے ويره محسوسه کړه ، مونږ ورته ووئيل چه مهٔ ويريږه هم ته به برے

اَنْتَ الْاَعْلٰى ﴿٦٨﴾ وَاَلْقِ مَا فِيْ يَمِيْنِكَ تَلْقَفْ مَا صَنَعُوْا ۚ

يے | غالب | او وُغورزوه | څهٔ چه | ستا په ښی لاس کښے دی | هغه به تير کړی | څهٔ چه | دوی جوړ کړی دی

بيا موے ۔ او ستا په ښی لاس کښے چه (امسا) ده دا وغورزه ، دَ دوئ جوړ کړی ټول څيزونه به تير کړی

اِنَّمَا صَنَعُوْا كَيْدُ سٰحِرٍ ؕ وَلَا يُفْلِحُ السّٰحِرُ حَيْثُ اَتٰى ﴿٦٩﴾

يقيناً څهٔ چه | دوی جوړ کړی دی | هغه چال دَ جادوګر دے | او نهٔ به کاميابيږی | جادوګر | هر چرته چه لاړ شي ۔

دوئ چه څهٔ جوړ کړی دی دا خو تش دَ جادو فريب دے او جادوګر چه هر ځائے ته لاړ شي نو کامياب به نهٔ شي

فَاُلْقِيَ السَّحَرَةُ سُجَّدًا قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِرَبِّ هٰرُوْنَ وَمُوْسٰى ﴿٧٠﴾

پس پريوتل | جادوګر | په سجده | دوی ووئيل | مونږ ايمان راوړو | په رب | دَ هارون | او موسیٰ

بيا جادوګر په سجده پريوتل او دائے ووئيل چه مونږ خو دَ هارون او موسیٰ عليهما السلام په رب ايمان راوړو

قَالَ اٰمَنْتُمْ لَهٗ قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ ؕ اِنَّهٗ لَكَبِيْرُكُمُ

فرعون ووئيل | تاسو ايمان راوړو | په ده | وړاندِ له دے نه چه | زهٔ اجازت درکړم تاسو ته | بيشکه دے | ستاسو مشر دے

فرعون ووئيل له دے نه وړاندِ چه زهٔ تاسو ته اجازت درکړم تاسو په دهٔ ايمان راوړو ، بيشکه چه دا ستاسو هغه

الَّذِیْ عَلَّمَکُمُ السِّحْرَ ۚ فَلَاُقَطِّعَنَّ اَیْدِیَکُمْ وَاَرْجُلَکُمْ مِّنْ خِلَافٍ

چا چه | ښودلے دے تاسو ته | جادو | پس خامخا به پرې کړم | ستاسو لاسونه | او ستاسو پښې | د مخالفو اړخونو نه

مشر (استاذ) دے چه تاسو ته ئے هم جادو ښودلے دے نو اوس زه ستاسو لاس او پښې اړولې پرې کوم او د تجورو په اونو

وَّلَاُوصَلِّبَنَّکُمْ فِیْ جُذُوْعِ النَّخْلِ ۫ وَلَتَعْلَمُنَّ اَیُّنَآ اَشَدُّ عَذَابًا وَّاَبْقٰی ﴿۷۱﴾

او زه به ضرور تاسو په سولئ وُځیږوم | په تنو | د قجورو | او تاسو ته به معلومه شي | چه څوک په مونږ کښے | سخت او پائیدار عذاب ورکولو والا دے

کښے مو په سولئ خیږوم ، او دا به درته معلومه شي چه په مونږ (دواړو) کښے د چا عذاب سخت او زیات پائے کیدونکے

قَالُوْا لَنْ نُّؤْثِرَکَ عَلٰی مَا جَآءَنَا مِنَ الْبَیِّنٰتِ وَالَّذِیْ فَطَرَنَا

دوی وویئل | هیڅ کله به ترجیح درنه کړو تا ته | په هغه څه | چه راغلی دی مونږ ته | واضح دلیلونه | او چا چه | مونږ پیدا کړو

عذاب دے ؟ هغوئ (جادوگرو) ورته وویئل چه مونږ به تا هیڅ کله غوره نه کړو د هغه څرګند دلیلونو په وړاندې چه مونږ ته راغلی دی او د هغه

فَاقْضِ مَآ اَنْتَ قَاضٍ ؕ اِنَّمَا تَقْضِیْ هٰذِهِ الْحَیٰوةَ الدُّنْیَا ﴿۷۲﴾ؕ

بس ته وکړه | څه چه | ته کولو والا یئے | بیشکه | ته خو حکم کولے شے | د دے ژوند | د دنیا

خدائے په مقابله کښے چه مونږ هغے پیدا کړی یو نو ته چه هر څه فیصله کول غواړے هغه وکړه ته خو بس د دے دنیا په حقله (چه څه غواړے هغه)

اِنَّآ اٰمَنَّا بِرَبِّنَا لِیَغْفِرَ لَنَا خَطٰیٰنَا وَمَآ اَکْرَهْتَنَا

بیشکه مونږ ایمان راوړو | په رب خپل | چه هغه وبخښی | مونږ له | زمونږ ګناهونه | او هغه څه | چه مجبوره کړو تا مونږه

کولے شے مونږ خو په خپل رب باندې ایمان راوړو چه هغه زمونږ ګناهونه معاف کړی او کوم جبر چه تا راباندې د جادو په حقله کړے

عَلَیْهِ مِنَ السِّحْرِ ؕ وَاللّٰهُ خَیْرٌ وَّاَبْقٰی ﴿۷۳﴾ اِنَّهٗ مَنْ یَّاْتِ رَبَّهٗ

په هغے | له جادو کولو نه | او الله | ډیر ښه | او باقی پاتے کیدونکے دے | بیشکه هغه | څوک چه راشي | خپل رب ته

دے هغه (هم راته وُبخښی) او الله د هر چا نه بهتر دے او باقی پاتے کیدونکے دے یاد ساتئ چه څوک خپل رب ته د مجرم

مُجْرِمًا فَاِنَّ لَهٗ جَهَنَّمَ ؕ لَا یَمُوْتُ فِیْهَا وَلَا یَحْیٰی ﴿۷۴﴾ وَمَنْ یَّاْتِهٖ

ګناهګار | نو بیشکه د هغه د پاره | دوزخ دے | نه به دے مری | په هغے کښے | او نه به ژوندے پاتے کیږی | او څوک چه راشي د هغه ته

په حیث راشي نو بیشکه هغه د پاره جهنم دے چه نه به پکښے مری او نه به رغیږی او څوک چه ورته ایماندار

مُؤْمِنًا قَدْ عَمِلَ الصّٰلِحٰتِ فَاُولٰٓئِکَ لَهُمُ الدَّرَجٰتُ الْعُلٰی ﴿۷۵﴾

مؤمن | هغه عملونه وکړل | ښه | پس هم داخلق دی چه دوی د پاره | درجے دی | اُوچتے

ورشي چه د نیکئ کارونه ئے هم کړی وی ۔ نو دا سے خلقو له اوچتے مرتبے مقرر دے دی

جَنّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِیْنَ فِیْهَا ؕ

باغونه | د همیشه اوسیدو | چه بهیږی به | لاندې د هغے نه | نهرونه | همیشه به وی | په هغے کښے

(یعنی) د همیشه استوګنے د پاره باغونه چه د هغے لاندې به ویالے بهیږی ، دوئ به پکښے تل تر تله اُوسیږی

وَذٰلِکَ جَزٰٓؤُا مَنْ تَزَکّٰی ﴿۷۶﴾ؑ وَلَقَدْ اَوْحَیْنَآ اِلٰی مُوْسٰٓی ۵

او دا | بدله ده | د هغه چا | چه پاک شوے | او بیشکه مونږ وحی ولیږله | موسیٰ ته

او هم دغه انعام دے د هغه چا چه پاک شو او مونږ موسیٰؑ ته خپله وحی ولیږله ۔

أَنْ أَسْرِ بِعِبَادِي فَاضْرِبْ لَهُمْ طَرِيقًا فِي الْبَحْرِ يَبَسًا

چه د شپې بوځه | زما بندګان | بیا جوړه کړه | دوی د پاره | لاره | په سمندر کښې | اوچه

چه زما بندګان شپه په شپه (د مصر نه) بهر بوځه. بیا ورله په سمندر کښې (د امسا په وهلو) یوه اوچه لاره جوړه کړه

لَا تَخَافُ دَرَكًا وَلَا تَخْشَىٰ ﴿٧٧﴾ فَأَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ بِجُنُودِهِ

مه دېرېږه | د نيولے کيدو نه | او مه وېرېږه (له ډوبيدو نه) | پس دوی پسې شو | فرعون | د خپلو لښکرو سره

مه د (چا د) رالاندې کولو نه وېره کوه او مه نوره وېره (په زړه کښې ساته) نو فرعون ورپسې خپلے لښکرے روانے کړے.

فَغَشِيَهُم مِّنَ الْيَمِّ مَا غَشِيَهُمْ ﴿٧٨﴾ وَأَضَلَّ فِرْعَوْنُ

پس پټ کړل دوی | سمندر | هغه چه | پټ ئے کړل دوی | او ګمراه کړو | فرعون

نو د درياب موجونه په دوئ راوختل او دوئ ئے پټ کړل (يعنی ډوب ئے کړل) او فرعون خو خپل قوم ګمراه کړے

قَوْمَهُ وَمَا هَدَىٰ ﴿٧٩﴾ يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ قَدْ أَنجَيْنَاكُم مِّنْ عَدُوِّكُمْ

خپل قوم | او سمه لاره ئے ورنه ښوده | اے بنی اسرائيلو! | بيشکه نجات درکړو مونږ تاسو ته | ستاسو د دښمن نه

وو او سمه لاره ئے ورته ښودلے نه وه. اے بنی اسرائيلو! مونږ تاسو ستاسو د دښمن نه خلاص کړئ او

وَوَاعَدْنَاكُمْ جَانِبَ الطُّورِ الْأَيْمَنَ وَنَزَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ

او وعده وکړه مونږ تاسو سره | د طور ښي طرف ته | او نازل کړل مونږ | تاسو باندې | من

مونږ د کوه طور ښی طرف ته تاسو سره (د تورات درکولو) وعده وکړه او مونږ په تاسو باندې من او سلوی

وَالسَّلْوَىٰ ﴿٨٠﴾ كُلُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ وَلَا تَطْغَوْا

او سلوی | خورئ | له هغه پاکو څيزونو نه | کوم چه | مونږ تاسو ته درکړی دی | او حد نه مه تيريږئ

نازل کړل (او حکم مو درکړو چه) کوم پاکيزه څيزونه مونږ تاسو له درکړی دی هغه خورئ او په دے کښې له

فِيهِ فَيَحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبِي ۖ وَمَن يَحْلِلْ عَلَيْهِ

په دے کښے | ګنی راکوز به شي | په تاسو باندې | زما غضب | او په چا باندې چه راکوز شي

حد نه مه تيريږئ ګنی به تاسو باندې به زما غضب نازل شي او په چا چه زما غضب نازل

غَضَبِي فَقَدْ هَوَىٰ ﴿٨١﴾ وَإِنِّي لَغَفَّارٌ لِّمَن تَابَ وَآمَنَ

زما غضب | نو هغه هلاک شو | او بيشکه زه | ډير زيات بخښونکے يم | هغه څوک چه | توبه ئے وکړه | او ايمان ئے راوړو

شو نو هغه هلاک شو. او زه به ضرور وبخښم هغه څوک چه توبه وکړی او ايمان راوړی

وَعَمِلَ صَالِحًا ثُمَّ اهْتَدَىٰ ﴿٨٢﴾ وَمَا أَعْجَلَكَ عَن قَوْمِكَ يَا مُوسَىٰ ﴿٨٣﴾

او عمل ئے وکړو | نيک | بيائے سمه لار بيا موندله | او کوم څيز په تُنګئ راوستے ته | د خپل قوم نه | اے موسیٰ!

او نيک عمل وکړی او بيا په سمه لاره قائم پاتے شي او اے موسیٰ! دا ته ولے د خپل قوم نه داسے په تلوار راغلے

قَالَ هُمْ أُولَاءِ عَلَىٰ أَثَرِي وَعَجِلْتُ إِلَيْكَ رَبِّ

ده وويل | دوی دغه دی | ما پسے دی | او ما تلوار وکړه | ستا طرف ته | اے ربه زما

شوے، موسیٰ و وئيل، اے زما ربه! هغه خو ما پسے (راروان) دی، او ما ستا طرف ته (د راتلو) تلوار ځکه وکړو چه

لِتَرْضٰى ﴿٨٤﴾ قَالَ فَاِنَّا قَدْ فَتَنَّا قَوْمَكَ مِنْ بَعْدِكَ وَاَضَلَّهُمُ

چه ته راضي شې | وې فرمايل | بيشکه مونږ | په آزميښت کښې واچولو | ستا قوم | له تا نه پس | او ګمراه کړل دوی

چه ته خوشحاله شې. وې فرمايل مونږ ستا قوم له تا نه پس په آزميښت کښې اچولے دے او هغوئ خو سامري ګمراه

السَّامِرِيُّ ﴿٨٥﴾ فَرَجَعَ مُوْسٰى اِلٰى قَوْمِهٖ غَضْبَانَ اَسِفًا ۚ قَالَ

سامري | پس راواپس شو | موسیٰ | خپل قوم ته | په غصه | په افسوس | وې فرمايل

کړل ـ پس موسیٰ علیه السلام دَ غصے او دَ افسوس په حالت کښې خپل قوم ته واپس راغے (او) وې ويل

يٰقَوْمِ اَلَمْ يَعِدْكُمْ رَبُّكُمْ وَعْدًا حَسَنًا ۬ اَفَطَالَ عَلَيْكُمُ

اے زما قومه! | آيا وعده نه وه کړے تاسو سره | ستاسو رب | وعده ښه | آيا اوږده شوه | په تاسو باندې

چه اے زما قومه! آيا ستاسو رب تاسو سره يوه ښه وعده نه وه کړے، بيا آيا په تاسو باندې ډيرزيات

الْعَهْدُ اَمْ اَرَدْتُّمْ اَنْ يَّحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ فَاَخْلَفْتُمْ

موده | يا اوغوښتل تاسو | چه راکوزشي | په تاسو باندې | غضب | ستاسو دَ رب | بيا مخالفت وکړو تاسو

وخت تير شوے وو، يا دا مو غوښته وه چه په تاسو دِ دَ رب غضب (خامخا) راشي نو ځکه ما سره دَ پوخ کړي

مَّوْعِدِيْ ﴿٨٦﴾ قَالُوْا مَآ اَخْلَفْنَا مَوْعِدَكَ بِمَلْكِنَا وَلٰكِنَّا حُمِّلْنَآ

زما دَ وعدے | دوی وويل | مخالفت نه دے کړے مونږ | ستا دَ وعدے | په خپل اختيار | او ليکن مونږ باندې بار کړے شوے وو

لوظ نه لاس پسر شوئ هغوی ورته وويل چه مونږ تاسره دَ خپل لوظ نه په خپله خوښه لاس پسر شوی نه يو خو خبره داده چه په

اَوْزَارًا مِّنْ زِيْنَةِ الْقَوْمِ فَقَذَفْنٰهَا فَكَذٰلِكَ اَلْقَى

بوج | دَ کالو | دَ قوم (دَ فرعون) | نو مونږ دا وغورځول | بيا دغه شان | وغورځول

مونږ باندې دَ (قبطي) قوم (پاتے شوی) کالی درانه شوی وو نو مونږ هغه وغورځول، نو دغه شان سامري هم

السَّامِرِيُّ ﴿٨٧﴾ فَاَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهٗ خُوَارٌ فَقَالُوْا

سامري | بيا ده راو ويستلو | دوی دَ پاره | يو سخے | يو جسم | چه په کښې آواز وو | پس دوی وويل

وغورځول نو بيا (سامري) هغې خلقو ته يو سخے راښکاره کړو چه هغه تش کالبوت وو خو آواز به ئې کولو پس هغوئ

هٰذَآ اِلٰهُكُمْ وَاِلٰهُ مُوْسٰى ۬ فَنَسِيَ ﴿٨٨﴾ اَفَلَا يَرَوْنَ اَلَّا يَرْجِعُ

دا ستاسو معبود دے | او معبود دَ | دَ موسیٰ | پس دهٔ هير کړو | پس آيا دوی نه ګتل | چه هغه نه ورواپس کوی

وويل چه هم دا ستاسو معبود دے او دَ موسیٰ هم معبود دے خو موسیٰ هير کړو آيا دا خلق نه ګوري چه هغه (بت) دَ هغوئ

اِلَيْهِمْ قَوْلًا ۬ وَّلَا يَمْلِكُ لَهُمْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا ﴿٨٩﴾ وَلَقَدْ قَالَ

دوی ته | څهٔ خبره | او نه اختيار لري | دَ دوی دَ نقصان | او نه دَ څهٔ نفع | او بيشکه وئيلی وو

دَ خبرے جواب نه ورکوی او نه دَ هغوئ دَ نقصان اختيار لري او نه دَ نفع، او له دے نه وړاندې هارون

لَهُمْ هٰرُوْنُ مِنْ قَبْلُ يٰقَوْمِ اِنَّمَا فُتِنْتُمْ بِهٖ ۚ وَاِنَّ

دوی ته | هارون (هم) | له دے نه وړاندې چه | اے زما قومه! | بيشکه په آزميښت کښې واچولے شوئ تاسو | په دے سخي | او بيشکه

هغوئ ته وئيلی هم وو چه اے زما قومه! په دے سخي سره په تاسو آزميښت کړے شوے دے او بيشکه

رَبُّكُمُ الرَّحْمٰنُ فَاتَّبِعُوْنِيْ وَاَطِيْعُوْٓا اَمْرِيْ ﴿٩٠﴾ قَالُوْا لَنْ نَّبْرَحَ

رب ستاسو | رحمٰن دے | پس تاسو پیروی وکړئ زما | او ومنئ | زما حکم | دوی وویل | مونږ به همیشه پرې نږدو

ستاسو رب رحمٰن (خدائے) دے نو په ما پسے روان وسیږئ او زما حکمونه منئ هغوئ وویل چه مونږ خو به دَدهٔ

عَلَيْهِ عٰكِفِيْنَ حَتّٰى يَرْجِعَ اِلَيْنَا مُوْسٰى ﴿٩١﴾ قَالَ يٰهٰرُوْنُ

په دے | تینګ پاتے کیدونکی | تر دے چه | واپس راشی | زمونږ طرف ته | موسیٰ | دفرمائیل موسیٰ | اے هارونه!

په عبادت کښے اخته پراته یُو تر دے چه موسیٰؑ راته واپس راشی — موسیٰؑ ووئیل چه اے هارونه!

مَا مَنَعَكَ اِذْ رَاَيْتَهُمْ ضَلُّوْٓا ﴿٩٢﴾ اَلَّا تَتَّبِعَنِ ؕ اَفَعَصَيْتَ

څهٔ څیز منع کړے ته | هر کله چه تا ولیدل دوی | چه ګمراه شول | چه ته زما پیروی مهٔ کوے | آیا تا نافرمانی وکړه

ته ماله ولے نهٔ راتلے څهٔ وخت چه تا داولیدل چه دوئ ګمراهان شول؟ آیا تا هم زما دَ حکم نافرمانی

اَمْرِيْ ﴿٩٣﴾ قَالَ يَبْنَؤُمَّ لَا تَاْخُذْ بِلِحْيَتِيْ وَلَا بِرَاْسِيْ ۚ اِنِّيْ خَشِيْتُ

زما دَ حکم | دهٔ ووئیل | اے زما دَ مور څویه! | مهٔ نیسه | زما ږیره | او نهٔ ویښته دَ سر زما | بیشکه زهٔ ویریدم

وکړه؟ (هارونؑ) ووئیل چه اے زما دَ مور زویه (وروره!) زما ږیره او زما سر مهٔ رانیسه ما سره خو دا اندیښنه

اَنْ تَقُوْلَ فَرَّقْتَ بَيْنَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ وَلَمْ تَرْقُبْ قَوْلِيْ ﴿٩٤﴾

چه ته به وائے چه | جُدائی راوستله تا | دَ بنی اسرائیلو په مینځ کښے | او خیال دِ ونهٔ ساتلو | زما دَ خبرے

شوه چه ګنی ته دا ونه وائے چه تا په بنی اسرائیلو کښے ډله بازی واچوله او زما دَ وینا انتظار دِ ونهٔ کړو

قَالَ فَمَا خَطْبُكَ يٰسَامِرِيُّ ﴿٩٥﴾ قَالَ بَصُرْتُ بِمَا لَمْ يَبْصُرُوْا

دے فرمائیل | پس څهٔ حال دے ستا | اے سامری! | دهٔ ووئیل | مالیدلی ؤو | هغه څهٔ چه | نهٔ وولیدلی دوی

موسیٰؑ ووئیل چه بنه سامریه! ته ووایه چه ستا څهٔ معامله ده؟ هغهٔ ووئیل چه ماته یو داسے څیز ښکاره شو چه هغه

بِهٖ فَقَبَضْتُ قَبْضَةً مِّنْ اَثَرِ الرَّسُوْلِ فَنَبَذْتُهَا وَكَذٰلِكَ

هغه | پس را واخستلے ما | یو موټے خاورے | دَ نقش قدم | دَ فرښتے | پس واچولے ما هغه (په خټی کښے) | او دغه شان

بل چا ته نهٔ ښکاریدو ما دَ فرښتے دَ قد مونو دَ خاورے نه یو موټے راوچت کړو بیا م هغه په دے بت کښے ورواچولو او هم دا

سَوَّلَتْ لِيْ نَفْسِيْ ﴿٩٦﴾ قَالَ فَاذْهَبْ فَاِنَّ لَكَ فِي الْحَيٰوةِ

صلاح راکړه | ماته | زما نفس | دے فرمائیل | لرے شه | پس بیشکه | تا دَ پاره | په ژوندون کښے (دا سزا ده)

خبره زما نفس ته ښه ولګیده، موسیٰؑ وفرمائیل چه ځه! چه ټول عمر به ته هم دا وائے چه ماله

اَنْ تَقُوْلَ لَا مِسَاسَ ۪ وَاِنَّ لَكَ مَوْعِدًا لَّنْ تُخْلَفَهٗ ۚ وَانْظُرْ

چه ته به وائے | چه (ماته) لاس مهٔ راوړئ | او بیشکه تا دَ پاره | یو وعده ده (دَ عذاب) | چه مخالفت به نهٔ شی کیدے دَ هغے | او وګوره

لاس مهٔ راوړئ — او تا سره یو بله وعده (دَ عذاب هم) ده چه دَ هغے نه دِ خلاصے نشته او خپل دِ

اِلٰٓى اِلٰهِكَ الَّذِيْ ظَلْتَ عَلَيْهِ عَاكِفًا ؕ لَنُحَرِّقَنَّهٗ ثُمَّ لَنَنْسِفَنَّهٗ

خپل معبود ته | هغه په کوم چه ته همیشه پاتے وے | معتکف | مونږ به ضرور وسیزو دا | بیا به ئے بهیوو دا

معبود ته وګوره دَ کوم چه تهٔ عبادت کوے، مونږ به دا وسیزو او بیا (دے ایره) به په

فِي الْيَمِّ نَسْفًا ﴿٩٧﴾ إِنَّمَا إِلَٰهُكُمُ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ

په دریاب کښې | په الوزولو سره | بیشکه معبود ستاسو | الله دے | هغه ذات دے | چه نشته دے هیڅ معبود | بے له هغه نه

دریاب کښې بهیوو ، ستاسو معبود خو بس یو الله دے چه د هغه نه سیوا بل معبود نشته،

وَسِعَ كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ﴿٩٨﴾ كَذَٰلِكَ نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنبَاءِ

راګیر کړے دے هغه | هر څیز | په علم سره | دغه شان | مونږ بیانوو | تاته | له خبرونو د

هغه هر څیز په خپل علم کښې راګیر کړے دے ، (اے پیغمبره!) دغسے مونږ تاته د تیرو (شوو واقعاتو) خبرونه

مَا قَدْ سَبَقَ ۚ وَقَدْ آتَيْنَاكَ مِن لَّدُنَّا ذِكْرًا ﴿٩٩﴾ مَّنْ أَعْرَضَ عَنْهُ

هغه څه نه چه تیر شوی دی | او بیشکه مونږ درکړو تاته | له خپل طرف نه | ذکر (قرآن) | چا چه مخ واړولو له دے نه

آوروو ، او مونږ درله د خپل طرف نه یو ه (ښه) نصیحت نامه درکړے ده ، څوک چه د دے نه مخ وګرزوی

فَإِنَّهُ يَحْمِلُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وِزْرًا ﴿١٠٠﴾ خَالِدِينَ فِيهِ ۖ وَسَاءَ

بیشکه هغه | به اوچت کړی | په ورځ د قیامت | یو بوج | همیشه به وی دوی په هغے کښې | او بد دی

هغه به د قیامت په ورځ (د ګناهونو) یو (لوئے) پنډ اوچت کړے وی او په دغه (حالت) کښې به همیشه وسیږی

لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حِمْلًا ﴿١٠١﴾ يَوْمَ يُنفَخُ فِي الصُّورِ ۚ وَ

د دوی د پاره | په ورځ د قیامت | هغه بوج وچتول | په کومه ورځ چه به پوکے ووهلے شی | په شپیلئ کښې | او

او دغه به د قیامت په ورځ د هغوی په حقله ډیر خراب پنډ وی په کومه ورځ چه شپیلئ به پوک و هلے شی او تول

نَحْشُرُ الْمُجْرِمِينَ يَوْمَئِذٍ زُرْقًا ﴿١٠٢﴾ يَتَخَافَتُونَ بَيْنَهُمْ

راجمع به کړو | مجرمان | په دغه ورځ | چه شنے شوی به وی د دوی سترګے | پټے پټے خبرے به کوی دوی | په خپل مینځ کښې

مجرمان به په دغه ورځ دا سے رایو ځائے کړو چه شنے سترګے به ئے (نیولے) وی - په خپل مینځ کښې به ګنګوسے کوی

إِن لَّبِثْتُمْ إِلَّا عَشْرًا ﴿١٠٣﴾ نَّحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُولُونَ

چه نه یئ پاتے شوی تاسو | مګر لس (ورځے) | مونږه ښه پوهیږو | په هغه څه چه | دوی ئے وائی

چه تاسو خو به صرف لس ورځے په دُنیا کښې) پاتے شوی یئ ، څه چه دوی وائی مونږ په هغے ښه پوهیږو

إِذْ يَقُولُ أَمْثَلُهُمْ طَرِيقَةً إِن لَّبِثْتُمْ إِلَّا يَوْمًا ﴿١٠٤﴾ وَيَسْأَلُونَكَ

هر کله چه ووائی | په دوی کښې ښه | په رائے کښې | چه نه یئ پاتے شوی تاسو | مګر یوه ورځ | او دوی تپوس کوی له تانه

دغه وخت به په دوی کښې زیاتے ښے رائے والا ووائی چه تاسو خو صرف یوه ورځ (په دنیا کښې) پاتے شوی یئ او (اے پیغمبره)

عَنِ الْجِبَالِ فَقُلْ يَنسِفُهَا رَبِّي نَسْفًا ﴿١٠٥﴾ فَيَذَرُهَا قَاعًا

د غرونو په حقله | نو ووایه | چه خواره به کړی دا | زما رب | په الوزولو سره | پس پریږدی به دا | میدان

خلق له تانه د غرونو په حقله تپوس کوی نو ووایه چه زما رب به د غرونه بالکل والوزوی ، او زمکه به هوار میدان

صَفْصَفًا ﴿١٠٦﴾ لَّا تَرَىٰ فِيهَا عِوَجًا وَلَا أَمْتًا ﴿١٠٧﴾ يَوْمَئِذٍ

هوار | نه به وینے ته | په دے کښې | کوږ والے | او نه څه اوچتوالے | په دغه ورځ به

پریږدی | ته به نه په دے کښې څه کوږ والے ووینے او نه لوړوالے - په دغه ورځ به تول

يَتَّبِعُوْنَ الدَّاعِيَ لَا عِوَجَ لَهٗ ۚ وَخَشَعَتِ الْاَصْوَاتُ

روان وي دوی ورودستو | دَ یو آواز کوونکی | هیڅ کوږوالے به نهٔ وی | دهغه نه | او بشکته به شی | آوازونه

(خلق) به بلونکی پسے روان شی چه دَ هغه به وړاندِ به (دَ هیچا) هیڅ کوږلیچ باقی پاتے نهٔ شی او ټول آوازونه به دَ رحمٰن خدای

لِلرَّحْمٰنِ فَلَا تَسْمَعُ اِلَّا هَمْسًا ﴿١٠٨﴾ يَوْمَئِذٍ لَّا تَنْفَعُ الشَّفَاعَةُ

الله ته | پس نهٔ به آورے ته | مګر دو آواز | په دغه ورځ | به فائده نهٔ ورکوی | شفاعت

(دَ آواز) په وړاندِ ټیټ شی نو ته به دَ بشپو دَ کشار نه بغیر بل آواز نهٔ اوُرے ، په دغه ورځ به سفارش چاته فائده نه ورکوی

اِلَّا مَنْ اَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ وَرَضِيَ لَهٗ قَوْلًا ﴿١٠٩﴾ يَعْلَمُ مَا

مګر هغه چاته | چه اجازت به ورکوی هغهٔ ته | رحمان | او خوښه کړے وی | دَ هغهٔ | خبره | هغه پوهیږی | په هغهٔ

خو هغه چاته چه رحمٰن ورته اجازت ورکړے وی او دَ هغهٔ په حقله ئے خبره خوښه کړے وی ، هغه دَ ټولو خلقو

بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِهٖ عِلْمًا ﴿١١٠﴾ وَعَنَتِ

چه وړاندِ دَ دوی دی | او په هغهٔ | چه وروستو دَ دوی دی | او احاطه نهٔ شی کولے | په هغهٔ | په علم سره | او ټیټ شوی به وی

وړاندِ وروستو حالات ډیر ښهٔ پیژنی او (خلق) په خپل علم سره دَ هغهٔ (دَ معلوماتو) احاطه نهٔ شی کولے او ټول مخونه

الْوُجُوْهُ لِلْحَيِّ الْقَيُّوْمِ ؕ وَقَدْ خَابَ مَنْ حَمَلَ ظُلْمًا ﴿١١١﴾

مخونه | همیشه ژوندی او قائم پاتے کیدونکی ته | او نامراده شو هغه | چاچه | بوج اُوچت کړو | دَ ظلم

به دَ تل ژوندی او دَ نظام چلوونکی (الله) په وړاندِ ټیټ شوی وی او چاچه دَ نافرمانئ بوج اُوچت کړو هغه به نامراده وی

وَمَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَا يَخٰفُ ظُلْمًا

او څوک چه کوی عمل | نیک | او هغه مؤمن وی | پس دَ ے به نهٔ ویریږی | له ظلم نه

او څوک چه نیک کار وکړی ، او هغه مؤمن هم وی نو هغهٔ سره به نهٔ دَ ظلم څهٔ ویره وی

وَّلَا هَضْمًا ﴿١١٢﴾ وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنٰهُ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا وَّصَرَّفْنَا

او نهٔ له څهٔ نقصان نه | او دغه شان | مونږ نازل کړو دا | قرآن | په عربئ ژبه کښے | او مونږ په رنګ رنګ بیان کړل

او نهٔ دَ نقصان ـ او دغه رنګ مونږ دا قرآن په عربئ ژبه کښے نازل کړے دے او په دِے کښے

فِيْهِ مِنَ الْوَعِيْدِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ اَوْ يُحْدِثُ لَهُمْ ذِكْرًا ﴿١١٣﴾

په دے کښے | ویرول | دَ پاره دَ دے چه دوی | پرهیزګاری وکړی | یا هغه پیدا کړی | دوی دَ پاره | څهٔ نصیحت

مو هر قسم سزا ګانے آؤرولی دی چه خلق وویریږی یا دا چه (دا قرآن) په کښے پوهه پیدا کړی ـ

فَتَعٰلَى اللّٰهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ ۚ وَلَا تَعْجَلْ بِالْقُرْاٰنِ مِنْ قَبْلِ

نو ډیر لوئے دے | الله | بادشاه | چه حقیقی دے | او تندی مهٔ کوه | په (لوستلو دَ) قرآن کښے | دمخه له دے نه

نو ډیر لوئے دے هغه الله چه حقیقی بادشاه دے او ته (دَ) قرآن (په لوستلو کښے (هیچرے) تلوار مهٔ کوه ، دَ دے نه

اَنْ يُّقْضٰٓى اِلَيْكَ وَحْيُهٗ ۫ وَقُلْ رَّبِّ زِدْنِيْ عِلْمًا ﴿١١٤﴾

چه پوره شی | ستا طرف ته | دَ هغے وحی | او وو ایه | اے زما ربه! | زیات کړه ما | په علم کښے

وړاندِ چه دَ دِے وحی درباندِ پوره پوره رانازله شی او دا وایه چه اے زما ربه! زما علم زیات کړه ـ

وَلَقَدۡ عَهِدۡنَآ إِلَىٰٓ ءَادَمَ مِن قَبۡلُ فَنَسِيَ وَلَمۡ نَجِدۡ لَهُۥ

او مونږ وعده واخستله | دَ آدمؑ نه | له دے نه وړاندې | پس هغهٔ هېر کړل | او ونهٔ موندله مونږ | په دهٔ کښے

او مونږ له دے نه وړاندې دَ آدمؑ نه وعده اخستے وه خو دَ هغهٔ نه غفلت وشو او مونږ په هغهٔ کښے عزم ونهٔ

عَزۡمٗا ﴿١١٥﴾ وَإِذۡ قُلۡنَا لِلۡمَلَٰٓئِكَةِ ٱسۡجُدُواْ لِأٓدَمَ فَسَجَدُوٓاْ

پخه اراده | او هر کله چه مونږ ووئیل | فرښتو ته | چه تاسو سجده وکړئ | آدم ته | پس سجده وکړه دوی

موندلو۔ او (یاد کړه) هر کله چه مونږ فرښتو ته ووئیل، چه تاسو آدمؑ ته سجده وکړئ نو ټولو سجده وکړه

إِلَّآ إِبۡلِيسَ أَبَىٰ ﴿١١٦﴾ فَقُلۡنَا يَٰٓـَٔادَمُ إِنَّ هَٰذَا عَدُوّٞ لَّكَ وَلِزَوۡجِكَ

سوا دَ ابلیس نه | دهٔ انکار وکړو | مونږ ووئیل | اے آدمؑ! | بیشکه دا | دښمن دے | ستا | او ستا دَ ښځے

خو ابلیس ونهٔ کړه هغهٔ انکار وکړو۔ پس مونږ ووئیل چه اے آدمؑ! دا ستا او ستا دَ ښځے دښمن دے۔

فَلَا يُخۡرِجَنَّكُمَا مِنَ ٱلۡجَنَّةِ فَتَشۡقَىٰٓ ﴿١١٧﴾ إِنَّ لَكَ أَلَّا تَجُوعَ فِيهَا

پس دے دِ ونهٔ باسی تاسو دواړه | له جنت نه | بیا به تاسو ته تکلیف وی | بیشکه تا دَ پاره دی | چه نهٔ به نهٔ اوږے کیږے | په دے کښے

نو هسے نه چه تاسو دواړه دَ جنت نه بهر وباسی نو په مصیبت کښے اخته شئ۔ دلته (په جنت) کښے به نهٔ ته اوږے کیږے

وَلَا تَعۡرَىٰ ﴿١١٨﴾ وَأَنَّكَ لَا تَظۡمَؤُاْ فِيهَا وَلَا تَضۡحَىٰ ﴿١١٩﴾

او نهٔ به بربنډ یږے | او بیشکه ته به | نهٔ تږے کیږے | په دے کښے | او نهٔ به | دَ نوَر ګرمی بیا موے۔

او نهٔ به چرے بربنډ یږے او دا هم دهٔ چه نهٔ به چرے تږے کیږے او نهٔ به په نوَر کښے تنکیږے۔

فَوَسۡوَسَ إِلَيۡهِ ٱلشَّيۡطَٰنُ قَالَ يَٰٓـَٔادَمُ هَلۡ أَدُلُّكَ عَلَىٰ شَجَرَةِ

بیا وسوسه واچوله | هغهٔ ته | شیطان | دهٔ ووئیل | اے آدمؑ! | آیا زهٔ وښایم تا ته | بوٹی او نه

نو شیطان دَ هغوئی په زړهٔ کښے وسوسه واچوله هغهٔ ووئیل چه اے آدمؑ! آیا زهٔ تا ته دَ همیشه پاتے کیدو اونه

ٱلۡخُلۡدِ وَمُلۡكٖ لَّا يَبۡلَىٰ ﴿١٢٠﴾ فَأَكَلَا مِنۡهَا فَبَدَتۡ لَهُمَا سَوۡءَٰتُهُمَا

دَ همیشه کیدلو | او بادشاهی | چه نهٔ زړیږی | بیا دواړو وخوړه | له دے نه | ښکاره شول | دوی ته | شرمګاهونه دَ دوی

وښایم او داسے بادشاهی وښایم چه چرے به نهٔ کمزورے کیږی نو دواړو دَ هغے (وَنے) نه خوراک وکړو نو خپل دَ پردے ځایونه ورته ښکاره

وَطَفِقَا يَخۡصِفَانِ عَلَيۡهِمَا مِن وَرَقِ ٱلۡجَنَّةِۚ وَعَصَىٰٓ

او شروع وکړه دوی | چه انښلولے ئے | په ځانونو پورے | پاڼے | دَ جنت | او نافرمانی وکړه

شول، او دواړو په ځان پورے دَ جنت پاڼے انښلول شروع کړل، او آدم علیه السلام نه دَ خپل

ءَادَمُ رَبَّهُۥ فَغَوَىٰ ﴿١٢١﴾ ثُمَّ ٱجۡتَبَٰهُ رَبُّهُۥ فَتَابَ عَلَيۡهِ

آدم | دَ رب خپل | او هغه په غلطئ کښے پریوتلو | بیا غوره کړو دے | رب دَ دهٔ | بیا ئے توبه قبوله کړه | دَ دهٔ

رب په حکم کښے قصور وشو او هغوئی په غلطئ کښے پریوتل، بیا خپل رب هغه مقبول کړو نو دَ هغهٔ توبه ئے قبوله کړه

وَهَدَىٰ ﴿١٢٢﴾ قَالَ ٱهۡبِطَا مِنۡهَا جَمِيعَۢاۖ بَعۡضُكُمۡ لِبَعۡضٍ عَدُوّٞۖ

او لارے ئے ورته وښودله | دے ئے فرمایئل | ښکته لاړ شئ | دلته نه | ټول | ځینے له تاسو نه به | دَ ځینو | دښمنان دی

او سمه لار ئے ورته وښودله۔ الله وتهٔ وفرمایئل چه تاسو دواړه اوس (دَ جنت نه) کوز شئ په جمع، تاسو به دَ یو بل دښمنان یئ

فَاِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ مِّنِّىْ هُدًى ۙ فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَاىَ فَلَا يَضِلُّ

پس که چیرې راشي تاسو ته | زما له طرف نه | هدایت | نو چا چه پیروي وکړه | زما د هدایت | نو هغه به نه گمراه شي

بیا که چیرې زما د طرف نه تاسو ته هدایت درشي، نو څوک چه زما د هدایت پیروي وکړي نو هغه به نه گمراه کیږي

وَلَا يَشْقٰى ﴿١٢٣﴾ وَمَنْ اَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِىْ فَاِنَّ لَهٗ مَعِيْشَةً ضَنْكًا

او نه به تکلیف مومي | او چا چه مخ واړولو | زما د ذکر نه | نو بیشکه د هغه | ژوند به | تنگ وي

او نه به محرومه پاتې کیږي. او څوک چه زما د یاد نه مخ واړوي نو بیشکه د هغه ژوندون به لنډ تنگ وي

وَّنَحْشُرُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اَعْمٰى ﴿١٢٤﴾ قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِىْٓ اَعْمٰى

او مونږ به راپاڅوو دې | په ورځ د قیامت | ړوند | وائي به | اے زما ربه! | ولې راپاڅولم تا زه | ړوند

او د قیامت په ورځ به مونږ هغه ړوند راپاڅوو. هغه به ووائي چه اے زما ربه! تا زه ړوند ولې راپاڅولے یم

وَقَدْ كُنْتُ بَصِيْرًا ﴿١٢٥﴾ قَالَ كَذٰلِكَ اَتَتْكَ اٰيٰتُنَا فَنَسِيْتَهَا ۚ

او زه خو وم | بینا | وُبه فرمائي | دغه شان | راغلې وې تاته | نخښې زمونږ | نو تا هغه هیرې کړې

زه خو په دُنیا کښې د سترگو خاوند وم حکم به وُشي دغه شان تاته زمونږ نخښې راغلې وې خو تا د هغې پروا ونه ساتله

وَكَذٰلِكَ الْيَوْمَ تُنْسٰى ﴿١٢٦﴾ وَكَذٰلِكَ نَجْزِىْ مَنْ اَسْرَفَ

او دغه شان | نن ورځ به | هیر کړے شې ته | او دغه شان | مونږ سزا ورکوو | هغه چا ته چه لحد نه تیر شي

او دغسې به نن ته هم هیر کړے شې. او دغسې مونږ هر هغه چا له سزا ورکوو چه له حد نه وړاندې تیر

وَلَمْ يُؤْمِنْۢ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ ۭ وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَشَدُّ وَاَبْقٰى ﴿١٢٧﴾

او ایمان رانه وړي | په آیتونو | د رب خپل | او عذاب | د آخرت | زیات سخت دے | او زیات باقي پاتې کیدونکے

شي او د خپل رب نخښې ونه مني، او د آخرت عذاب ډیر سخت او ډیر باقي پاتې کیدونکے دے.

اَفَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنَ الْقُرُوْنِ يَمْشُوْنَ

آیا لاره ونه ښودله | دوی ته | چه څومره | مونږ هلاک کړل | له دوی نه وړاندې | قومونه | چه دوی گرځي راگرځي

آیا دوی د دې نه هم سبق وانه خستلو چه مونږ (تر اوسه) د دوی نه وړاندې څومره ډیر قومونه تباه کړي دي چه د هغوی

فِىْ مَسٰكِنِهِمْ ۭ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّاُولِى النُّهٰى ﴿١٢٨﴾ وَلَوْلَا

د دوی په کورونو کښې | بیشکه په دې کښې | نخښې دي | د عقلمندو د پاره | او که چیرې شوې نه وې

په کورونو کښې (اوس) دوی گرځي راگرځي؟ بیشکه په دې کښې د عقل خاوندانو د پاره نخښې پرتې دي او که چیرې ستا

كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ لَكَانَ لِزَامًا وَّاَجَلٌ مُّسَمًّى ﴿١٢٩﴾ فَاصْبِرْ

یوه خبره | له وړاندې نه | ستا د رب له طرف نه | نو (عذاب) لازم وو | او یوه نیټه | مقرر شوې | پس صبر وکړه

د رب له طرف نه یوه خبره د اول نه (خلاصه) شوې نه وې او یو وخت مقرر نه وې نو په دوی به عذاب راتلل لازم شوی وو، نو

عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ

په هغه څه | چه دوی وائي | او پاکي بیان کړه | په تعریف سره | د خپل رب | وړاندې | د راختلو | د نمر نه

د دوی په خبرو باندې صبر کوه او د خپل رب پاکي د هغه د تعریفونو سره بیانوه، د نمر د ختلو نه وړاندې

وَقَبْلَ غُرُوْبِهَا ۚ وَمِنْ اٰنَآئِ الَّيْلِ فَسَبِّحْ وَاَطْرَافَ النَّهَارِ

او وړاندې | دَ پربوتلو دَ دے نه | او په ځنو وختونو | دَ شپې | پس پاکي بیانوه | او په طرفونو کښې | دَ ورځے

اودَ نوَر دَ ډوبیدلو نه وړاندې اودَ شپې په ځنے وختونو کښے هم تسبیح کوه اودَ ورځے په اول او په آخر کښے هم

لَعَلَّكَ تَرْضٰى ﴿١٣٠﴾ وَلَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ اِلٰى مَا مَتَّعْنَا بِهٖٓ

چه ته خوشحاله شے | او مهٔ غځوه | خپلے سترګے | په طرف دَ هغه څیزونو | چه فائده ورکړه مونږ | په دَ سره

دَ پاره دَ دے چه خوشحاله اوسیږے او هیچرے په هغه څیزونو پسے سترګے مهٔ بوږه ته کوه چه مونږ دَ دوئ ځنو

اَزْوَاجًا مِّنْهُمْ زَهْرَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ لِنَفْتِنَهُمْ فِيْهِ ۗ وَرِزْقُ

مختلفو خلقو ته له دوی نه | رونق | دَ ژوند | دَ دُنیا | چه مونږ په دوئ آزمیښت دکړو | په هغے کښے | او روزی

تو لګو له ورکړی دی . دا تش دَ دُنیا دَ ژوند رونق دے ، چه مونږ په دے کښے دَ دوئ آزمیښت وکړو

رَبِّكَ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى ﴿١٣١﴾ وَاْمُرْ اَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ

ستا دَ رب | غوره | او پائیدار ده دَه | او حکم کوه | خپل کور والو ته | دَ مونځ | او قائم وُسیږه

او ستا دَ رب ورکړے رزق غوره او زیات باقي پاتے کیدونکے دے . او خپلو خپلوانو ته دَ مونځ حکم ورکوه او پخپله هم دَ

عَلَيْهَا ۗ لَا نَسْـَٔلُكَ رِزْقًا ۗ نَحْنُ نَرْزُقُكَ ۗ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوٰى ﴿١٣٢﴾

په هغے | نهٔ غواړو مونږ له تا نه | روزی | هم مونږ | روزی درکوُو تا ته | او (ښهٔ) انجام | دَ پرهیزګارئ دے

مونځ پابند وُسیږه مونږ تا نه روزی نهٔ غواړو بلکه مونږ تا ته رزق درکوُو او ښهٔ انجام دَ پرهیزګارئ دے .

وَقَالُوْا لَوْلَا يَاْتِيْنَا بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ ۗ اَوَلَمْ تَاْتِهِمْ بَيِّنَةُ

او دوی وائي | ولے نهٔ | راځي مونږ ته | څهٔ نخښه | دَ دهٔ دَ رب دَ طرف نه | ایا نهٔ ده راغلے دوی ته | واضحه نخښه

او (دا) خلق وائي چه دے مونږ ته دَ خپل رب دَ طرف نه یوه نخښه ولے نهٔ راوړی؟ ایا دوئ ته هغه خبرے څرګندے

مَا فِى الصُّحُفِ الْاُوْلٰى ﴿١٣٣﴾ وَلَوْ اَنَّآ اَهْلَكْنٰهُمْ بِعَذَابٍ

چه دَه | په وړومبنو صحیفو کښے | او که چرے مونږ | هلاکولے دوی | په عذاب سره

نهٔ لې چه په پخوانو صحیفو کښے (لیکلی) پرتے وے او که مونږ دوئ دَ دے (قرآن) نه وړومبے په عذاب باندې

مِّنْ قَبْلِهٖ لَقَالُوْا رَبَّنَا لَوْلَآ اَرْسَلْتَ اِلَيْنَا رَسُوْلًا فَنَتَّبِعَ

له دے نه وړاندې | نو دوی به وئیل | اے زمونږ ربه! | ولے تا را وُنهٔ لیږلو | زمونږ طرف ته | څوک رسول | چه مونږ پیروی کړې وې

هلاک کړی وے نو دوئ به وئیل چه اے زمونږ ربه! تا مونږ ته ولے یو رسول را وُنهٔ لیږلو چه مونږ ستا دَ حکم

اٰيٰتِكَ مِنْ قَبْلِ اَنْ نَّذِلَّ وَنَخْزٰى ﴿١٣٤﴾ قُلْ كُلٌّ مُّتَرَبِّصٌ فَتَرَبَّصُوْا ۚ

ستا دَ آیتونو | له دے نه وړاندې | چه ذلیل شو مونږ | او رسوا شو مونږ | ووایه | هر یو | انتظار کوونکے دے | پس تاسو (هم) انتظار کوئ

پیروی کړے وے وړاندې دَ دے نه چه بے قدره او رسوا شو؟ ورته ووایه چه ټول انتظار کوی نو تاسو هم انتظار کوئ

فَسَتَعْلَمُوْنَ مَنْ اَصْحٰبُ الصِّرَاطِ السَّوِيِّ وَمَنِ اهْتَدٰى ﴿١٣٥﴾

پس زر به تاسو پوهه شئ | چه څوک دی | خاوندان | دَ لارے | نیغے | او څوک دی | چه سمه لاره ئے بیا موندله

ډیر زر به درته معلومه شي چه څوک په سمه لاره روان دی او څوک هدایت موندونکی دی .

سُوْرَةُ الْاَنْبِيَآءِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مِائَةٌ وَّ — بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ — اِثْنَتَا عَشْرَةَ اٰيَةً وَّسَبْعُ رُكُوْعَاتٍ

سورة انبياء په مکه کښې نازل شوې — (شروع) د الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے — په دے کښې ١١٢ آیتونه او ٧ رکوعګانې دي

شروع کوم د الله په نوم چه لوئے مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے

اِقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ وَهُمْ فِيْ غَفْلَةٍ مُّعْرِضُوْنَ ﴿١﴾ مَا يَاْتِيْهِمْ

خلقو د پاره د دوئ (د عملونو د) حساب (وخت) رانزدے شو او دوئ په غفلت کښې (پراته) مخونه ئے ګرځولی دي، دوئ

مِّنْ ذِكْرٍ مِّنْ رَّبِّهِمْ مُّحْدَثٍ اِلَّا اسْتَمَعُوْهُ وَهُمْ يَلْعَبُوْنَ ﴿٢﴾

ته چه د دوئ د رب له طرف نه نوے نصیحت راځي نو دوئ آورې مګر داسے لکه چه دوئ په لوبو اخته وي

لَاهِيَةً قُلُوْبُهُمْ ۭ وَاَسَرُّوا النَّجْوَى ڰ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ڰ هَلْ

د دوئ زړونه غافله دي او دا ظالمان پټے پټے مشورے کوي، چه دا خو هم

هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ۚ اَفَتَاْتُوْنَ السِّحْرَ وَاَنْتُمْ تُبْصِرُوْنَ ﴿٣﴾

ستاسو په شان یو سړے دے نو آیا تاسو د جادو په دے خبرو پسے ځئ سره د دے چه په سترګو وینئ ګورئ

قٰلَ رَبِّيْ يَعْلَمُ الْقَوْلَ فِي السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ۡ وَهُوَ

پیغمبر ووئیل چه زما رب د آسمان او زمکے په هره خبره بانده پوهیږی او هغه

السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿٤﴾ بَلْ قَالُوْٓا اَضْغَاثُ اَحْلَامٍ بَلِ افْتَرٰىهُ

هرڅه آوری په هر څه پوهه دے. بلکه دوئ (خو) وائي چه دا (قرآن) څنګ ګډوډ خوبونه دي، بلکه (پیغمبر) د ځان

بَلْ هُوَ شَاعِرٌ ښ فَلْيَاْتِنَا بِاٰيَةٍ كَمَآ اُرْسِلَ الْاَوَّلُوْنَ ﴿٥﴾

جوړ کړے دے بلکه دے یو شاعر دے. نو دے له پکار دی چه څه داسے نخښه موږ ته راوړی لکه څنګه چه پخوانی رسولان راليږلے

مَآ اٰمَنَتْ قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَا ۚ اَفَهُمْ يُؤْمِنُوْنَ ﴿٦﴾

شوی وو، د دوئ نه وړاندې هم د کومو کلو خلق چه موږ هلاک کړی دی هغوئ خو ایمان راوړے نه وو نو آیا دا خلق به ایمان راوړی څه؟

وَمَآ اَرْسَلْنَا قَبْلَكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوْحِيْٓ اِلَيْهِمْ فَسْـَٔلُوْٓا اَهْلَ الذِّكْرِ

او له تا نه وړاندې موږ هم سړی پیغمبران جوړ کړی راليږلی دی کوم ته چه به موږ وحی ليږله که چرے تاسو په دے خبره

إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ⑦ وَمَا جَعَلْنٰهُمْ جَسَدًا لَّا يَأْكُلُوْنَ الطَّعَامَ

که چېرې تاسو | نه پوهېږئ | او نه وو جوړ کړي مونږ دغوی | داسې جسم | چه نه یې خوړه | طعام

نه پوهیږئ نو د علم والؤ نه تپوس وکړئ. او مونږ د دې نبیانو داسې بدنونه نه وو جوړ کړي چه کښې خوراکونه ډنه

وَمَا كَانُوْا خٰلِدِيْنَ ⑧ ثُمَّ صَدَقْنٰهُمُ الْوَعْدَ فَأَنْجَيْنٰهُمْ

او نه | دوی وو | همیشه اوسېدونکي | بیا | رښتینې کړه مونږ دوی سره | وعده | پس نجات ورکړو مونږ دوی ته

کوي او نه همیشه هغوئ ژوندي پاتې شوي دي بیا مونږ هغوئ سره خپله وعده رښتیا کړه نو هغوئ له او (نور)

وَمَنْ نَّشَآءُ وَأَهْلَكْنَا الْمُسْرِفِيْنَ ⑨ لَقَدْ أَنْزَلْنَآ

او هغه چاته | چه غوښتل مونږ | او هلاک کړل مونږ | حد نه تیریدونکي | بیشکه | نازل کړې دې مونږ

چاله چه مو غوښتله مونږ نجات ورکړو او د حد نه تیریدونکي مو هلاک کړل (اے خلقو!) مونږ په تاسو یو کتاب

إِلَيْكُمْ كِتٰبًا فِيْهِ ذِكْرُكُمْ ۗ أَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ⑩

ستاسو طرف ته | یو کتاب (قرآن) | چه په هغې کښې | ستاسو ذکر دې | پس آیا تاسو نه پوهیږئ

(قرآن) نازل کړې دې په کوم کښې چه تاسو د پاره نصیحت دې، نو آیا تاسو پوهیږئ نه!

وَكَمْ قَصَمْنَا مِنْ قَرْيَةٍ كَانَتْ ظَالِمَةً وَّأَنْشَأْنَا

او ډیر | برباد کړي دي مونږ | کلي | چه وو هغوی ظالمان | او پیدا کړل مونږ

او مونږ داسې ډیر کلي تباه کړل چه د هغې خلق ظالمان وو، او د هغوئ نه

بَعْدَهَا قَوْمًا اٰخَرِيْنَ ⑪ فَلَمَّآ أَحَسُّوْا بَأْسَنَآ

پس له هغې نه | قومونه | نور | پس هرکله چه | دوی محسوس کړو | زمونږ عذاب

پس مو یو بل قوم راپیدا کړو، نو هرکله چه هغوئ زمونږ عذاب ولیدلو

إِذَا هُمْ مِّنْهَا يَرْكُضُوْنَ ⑫ لَا تَرْكُضُوْا وَارْجِعُوْآ إِلٰى

ناګهانه په دوی | له هغه ځلئ نه | تښتیدل | مه تښتئ | او واپس شئ | په طرف

نو د هغه کلي نه په تیښته شروع شول (اوس) مه تښتئ او کوم نعمتونه چه تاسو ته درکړې

مَآ أُتْرِفْتُمْ فِيْهِ وَمَسٰكِنِكُمْ لَعَلَّكُمْ تُسْـَٔلُوْنَ ⑬ قَالُوْا

د هغه (سامان) | چه عیش به کولو تاسو په هغې کښې | او خپلو کورونو ته | شاید چه تاسو نه | تپوس وشي | دوی ووئیل

شوي وو هغې ته او خپلو کورونو طرف ته واپس راشئ شاید چه تاسو نه څه تپوس وشي؟ هغوی ووئیل

يٰوَيْلَنَآ إِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ⑭ فَمَا زَالَتْ تِّلْكَ دَعْوٰىهُمْ حَتّٰى

هائې افسوس! | بیشکه وو مونږ | ظالمان | پس همیشه وې | هم دا | چیغې د دوی | تر دې چه

چه افسوس! بیشکه هم مونږ ظالمان وو. نو لګیا وو هم د غسې ئې چیغې وهلې تر دې چه هغوئ

جَعَلْنٰهُمْ حَصِيْدًا خٰمِدِيْنَ ⑮ وَمَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ

کړل مونږ دوی | په شان د لو شوي فصل | او په شان د مراور | او نه دې پیدا کړې مونږ | آسمان

مو د ریبلي شوي فصل او د مراور په شان کړل. او مونږ آسمان او زمکه او څه چه

وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لٰعِبِيْنَ ﴿١٦﴾ لَوْ اَرَدْنَآ اَنْ نَّتَّخِذَ

او زمکه | او څه چه | دَ دِے په مينځ کښے دی | لوبے | که چرے غوښتلے مونږ | چه جوړه دِ کړو

دَ دِے په مينځ کښے دی لوبه تماشه مونږ دَه جوړه کړے. که چرے مونږ لوبه تماشه جوړول

لَهْوًا لَّاتَّخَذْنٰهُ مِنْ لَّدُنَّآ ۖ اِنْ كُنَّا فٰعِلِيْنَ ﴿١٧﴾ بَلْ

لوبه | نو خامخا به مونږ جوړه کړے وه هغه | له خپل ځان نه | که چرے | ؤ مونږ | کوونکی | بلکه

غوښتلے نو هم دَ خپل ځان نه به مو جوړه کړے وے که مونږ خامخا داسے کولے. بلکه

نَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَى الْبَاطِلِ فَيَدْمَغُهٗ فَاِذَا هُوَ زَاهِقٌ ؕ

مونږ غورځوؤ | حق | په باطل باندِ | پس هغه دَ دهٔ سرماتوی | پس ناګهانه هغه | ورک شی

مونږ خو حق دَ باطل دَ پاسه ورګُذارو نو هغه دَ هغے سرماتوی نو هغه (باطل) ورک شی،

وَلَكُمُ الْوَيْلُ مِمَّا تَصِفُوْنَ ﴿١٨﴾ وَلَهٗ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ

او تاسو له | هلاکت دے | له هغه څه نه | چه تاسو ئے بيانوئ | او هم دَ دهٔ دی | څوک چه | په آسمانونو کښے

او څه چه تاسو (دروغ) بيانوئ هغه تاسو دَ پاره بربادی ده او په آسمانونو او زمکه کښے چه څه دی ټول دَ

وَالْاَرْضِ ؕ وَمَنْ عِنْدَهٗ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَلَا يَسْتَحْسِرُوْنَ ﴿١٩﴾ ۚ

او زمکه کښے دی | او څوک چه | دَ دهٔ سره دی | سرکشی نهٔ کوی | دَ دهٔ له عبادت نه | او نهٔ ستړی کيږی

هغهٔ دی او کومے (فرښتے) چه هغهٔ سره دی، نهٔ دَ هغهٔ دَ عبادت نه سرکشی کوی او نهٔ ستړی کيږی

يُسَبِّحُوْنَ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ لَا يَفْتُرُوْنَ ﴿٢٠﴾ اَمِ اتَّخَذُوْٓا

هغوئ تسبيح وائی | شپه | او ورځ | سستی نهٔ کوی | آيا | دوی نيولی دی

ورځ او شپه دَ الله تعالیٰ تسبيح کوی او سستی بالکل نهٔ کوی. آيا دِے خلقو دَ زمکے په مخ

اٰلِهَةً مِّنَ الْاَرْضِ هُمْ يُنْشِرُوْنَ ﴿٢١﴾ لَوْ كَانَ فِيْهِمَآ

(نور) معبودان | له زمکے نه | (چه) دوی | به بيا ژوندی کوی دوی | که چرے وے | په دِے کښے

داسے څيزونه معبودان نيولی دی چه څوک راپيدا کولے شی؟ که چرے په زمکه او آسمان کښے

اٰلِهَةٌ اِلَّا اللّٰهُ لَفَسَدَتَا ۚ فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَرْشِ

(نور) معبودان | سيوا دَ الله نه | نو دواړه (زمکه او آسمان) به تباه شوی وو | پس پاک دے | الله | مالک | دَ عرش

دَ الله تعالیٰ نه سيوا نور معبودان وے نو دواړه به تباه شوی وو، نو کومے خبرے چه خلق دَ هغهٔ په حقله بيانوی

عَمَّا يَصِفُوْنَ ﴿٢٢﴾ لَا يُسْئَلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْئَلُوْنَ ﴿٢٣﴾

له هغه څه نه | چه دوی ئے بيانوی | تپوس به نهٔ شی کيدے | له دهٔ نه | څه چه دے وکړی | او هم له دوی نه | به تپوس کيدے شی

دَ عرش مالک الله تعالیٰ دَ هغے نه پاک دے. هغه چه هر څه کوی نو پښتنه ترے نه نهٔ شی کيدے او دَ خلقونه به تپوس پښتنه کيږی

اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً ؕ قُلْ هَاتُوْا

آيا | دوی نيولی دی | دَ الله نه سيوا | (نور) معبودان | ووايه | راوړئ تاسو

آيا دوئ دَ الله تعالیٰ نه سيوا (ځان له) نور معبودان راپيدا کړی دی؟ ته ورته ووايه چه تاسو خپل دليل

بُرْهَانَكُمْ ۚ هٰذَا ذِكْرُ مَنْ مَّعِيَ وَذِكْرُ مَنْ قَبْلِيْ ۗ

خپل دلیل | هم دا | ذکر دے | دَ هغه چا چه | ماسره دی | او ذکر دے | دَ هغه چا چه | وړاندې له ما نه وو

خورا مخکښې کړئ ، دا دَ هغه خلقو ذکر دے چه ماسره دی ، او دَ هغو کوم چه له ما نه وړاندې وو

بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۙ الْحَقَّ فَهُمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿٢٤﴾

بلکه | اکثر له دوی نه | نهٔ پوهیږی | په حق | پس دوی | مخ اړونکی دی

خو په دوئ کښې اکثر خلق په حقه خبره نهٔ پوهیږی نو (ځکه) دَ هغې نه مخ گرځوی

وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا نُوْحِیْٓ

او نهٔ دے لیږلے مونږ | له تا نه وړاندې | څوک | رسول | مگر | مونږ به وحی کوله

او مونږ له تا نه وړاندې هیڅکله داسے یو رسول نهٔ دے لیږلے چه هغهٔ ته مو دا وحی کړے نهٔ

اِلَيْهِ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدُوْنِ ﴿٢٥﴾ وَقَالُوا اتَّخَذَ

دَ هغهٔ طرف ته | دا چه نشته دے بل څوک معبود | سیوا زما نه | پس عبادت کوئ زما | او دوی وائی | نیولے دے

وی چه زما نه سیوا بل معبود نشته نو صرف هم زما عبادت کوئ ۔ او دوی وائی چه رحمن

الرَّحْمٰنُ وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ ۭ بَلْ عِبَادٌ مُّكْرَمُوْنَ ۙ﴿٢٦﴾

رحمن | اولاد | هغه پاک دے | بلکه | بندګان دی | عزتمند

(خدائے) اولاد نیولے دے حال دا چه هغه دَ دې نه پاک دے، بلکه (فرښتې خو) دَ هغهٔ ډیر عزتمند بندګان دی

لَا يَسْبِقُوْنَهٗ بِالْقَوْلِ وَهُمْ بِاَمْرِهٖ يَعْمَلُوْنَ ﴿٢٧﴾ يَعْلَمُ

نهٔ وړاندې کیږی دوئ له دهٔ نه | په هیڅ خبره کښې | او دوی | په حکم دَ هغهٔ | عمل کوی | هغه پوهیږی

دَ هغهٔ نه وړاندې خبره قدرنهٔ شی کولے او دَ هغهٔ په حکم پوره پوره عمل کوی ۔ هغهٔ ته معلوم دی

مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يَشْفَعُوْنَ ۙ اِلَّا

په هغه څه | چه په وړاندې دَ دوی دی | او په هغه څه چه دَ دوئ وروستو دی | او سفارش به نهٔ کوی | مګر

هر څهٔ چه دَ دهٔ په وړاندې دی ، او هر څهٔ چه ترے نه شاته دی او هغوئ دَ چا سفارش هم نهٔ شی کولے

لِمَنِ ارْتَضٰى وَهُمْ مِّنْ خَشْيَتِهٖ مُشْفِقُوْنَ ﴿٢٨﴾

هغه چا دَ پاره چه | هغه پرے راضی شوے دے | او دوی | دَ هغهٔ دَ ویرے نه | ویریدونکی دی ۔

سیوا دَ هغه چا نه دَ چا نه چه الله تعالیٰ راضی دی او هغوئ ټول دَ الله دَ هیبت نه همیشه په ویره وی

وَمَنْ يَّقُلْ مِنْهُمْ اِنِّيْٓ اِلٰهٌ مِّنْ دُوْنِهٖ فَذٰلِكَ

او څوک چه | وائی | له دوی نه | چه بیشکه زهٔ | معبود یم | دَ هغهٔ نهٔ سیوا | پس دا سے له به

او په دوئ کښې چه څوک داسے ووائی چه دَ هغهٔ نه سیوا زهٔ معبود یم نو هغهٔ له به مونږ

نَجْزِيْهِ جَهَنَّمَ ۭ كَذٰلِكَ نَجْزِي الظّٰلِمِيْنَ ﴿٢٩﴾ اَوَلَمْ يَرَ

مونږ سزا ورکړو | دَ دوزخ | هم دغه شان | مونږ سزا ورکوو | ظالمانو ته | آیا نهٔ دی کتلی

دَ دوزخ سزا ورکړو ، مونږ ظالمانو له هم دغه شان سزا ورکوو ۔ آیا کافرانو ته دا خبره

اَلَّذِیْنَ كَفَرُوْٓا اَنَّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ كَانَتَا

هغو خلقو چه | کافران دی | چه | آسمان | او زمکه | دو

معلومه نهٔ ده ، چه آسمانونه او زمکه په خپل مینځ کښې ملاؤ وو ،

رَتْقًا فَفَتَقْنٰهُمَا ؕ وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَآءِ كُلَّ شَیْءٍ حَیٍّ ؕ

ملاؤ شوی | بیا جُدا جُدا کړل مونږ دواړه | او پیدا کړو مونږ | له اوبو نه | هر څیز | ژوندے

بیا مونږ هغه جُدا جُدا کړل ۔ او مونږ د اوبو نه هر ژوندے څیز راپیدا کړے دے ۔

اَفَلَا یُؤْمِنُوْنَ ﴿٣٠﴾ وَجَعَلْنَا فِی الْاَرْضِ رَوَاسِیَ اَنْ تَمِیْدَ

پس آیا دوی ایمان نهٔ راوړی | او پیدا کړل مونږ | په زمکه کښې | غرونه | چه | چرته ښیټ (نهٔ) شی

نو آیا دوی ایمان نهٔ راوړی ۔ او مونږ په زمکه کښې غرونه جوړ کړل د پاره د دے چه هغه په دوی

بِهِمْ وَجَعَلْنَا فِیْهَا فِجَاجًا سُبُلًا لَّعَلَّهُمْ یَهْتَدُوْنَ ﴿٣١﴾

په دوی | او جوړے کړے مونږ | په دے کښې | ارتے | لارے | د پاره د دے چه دوی | لاره بیا مومی ۔

ونهٔ خوځی او په دے زمکه کښے مونږ ارتے بیرته لارے جوړے کړی دی چه خلق پرے لاره بیا مومی

وَجَعَلْنَا السَّمَآءَ سَقْفًا مَّحْفُوْظًا ۚۖ وَّهُمْ عَنْ اٰیٰتِهَا مُعْرِضُوْنَ ﴿٣٢﴾

او جوړ کړو مونږ | آسمان | یو چت | محفوظ | او دوی | د دے د نخښونه | مخ اړوُنکی دی

او مونږ آسمان یو محفوظ چت جوړ کړو، په دے باندې هم دوی (آسماني) نخښې په خاطر کښې نهٔ راولی

وَهُوَ الَّذِیْ خَلَقَ الَّیْلَ وَالنَّهَارَ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ؕ كُلٌّ

او هم هغه دے چا چه | پیدا کړله | شپه | او ورځ | او نمر | او سپوږمئ | هر یو

او الله تعالیٰ هغه ذات دے چه شپه او ورځ او نمر او سپوږمئ ئے پیدا کړی دی ، هر یو په

فِیْ فَلَكٍ یَّسْبَحُوْنَ ﴿٣٣﴾ وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِّنْ قَبْلِكَ الْخُلْدَ ؕ

په آسمان کښې | لامبو وهی | او نهٔ دے ورکړے مونږ | هیڅ یو بنیادم ته | له تا نه وړاندې | همیشه والے

خپله خپله دائره کښې لامبو وهی ، او مونږ له تا نه وړاندې هم څوک بشر د همیشه پاتے کیدو د پاره نهٔ دے جوړ کړے

اَفَا۟ئِنْ مِّتَّ فَهُمُ الْخٰلِدُوْنَ ﴿٣٤﴾ كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ؕ

پس آیا که چرے | وفات شے ته | نو دوی | همیشه پاتے کیدونکی دی؟ | هر یو نفس | څکونکے دے | (مزه) د مرګ

نو آیا که ته وفات شوے نو دا خلق به دلته همیشه پاتے شی ؟ هر یو نفس له به د مرګ مزه څکل وی

وَنَبْلُوْكُمْ بِالشَّرِّ وَالْخَیْرِ فِتْنَةً ؕ وَاِلَیْنَا تُرْجَعُوْنَ ﴿٣٥﴾ وَاِذَا

او مونږ آزمایو تاسو | په سختئ | او په آسودګئ | په طریقه د امتحان | او زمونږ طرف ته | به بیرته راګرځولے شئ | او هر کله چه

او مونږ په طور د امتحان تاسو په سختئ او راحت سره آزمایو او زمونږ اړخ ته به تاسو ټول راپسته کیږئ ، او هر کله

رَاٰكَ الَّذِیْنَ كَفَرُوْٓا اِنْ یَّتَّخِذُوْنَكَ اِلَّا هُزُوًا ؕ اَهٰذَا

ووینی تا | هغه خلق چه | کافران دی | نو نهٔ کوی دوی تا سره | مګر مذاق | آیا هم دا دے

چه دا کافران تا و وینی نو نور څهٔ نه خو ټوقے درپورے شروع کړی ، چه آیا دا هغه

الَّذِیْ یَذْكُرُ اٰلِهَتَكُمْ ۚ وَهُمْ بِذِكْرِ الرَّحْمٰنِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ﴿۳۶﴾

هغه کس | چه ذکر کوی | ستاسو دَ معبود ؟ | او هغه (خو) | دَ ذکر | دَ رحمٰن نه | منکر دی

(سړے) دے چه ستاسو دَ معبودانو ذکر (په بدۍ) کوی او حال دا چه دوی په خپله دَ رحمان دَ یاد نه انکار کوی

خُلِقَ الْاِنْسَانُ مِنْ عَجَلٍ ؕ سَاُورِیْكُمْ اٰیٰتِیْ فَلَا تَسْتَعْجِلُوْنِ ﴿۳۷﴾

پیدا شوے دے | انسان | له تُندۍ نه | ډیر زر به زهٔ وښایم تاسو ته | خپلے نخښے | پس تاسو مونږ نه دَ تندۍ مطالبهٔ کوئ

دَ انسان په پیدا وښت کښے تندی ایښوے شوے ده، زهٔ به ډیر زر تاسو ته خپلے نخښے وښایم پس تاسو تندی مه کوئ

وَیَقُوْلُوْنَ مَتٰی هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ ﴿۳۸﴾

او دوی وائی | کله به وی | دا | وعده | که چرے | یئ تاسو رښتینی ؟

او دوئ وائی چه دا وعده به کله پوره کیږی که تاسو رښتینی یئ ؟

لَوْ یَعْلَمُ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا حِیْنَ لَا یَكُفُّوْنَ عَنْ وُّجُوْهِهِمُ

کاش! چه پوهه شی | هغه خلق چه | کافران دی | هغه وخت چه | نهٔ به شی لرے کولے دوی | له مخونو خپلو نه

کاش! منکرانو ته هغه وخت معلوم وے چه دوئ به نهٔ دَ خپلو مخونو نه اُور منع کولے

النَّارَ وَلَا عَنْ ظُهُوْرِهِمْ وَلَا هُمْ یُنْصَرُوْنَ ﴿۳۹﴾ بَلْ

اور | او نهٔ | له شا گانو خپلو نه | او نهٔ به دوی ته | مدد ورکولے شی | بلکه

شی ، او نهٔ له خپلو شا گانو نه او نهٔ به ورته هیڅ قسم له امداد رسیدلے شی نو رشهٔ

تَاْتِیْهِمْ بَغْتَةً فَتَبْهَتُهُمْ فَلَا یَسْتَطِیْعُوْنَ رَدَّهَا وَلَا

رابه شی په دوی | ناگهانه | چه هغه به دوئ وارخطا کړی | پس دوی به طاقت نهٔ شی کړے | دَ دفع کولو دَ دے | او نه

نه خو دغه (اُور) به پرے ناگهانه راشی او دوی به حیرانه کړی، نو بیا نهٔ به هغه (اُور) لرے کولے شی او نهٔ به

هُمْ یُنْظَرُوْنَ ﴿۴۰﴾ وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ

به دوی له | مهلت ورکولے شی | او یقیناً ټټوبے وشوے | دَ پیغمبرانو سره | له تا نه وړاندِ

ورته (دَ توبے ایستلو) مهلت ورکولے شی۔ او له تا نه وړاندِ هم دَ پیغمبرانو سره ټټوبے شوی دی

فَحَاقَ بِالَّذِیْنَ سَخِرُوْا مِنْهُمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ

پس راپریوتلو | په هغه کسانو چه | خندا گانے به ئے کولے | له دوی نه | هغه (عذاب) | په کوم پورے چه

نو چا چه ورپورے خندا گانے کولے دَ هغوئ نه هم هغه عذاب راتاؤ شو په کوم پورے چه به

یَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۴۱﴾ قُلْ مَنْ یَّكْلَؤُكُمْ بِالَّیْلِ وَالنَّهَارِ

دوی خندا گانے کولے | دوایه | څوک | حفاظت کوی ستاسو | دَ شپے | او دَ ورځے

هغوئ خندل ۔ (اے پیغمبره!) ورته ووایه چه دَ رحمٰن (دَ عذاب) نه څوک ستاسو شپه او ورځ

مِنَ الرَّحْمٰنِ ؕ بَلْ هُمْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهِمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿۴۲﴾

(له عذاب) دَ رحمان نه | بلکه | دوی | دَ خپل رب له ذکر نه | مخونه اړولی دی ۔

حفاظت کوی (که هغه وغواړی) خبره دا ده چه دوی دَ خپل رب دَ یاد نه مخونه اړوی

اَمْ لَهُمْ اٰلِهَةٌ تَمْنَعُهُمْ مِّنْ دُوْنِنَا ؕ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ

آیا دَدوی | (نور) معبودان دی | چه دَدوئ حفاظت کوی | سیبوا زموږ نه ؟ | دوی نهٔ شی کولے

آیا دوئ سره زموږ نه سیبوا داسے معبودان شته چه دَدوئ حفاظت وکړی ؟ هغوئ خو دَ خپلو ځانونو

نَصْرَ اَنْفُسِهِمْ وَلَا هُمْ مِّنَّا يُصْحَبُوْنَ ﴿۴۳﴾ بَلْ

مدد | دَ خپل ځان | او نهٔ به دَدوئ | زموږ له طرف نه | ملګرتیا کولے شی | بلکه

امداد هم نهٔ شی کولے او نهٔ زموږ په مقابله کښے بل څوک دَ هغوئ ملګرتیا کولے شی ـ موږ

مَتَّعْنَا هٰٓؤُلَآءِ وَاٰبَآءَهُمْ حَتّٰى طَالَ عَلَيْهِمُ

موږ سامان (دَ ژوند) ورکړو | دوی ته | او دَ دوی پلارانو ته | تردے چه | اُوږده شوه | په دوی باندِ

دوئ او دَ دوئ پلار نیکهٔ له دَ دُنیا نعمتونه ورکړل ، تردے چه په دوئ باندِ یوه اوږده

الْعُمُرُ ؕ اَفَلَا يَرَوْنَ اَنَّا نَاْتِى الْاَرْضَ نَنْقُصُهَا

موده دَ عمر | پس آیا دوی نهٔ ګوری | چه موږ راځو | ز مکے ته | چه کموؤ موږ دا

موده تیره شوه ، آیا دوی نهٔ ګوری چه موږ (دَ دوئ دَ قبضے لاندِ) ز مکه (دَ مسلمانانو په فتوحاتو سره) دَ هر طرف

مِنْ اَطْرَافِهَا ؕ اَفَهُمُ الْغٰلِبُوْنَ ﴿۴۴﴾ قُلْ اِنَّمَآ اُنْذِرُكُمْ

دَ ډے له طرفونو نه | پس آیا دوی | غالب کیدونکی دی | دوایه | بیشکه | زهٔ ویروم تاسو

نه راتنګوؤ ، نو آیا اوس هم دوئ غلبه بیا موندے شی ؟ (اے پیغمبره!) ته ورته ووایه چه زهٔ خو تاسو صرف دَ وحی

بِالْوَحْىِ ۖ وَلَا يَسْمَعُ الصُّمُّ الدُّعَآءَ اِذَا مَا يُنْذَرُوْنَ ﴿۴۵﴾

دَ وحی په ذریعه | او نهٔ اوری | کانړهٔ | بلنه | هر کله چه | دوی وویروے شی

په ذریعه (دَ الله دَ نا فرمانئ نه) ویروم او کانړه چه څهٔ وخت ویروے شی نو دوئ خو هیڅ اواز نهٔ اوری

وَلَئِنْ مَّسَّتْهُمْ نَفْحَةٌ مِّنْ عَذَابِ رَبِّكَ لَيَقُوْلُنَّ

او که چرے | وُرسیږی دوی ته | یوه چپه | د عذاب | ستا دَ رب | نو دوی به ضرور وائی

او که چرے ستا دَ رب له طرف نه دوی ته دَ عذاب یوه چپه راشی ، نو دوئ وائی

يٰوَيْلَنَآ اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ﴿۴۶﴾ وَ نَضَعُ الْمَوَازِيْنَ

اے بد بختیٔ زموږ ! | بیشکه وو موږ | ظالمان | او | موږ به کیږدو | تله

هائے زموږ ه بد بختیٔ ! بیشکه چه موږ به په ځانونو ظلم کولو ، او موږ به دَ قیامت په ورځ دَ

الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْـًٔا ؕ

دَ انصاف | په ورځ | دَ قیامت | پس ظلم به نهٔ شی کولے | په هیڅ کس | دَ هیڅ څیز

انصاف تلے کیږدو ـ نو په چا به ذره هم ظلم نهٔ شی کولے

وَاِنْ كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ اَتَيْنَا بِهَا ؕ

او که چرے | دی (عمل) | په مقدار | دَ دانے | دَ اُوری (هم) | نو موږ به راؤړو | هغه

او کهٔ (دَ چا عمل) دَ اُوری دَ دانے هومره وړوکے وی نو هم به ئے راوړاندِ کړو

وَكَفٰى بِنَا حٰسِبِيْنَ ﴿٤٧﴾ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ

او کافي يو | مونږه | حساب کوونکي | او بیشکه | ورکړے وو مونږ | موسیٰ | او هارون ته

او حساب اخستو له مونږ يوازے کافي يو ۔ او مونږ موسیٰ او هارون ته (تورات) ورکړو

الْفُرْقَانَ وَضِيَآءً وَّ ذِكْرًا لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿٤٨﴾ الَّذِيْنَ

په حق او باطل کښے فرق کوونکے (کتاب) | او رڼا | او | ذکر | پرهيزګارانو دَ پاره | کوم خلق چه

چه په حق او باطل کښے فرق کوونکے او رڼا وه او پرهيزګارانو دَ پاره نصيحت دے ، هغه خلقو دَ پاره

يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ وَهُمْ مِّنَ السَّاعَةِ

ويريږي | له خپل رب نه | بے ليدلو | او دوی | له قيامت نه

چه دَ خپل رب نه غائبانه ويريږي او هغوئ دَ قيامت نه هم ويره

مُشْفِقُوْنَ ﴿٤٩﴾ وَهٰذَا ذِكْرٌ مُّبٰرَكٌ اَنْزَلْنٰهُ اَفَاَنْتُمْ

ويريدونکي دي | او دا (قرآن) | ذکر دے | برکت والا | چه مونږ نازل کړے دے دا | پس ايا تاسو

کوي ۔ او دا (قرآن) بابرکته نصيحت دے کوم چه مونږ نازل کړے دے نو ايا تاسو دَ

لَهٗ مُنْكِرُوْنَ ﴿٥٠﴾ وَلَقَدْ اٰتَيْنَآ اِبْرٰهِيْمَ رُشْدَهٗ

دَ دے نه | انکار کوونکي يئ ؟ | او بيشکه | ورکړے وو مونږ | ابراهيم ته (هم) | دَ دهٔ هدايت

دے نه انکار کوئ ؟ او مونږ ابراهيم ته له دے نه وړاندے هدايت ورکړے

مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا بِهٖ عٰلِمِيْنَ ﴿٥١﴾ اِذْ قَالَ لِاَبِيْهِ

له دے نه وړاندے | او مونږ وو | له دے نه | ښهٔ واقف | هر کله چه | دهٔ ووئيل | خپل پلار

وو او مونږ له دے نه ښهٔ واقف وو ۔ هر کله چه دهٔ خپل پلار او خپل

وَ قَوْمِهٖ مَا هٰذِهِ التَّمَاثِيْلُ الَّتِيْٓ

او | خپل قوم ته | څهٔ دي دا | صورتونه | هغه چه

قوم ته ووئيل چه دا څهٔ (واهيات) شکلونه دي چه دَ دے دَ عبادت

اَنْتُمْ لَهَا عٰكِفُوْنَ ﴿٥٢﴾ قَالُوْا وَجَدْنَآ اٰبَآءَنَا لَهَا

تاسو | په هغے | مجوران يئ | دوی ووئيل | مونږ موندلي وو | خپل پلار نيکهٔ | چه دَ هغے

دَ پاره تاسو ديرے لګولي دي ۔ هغوئ ورته ووئيل چه مونږه خو خپل پلاران نيکونه دَ دوئ په

عٰبِدِيْنَ ﴿٥٣﴾ قَالَ لَقَدْ كُنْتُمْ اَنْتُمْ وَ اٰبَآؤُكُمْ

عبادت کوونکي وو | دهٔ ووئيل | بيشکه | وئ تاسو | او | ستاسو پلار نيکهٔ

عبادت کښے اخته ليدلي دي ۔ ابراهيم ووئيل چه تاسو او ستاسو پلاران نيکونه هم په څرګنده

فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿٥٤﴾ قَالُوْٓا اَجِئْتَنَا بِالْحَقِّ اَمْ اَنْتَ

په ګمراهئ کښے | ښکاره | دوی ووئيل | آيا تا راوړے ده مونږ ته | رښتينے خبره | يا تهٔ سيئے

ګمراهئ کښے پراتهٔ وو ۔ هغوئ ورته ووئيل چه آيا تاسو مونږ ته حقه خبره راوړے ده که هسے

مِنَ اللّٰعِبِیۡنَ ﴿۵۵﴾ قَالَ بَلۡ رَّبُّکُمۡ رَبُّ السَّمٰوٰتِ

له توقو کوونکو نه | دهٔ ووئیل | بلکه ستاسو رب | رب دے | دَ اسمانونو

توقے تقالے راسره کوئی؟ ابراهیمؑ ووئیل چه (دَ خندا توقے؟) ستاسو رب خو دَ اسمانونو او دَ زمکے

وَ الۡاَرۡضِ الَّذِیۡ فَطَرَهُنَّ ۫ۖ وَ اَنَا عَلٰی ذٰلِکُمۡ

او | دَ زمکے | کوم چه | پیدا کړل دوی | او | زهٔ | په دے باندِ

رب دے چه دغه ټول ئے راپیدا کړل. او زهٔ په دے خبره باندِ

مِّنَ الشّٰهِدِیۡنَ ﴿۵۶﴾ وَ تَاللّٰهِ لَاَکِیۡدَنَّ اَصۡنَامَکُمۡ بَعۡدَ اَنۡ

له گواهانو نه یم | او قسم په الله | چه زهٔ به خامخا تدبیر وکړم | ستاسو دَ بتانو | پس له دِے نه چه

گواه یم. او دَ الله قسم هر کله چه تاسو (دَ دوی نه) لاړ شئ نو زهٔ به ستاسو

تُوَلُّوۡا مُدۡبِرِیۡنَ ﴿۵۷﴾ فَجَعَلَهُمۡ جُذٰذًا اِلَّا کَبِیۡرًا

مخ وګرځوئ تاسو | شا کوونکی | پس کړل دهٔ هغه | ټکړے ټکړے | سیوا | دَ لوئے (بت)

بتانو سره یو چال چلوم. نو (ابراهیمؑ) هغه بتان ټوټے ټوټے کړل خو یو لوئے بت ئے ترے نه

لَّهُمۡ لَعَلَّهُمۡ اِلَیۡهِ یَرۡجِعُوۡنَ ﴿۵۸﴾ قَالُوۡا مَنۡ

دَ دوی | شاید چه دوی | دَ دهٔ طرف ته | رجوع وکړی. | دوی ووئیل | چا

سلامت پریښودو شاید چه خلق هغهٔ ته رجوع وکړی، هغوئ ووئیل چه دا کار زمونږ

فَعَلَ هٰذَا بِاٰلِهَتِنَاۤ اِنَّهٗ لَمِنَ الظّٰلِمِیۡنَ ﴿۵۹﴾ قَالُوۡا

کړے دے | دا کار | زمونږ دَ معبودانو سره | بیشکه دے | دَ ظالمانو نه دے | دوی ووئیل

دَ معبودانو سره چا کړے دے؟ بیشکه هغه ډیر غټ ظالم دے، چا پکښے ووئیل

سَمِعۡنَا فَتًی یَّذۡکُرُهُمۡ یُقَالُ لَهٗۤ اِبۡرٰهِیۡمُ ﴿۶۰﴾ قَالُوۡا

مونږ آوریدلی دی | یو ځوان نه | چه ذکر کوی دَ دوی | چه ویلے شی | هغهٔ ته | ابراهیم | دوی ووئیل

چه مونږ دَ یو ځلمی دَ خلے نه دَ دوئ بدی آوریدلے ده چه هغهٔ ته ابراهیمؑ ویلے شی، خلقو ووئیل

فَاۡتُوۡا بِهٖ عَلٰۤی اَعۡیُنِ النَّاسِ لَعَلَّهُمۡ یَشۡهَدُوۡنَ ﴿۶۱﴾

پس راولئ | دے | دَ سترګو دَ وړاندِ | دَ خلقو | شاید چه دوی | ګواهی ورکړی

چه بیا دهٔ نو هغه دَ ټولو په مخکښے راولئ چه هغوی پرے ګواهان شی.

قَالُوۡۤا ءَاَنۡتَ فَعَلۡتَ هٰذَا بِاٰلِهَتِنَا یٰۤاِبۡرٰهِیۡمُ ﴿۶۲﴾ قَالَ بَلۡ

دوی ووئیل | آیا هم تا | کړے دے | دا کار | زمونږ دَ معبودانو سره | اے ابراهیم! | دهٔ ووئیل (نه) بلکه

هغوئ تپوس وکړو چه اے ابراهیمؑ! آیا زمونږ دَ معبودانو سره دا کار تا کړے دے؟ دهٔ ووئیل نه

فَعَلَهٗ ۖ٭ کَبِیۡرُهُمۡ هٰذَا فَسۡـَٔلُوۡهُمۡ اِنۡ کَانُوۡا یَنۡطِقُوۡنَ ﴿۶۳﴾

دا یه کړے وی | دَ دوی دِے لوئے (بت) | پس تپوس وکړئ له دوی نه | که چرے | دوی خبرے کوی

بلکه دا کار دَ دوئ دِے لوئے (بت) کړے دے که چرے دوئ خبرے کوی نو دَ دوئ نه تپوس وکړه

فَرَجَعُوْٓا اِلٰٓى اَنْفُسِهِمْ فَقَالُوْٓا اِنَّكُمْ اَنْتُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۶۴﴾ ثُمَّ

پس رجوع وکړه دوی | خپلو ځانونو ته | بیا دوی وویل | بیشکه یئ تاسو | ظالمان | بیا

هم کله چه هغوی سوچ وکړو په خپل مینځ کښې نو وې وئیل چه بیشکه هم تاسو بے انصافه یئ ـ بیا هغوی (د

نُكِسُوْا عَلٰى رُءُوْسِهِمْ لَقَدْ عَلِمْتَ مَا هٰٓؤُلَآءِ يَنْطِقُوْنَ ﴿۶۵﴾

ښکته کړل دوی | سرونه خپل | بیشکه | ته پوهیږے | چه دا بتان | خبرے نه کوی

شرم نه) خپل سرونه ښکته کړل (او وے وئیل) چه تاسو ته خو معلومه ده چه دوی خبرے نه کوی

قَالَ اَفَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُكُمْ شَيْئًا

وے فرمائیل | پس آیا تاسو عبادت کوئ | د الله نه سیوا | د هغه څه | چه نه نفع درکولے شی تاسو ته | د څه خیز

ابراهیم ورته ووئیل چه آیا تاسو د الله تعالیٰ نه سیوا د داسے خیزونو عبادت کوئ چه نه فائده درکولے شی

وَّلَا يَضُرُّكُمْ ﴿۶۶﴾ اُفٍّ لَّكُمْ وَلِمَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

او نه زیان دررسولے شی تاسو ته | افسوس دے | په تاسو | او په هغه څه | چه تاسو ئے عبادت کوئ | سیوا | د الله

او نه زیان درکولے شی ـ افسوس دے په تاسو او په هغو باندے د کوم چه تاسو د الله تعالیٰ نه سیوا عبادت کوئ

اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۶۷﴾ قَالُوْا حَرِّقُوْهُ وَانْصُرُوْٓا اٰلِهَتَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ

پس آیا تاسو عقل نه لرئ ؟ | دوی ووئیل | وسوزوئ دے | او مدد وکړئ | د خپلو معبودانو | که چرے یئ تاسو

آیا تاسو نه پوهیږئ ؟ هغوی ووئیل چه دے (په اور کښې) وسوزوئ او د خپلو معبودانو عبادت وکړئ که تاسو څه کول

فٰعِلِيْنَ ﴿۶۸﴾ قُلْنَا يٰنَارُ كُوْنِيْ بَرْدًا وَّسَلٰمًا عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ ﴿۶۹﴾

کوونکی | ووئیل مونږه | اے اوره! | شه ته | یخ | او سلامتیا | په ابراهیم باندے

غواړئ ـ مونږ حکم وکړو چه اے اوره! ته د ابراهیمؑ د پاره یخ شه او بے ضرره شه ـ

وَاَرَادُوْا بِهٖ كَيْدًا فَجَعَلْنٰهُمُ الْاَخْسَرِيْنَ ﴿۷۰﴾ وَنَجَّيْنٰهُ

او دوی اراده وکړه د ده سره | د فریب | پس کړل مونږ دوی | ناکامه | او نجات ورکړو مونږ ده ته

او خلقو د هغه بدی وغوښتله خو مونږ ورته (هغه خلق) ناکامیابه کړل ـ او مونږ هغه او لوطؑ د واړه

وَلُوْطًا اِلَى الْاَرْضِ الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا لِلْعٰلَمِيْنَ ﴿۷۱﴾ وَوَهَبْنَا

او لوطؑ ته | د هغه زمکے طرف ته | چه برکت ایښے دے مونږ | په هغے کښے | د پاره د عالمونو | او ورکړل مونږ

بچ وویستل داسے ملک ته چه مونږ د ټولے دُنیا د خلقو د پاره برکتی کړے دے ـ او مونږ ابراهیمؑ ته اسحاق

لَهٗٓ اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ نَافِلَةً وَكُلًّا جَعَلْنَا صٰلِحِيْنَ ﴿۷۲﴾

ده ته | اسحاقؑ | او یعقوبؑ | د انعام په طور | او هر یو | مونږ جوړ کړو | نیک

(ځوئے) ورکړو او د دے نه علاوه یعقوب (نمسے) هم د انعام په طور او ټول مونږ نیکان کړل ـ

وَجَعَلْنٰهُمْ اَئِمَّةً يَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا وَاَوْحَيْنَآ اِلَيْهِمْ فِعْلَ

او جوړ کړل مونږ دوی | پیشوایان | دوی به لار ښودله | زمونږ په حکم | او وحی وکړه مونږ | د دوی طرف ته | د کولو

او هغوی مونږ د (ټولو) خلقو پیشوایان کړل چه زمونږ په حکم به ئے (خلقو ته) د دین لار ښودله او هغوی ته مونږ د وحی په ذریعه د

الۡخَيۡرٰتِ وَاِقَامَ الصَّلٰوةِ وَاِيۡتَآءَ الزَّكٰوةِ ۚ وَكَانُوۡا لَنَا

دَ نیکیانو | او دَ قائمولو | دَ مونځ | او دَ ورکولو | دَ زکوٰة | او | وُو دوی | زمونږ

نیکئ دَ کارونو کولو، دَ مونځ کولو او دَ زکوٰة دَ ورکولو حکم ورولیږلو، او هغوئ هم زمونږ عبادت

عٰبِدِيۡنَ ۞ ۝٧٣ وَلُوۡطًا اٰتَيۡنٰهُ حُكۡمًا وَّعِلۡمًا وَّنَجَّيۡنٰهُ

عبادت کوونکی | او لوط ؑ ته | ورکړو مونږ | حکمت | او علم | او خلاصے ورکړو مونږ دَ ته

کولو۔ او لوط ؑ ته مونږ حکمت او علم ورکړے وُو، او دَ هغه کلی نه مو بچ

مِنَ الۡقَرۡيَةِ الَّتِىۡ كَانَتۡ تَّعۡمَلُ الۡخَبٰٓئِثَ ؕ اِنَّهُمۡ كَانُوۡا

له هغه کلی نه چه | کول به ئے | ناپاک کارونه | بیشکه دوی | وو

راوویستلو دَ کوم اوسیدونکی چه دَ گنده کارونو عادت وو۔ بیشکه هغه خراب او بدکاره

قَوۡمَ سَوۡءٍ فٰسِقِيۡنَ ۝٧٤ وَاَدۡخَلۡنٰهُ فِىۡ رَحۡمَتِنَا ؕ اِنَّهٗ مِنَ الصّٰلِحِيۡنَ ۝٧٥ ع

خلق ډیر خراب | نافرمانه | او داخل کړو مونږ دے | په خپل رحمت کښے | بیشکه دے | له صالحانو نه وُو

قوم وو۔ او هغه (لوط ؑ) مونږ په خپل رحمت کښے داخل کړو یقیناً هغه په نیکانو خلقو کښے شامل

وَنُوۡحًا اِذۡ نَادٰى مِنۡ قَبۡلُ فَاسۡتَجَبۡنَا لَهٗ فَنَجَّيۡنٰهُ

او (یاد کړه) نوح ؑ | هرکله چه دهٔ دعا وکړه | له دے نه وړاندې | پس قبوله کړه مونږ | دَ دهٔ (دُعا) | پس خلاصے ورکړو مونږ دهٔ ته

وو۔ او له دے نه وړاندې هرکله چه نوح ؑ آواز وکړو نو مونږ دَ هغهٔ دُعا قبوله کړه او مونږ هغه او دَ هغهٔ

وَاَهۡلَهٗ مِنَ الۡكَرۡبِ الۡعَظِيۡمِ ۝٧٦ ۚ وَنَصَرۡنٰهُ مِنَ الۡقَوۡمِ

او دَ دهٔ کور والو ته | له غم | لوئے نه | او مونږ مدد وکړو دَ دهٔ | له هغه قوم نه

خاندان دَ ډیر لوئے غم نه خلاص کړل۔ او مونږ دَ نوح ؑ بدله دَ هغه خلقو نه واخسته

الَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِنَا ؕ اِنَّهُمۡ كَانُوۡا قَوۡمَ سَوۡءٍ فَاَغۡرَقۡنٰهُمۡ

کوم چه | دروغ وگڼل | آیتونه زمونږ | بیشکه دوی وو | خلق | خراب | پس غرق کړل مونږ دوی

چه زمونږ حکمونه ئے دروغ گڼل، بیشکه چه دغه خلق ډیر خراب خلق وو، نو مونږ دوی

اَجۡمَعِيۡنَ ۝٧٧ وَدَاوٗدَ وَسُلَيۡمٰنَ اِذۡ يَحۡكُمٰنِ فِى الۡحَـرۡثِ اِذۡ

ټول | او داؤد ؑ | او سلیمان ؑ | هرکله چه دوی فیصله کوله | دَ پټی په حقله | هرکله چه

ټول غرق کړل۔ او داؤد او سلیمان علیهما السلام هم یاد کړه، هرکله چه دوی دَ پټی په معامله کښے فیصله

نَفَشَتۡ فِيۡهِ غَنَمُ الۡقَوۡمِ ۚ وَكُنَّا لِحُكۡمِهِمۡ

څرِیدلے وے | په هغې کښے | بیزے | دَ خلقو | او وُو مونږ | دَ فیصلے دَ دوی

کوله په کوم کښے چه دَ یو بے ځلے بیزے څرِیدلے وے، او مونږ ته دَ هغوئ فیصله

شٰهِدِيۡنَ ۝٧٨ ۙ فَفَهَّمۡنٰهَا سُلَيۡمٰنَ ۚ وَكُلًّا اٰتَيۡنَا

لیدونکی | پس پوهه ورکړه مونږ دَ دے | سلیمان ؑ ته | او هر یو له | ورکړو مونږ

ښکاره وه، نو مونږ دَ هغې فیصلے پوهه سلیمان ته ورکړه، او حکمت او علم خو مونږ

حُكْمًا وَّعِلْمًا ۫ وَّسَخَّرْنَا مَعَ دَاوٗدَ الْجِبَالَ يُسَبِّحْنَ

حکمت | او علم | او تابع کړی وو مونږ | سره | دَ داؤد | غرونه | چه دوی به تسبیح کولو

او مونږ داؤد سره غرونه تابع کړی وو چه هغه (غرونو) او مارغانو هم به ورته ورکړے وو ،

وَالطَّيْرَ ؕ وَكُنَّا فٰعِلِيْنَ ﴿۷۹﴾ وَعَلَّمْنٰهُ صَنْعَةَ لَبُوْسٍ لَّكُمْ

او مارغان (هم) | او وو مونږ | کوونکی | او ښودلے وو مونږ ده ته | جوړول | دَ یو لباس | تاسو دَ پاره

به زمونږ پاکی بیانوله او دا کار مونږ (په خپل قدرت) کړے وو او مونږ هغهٔ ته دَ زغرو جوړخت ستاسو (دَ فائدے)

لِتُحْصِنَكُمْ مِّنْۢ بَاْسِكُمْ ۚ فَهَلْ اَنْتُمْ شٰكِرُوْنَ ﴿۸۰﴾

چه بچ کړی تاسو | ستاسو دَ جنګ نه | پس آیا | تاسو | شکر کوونکی یئ

دَ پاره ښودلے وو چه تاسو په جنګونو کښے (دَ نقصانونو نه) بچ کړی نو آیا تاسو (زمونږ نه) څهٔ شکریه ادا کوئ ؟

وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ عَاصِفَةً تَجْرِيْ بِاَمْرِهٖۤ اِلَى الْاَرْضِ

او (تابع مو کړه) سلیمان لره | هوا | تیزه | چه چلیده به | په حکم دَ دهٔ | په طرف دَ زمکے

او مونږ دَ سلیمان دَ پاره تیزے هوا ګانے تابع کړے وے چه دَ هغهٔ په حکم به هغے زمکے طرف ته

الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا ؕ وَكُنَّا بِكُلِّ شَيْءٍ عٰلِمِيْنَ ﴿۸۱﴾ وَ

هغه چه | برکت اچولے دے مونږ | په هغے کښے | او یُو مونږ | په هر څیز باندے | پوهه | او

چلیدے په کومه کښے چه برکتونه ایښی وو ، او مونږ ته خو هر څهٔ معلوم دی ۔ او

مِنَ الشَّيٰطِيْنِ مَنْ يَّغُوْصُوْنَ لَهٗ وَيَعْمَلُوْنَ عَمَلًا

له شیطانانو نه | هغه چه | غوپے به ئے وهلے | دهٔ دَ پاره | او کولو به دوی | کار

په شیطانانو کښے داسے هم وو چه دَ هغهٔ دَ پاره به ئے غوپے وهلے او دَ دے نه علاوه نور کارونه

دُوْنَ ذٰلِكَ ۚ وَكُنَّا لَهُمْ حٰفِظِيْنَ ﴿۸۲﴾ۙ وَاَيُّوْبَ اِذْ نَادٰى

دَ دے نه سیوا (هم) | او وُو مونږ | دَ دوی | محافظ | او ایوب | هر کله چه دهٔ آواز وکړو

به ئے هم کول ، او مونږ به دَ هغوی حفاظت کولو ۔ او ایوب را یاد کړه چه خپل رب ته ئے زاری

رَبَّهٗۤ اَنِّيْ مَسَّنِيَ الضُّرُّ وَاَنْتَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿۸۳﴾ۚۖ

خپل رب ته | چه بیشکه | رسیدلے دے ماته | تکلیف | او ته | زیات رحم کوونکے یئے | دَ ټولو رحم کوونکو نه

وکړه ، چه ماته تکلیف را رسیدلے دے او ته دَ ټولو نه زیات رحم کوونکے یئے ۔

فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ فَكَشَفْنَا مَا بِهٖ مِنْ ضُرٍّ وَّاٰتَيْنٰهُ

پس قبوله کړه مونږ | دَ دهٔ دُعا | پس لرے کړو مونږ | چه په هغهٔ وُو | تکلیف | او ورکړل مونږ دهٔ ته

نو مونږ دَ هغهٔ دعا قبوله کړه او دَ هغهٔ تکلیف مو لرے کړو او هغهٔ ته مو خپله کورنئ واپس

اَهْلَهٗ وَمِثْلَهُمْ مَّعَهُمْ رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِنَا وَذِكْرٰى

دَ دهٔ کور والا | او په شان دَ دوی | دَ دوی سره | (په طور دَ) رحمت | دَ خپل طرف نه | او نصیحت

کړه او دَ دوی په شان نور خلق هم ، په خپل رحمت سره او چه دَ عبادت کوونکو

لِلْعٰبِدِيْنَ ﴿٨٤﴾ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِدْرِيْسَ وَذَاالْكِفْلِ ؕ كُلٌّ

عبادت کوونکو دَ پاره | او (یادکړه) اسماعیل | او ادریس | او ذوالکفل | هريو

دَ پاره نصیحت وی . او اسماعیل او ادریس او ذاالکفل (یادکړه) ، دا ټول له

مِّنَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿٨٥﴾ وَاَدْخَلْنٰهُمْ فِيْ رَحْمَتِنَا ؕ اِنَّهُمْ

له صبرکوونکو نه وو | او داخل کړل مونږ دوی | په خپل رحمت کښې | بیشکه دوی

صبرکوونکو نه ؤو ، او دوی مونږ په خپل رحمت کښې داخل کړل ، بیشکه چه دغه ټول نیکان

مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٨٦﴾ وَذَاالنُّوْنِ اِذْ ذَّهَبَ مُغَاضِبًا فَظَنَّ

له صالحانو نه وو | او (یادکړه) مهی والا (یونس) | هرکله چه دے لاړو | په غصه کښې | پس دهٔ خیال وکړو

خلق وو . او مهی والا (یونس) یادکړه ، څهٔ وخت چه هغه خفه قهریدلے روان شو او دا خیال ئے وکړو

اَنْ لَّنْ نَّقْدِرَ عَلَيْهِ فَنَادٰى فِي الظُّلُمٰتِ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ

چه هیڅ کله به تنګسیا رانهٔ وګو | په دهٔ | پس دهٔ آواز وکړو | په تیاړو کښې | چه نشته دے بل څوک معبود | سیوا له تا نه

چه مونږ به پرے تنګسیا رانهٔ ولو ، نو په تورو تیارو کښې ئے آواز وکړو چه (اے خدایه!) ستا نه بغیر بل معبود

سُبْحٰنَكَ ۖ اِنِّيْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٨٧﴾ فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ ۙ وَنَجَّيْنٰهُ

پاک یې تهٔ | بیشکه زهٔ شوم | له ظالمانو نه | پس قبوله کړه مونږ | دَ دهٔ دُعا | او مونږ نجات ورکړو دهٔ ته

نشته تهٔ پاک یې بیشکه چه هم زهٔ زیاتی کوونکے یم . نو مونږ دَ هغهٔ دُعا قبوله کړه او هغه مو دَ غم نه

مِنَ الْغَمِّ ؕ وَكَذٰلِكَ نُـنْجِي الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٨٨﴾ وَزَكَرِيَّآ اِذْ

له غم نه | او دغه شان | مونږ نجات ورکوؤ | مؤمنانو ته | او (یادکړه) زکریا | هرکله چه

خلاص کړو او مونږ ایمان دار خلق هم دغسے دَ غم نه خلاصوؤ . او زکریا (یادکړه) هرکله چه

نَادٰى رَبَّهٗ رَبِّ لَا تَذَرْنِيْ فَرْدًا وَّاَنْتَ خَيْرُ

دهٔ آواز وکړو | خپل رب ته | اے زما ربه ! | مهٔ پریږده ما | یوازے | او تهٔ یې | دَ ټولو نه بهٔ

هغهٔ دَ خپل رب نه دعا وکړه چه اے زما ربه ! ما یوازے (لاوارثه) پرے نهٔ ږدے او هم تهٔ دَ ټولو نه بهترین

الْوٰرِثِيْنَ ﴿٨٩﴾ فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ ۡ وَوَهَبْنَا لَهٗ يَحْيٰى وَاَصْلَحْنَا

وارث | پس قبوله کړه مونږ | دَ دهٔ دُعا | او ورکړو مونږ | دهٔ ته | یحییٰ | او اصلاح وکړه مونږ

وارث یې . پس مونږ دَ هغهٔ دُعا قبوله کړه او ورته مو یحییٰ وُبخښلو او دَ دهٔ ښځه مو دَ دهٔ دَ پاره

لَهٗ زَوْجَهٗ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا يُسٰرِعُوْنَ فِي الْخَيْرٰتِ وَيَدْعُوْنَنَا

دَ دهٔ دَ پاره | دَ دهٔ دَ ښځے | بیشکه دوی به | منډے وهلے | په نیکو کښے | او دوی به بللو مونږ

دَ اولاد قابله کړه ، بیشکه دے خلقو به دَ نیکئ په کارونو کښے دَ تیزئ نه کار اخستلو او مونږ به ئے په اُمید

رَغَبًا وَّرَهَبًا ؕ وَكَانُوْا لَنَا خٰشِعِيْنَ ﴿٩٠﴾ وَالَّتِيْۤ اَحْصَنَتْ

په شوق | او په ویره | او وُو دوی | مونږ ته | عاجزی کوونکی | او هغه بی بی (مریمؑ) | چه هغې حفاظت وکړو

او ویرے سره بللو او زمونږ په وړاندې به ئے عاجزی کوله او دَ هغه ښځے (مریمؑ) ذکر وکړه چا چه خپل

فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيهَا مِن رُّوحِنَا وَجَعَلْنَـٰهَا وَٱبْنَهَآ

دَ خپل شرمګاه | پس پوکی وکړو مونږ | په هغې کښې | دَ روح خپل | او جوړه کړه مونږ هغه | او دَ هغې ځوئ

(نوم) ناموس بچ کړے وو نو مونږ په هغې کښې خپل روح ؤپوکلو او هغه ښځه او دَ هغې ځوئے مو دَ ټولې دُنیا

ءَايَةً لِّلْعَـٰلَمِينَ ﴿٩١﴾ إِنَّ هَـٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَٰحِدَةً ۖ وَأَنَا۠

نخښه | دَ پاره دَ عالمونو | بیشکه | دا | ستاسو امت دے | اُمت | یو | او زهٔ

دَ پاره یوه نخښه وګرځوله. بیشکه ستاسو دا امت هم یو اُمت دے، او زهٔ ستاسو

رَبُّكُمْ فَٱعْبُدُونِ ﴿٩٢﴾ وَتَقَطَّعُوٓا۟ أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ ۖ كُلٌّ إِلَيْنَا

ستا رب یم | پس زما عبادت کوئ | او دوی ټکړے ټکړے کړو | خپل کار | په خپل مینځ کښې | هر یو | زمونږ طرف ته

رب یم پس تاسو هم زما عبادت کوئ او دے خلقو په خپل دین کښې اختلافات پیدا کړل (مګر) هر یو له زمونږ

رَٰجِعُونَ ﴿٩٣﴾ فَمَن يَعْمَلْ مِنَ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَا كُفْرَانَ

رجوع کوونکے دے | نو څوک چه | عمل کوی | دَ نیکئ | او هغه ایماندار وی | نو نا قدری به نهٔ کیږی

طرف ته واپس راتلل دی، نو څوک چه دَ نیکئ کار وکړی او هغه مؤمن هم وی نو دَ هغهٔ عمل به هیڅکله

لِسَعْيِهِۦ وَإِنَّا لَهُۥ كَـٰتِبُونَ ﴿٩٤﴾ وَحَرَٰمٌ عَلَىٰ قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَـٰهَآ

دَ هغهٔ دَ کوشش | او بیشکه مونږ | هغه | لیکونکی یُو | او نا ممکنه ده | په هر یو کلی | چه مونږ هلاک کړے دے

ضائع نهٔ ځی او مونږ یقیناً دَ هغهٔ عملونه لیکو. او کومه ښار یه چه مونږ تباه کړے ده دَ هغې دَ اوسیدونکو

أَنَّهُمْ لَا يَرْجِعُونَ ﴿٩٥﴾ حَتَّىٰٓ إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ وَهُم

چه هغوی به | بیرته نهٔ راګرځی (مونږ ته) | تر دے چه | څهٔ وخت راپرانستلے شی | یاجوج | او ماجوج | او دوی به

دَ پاره ناممکنه ده چه هغوی به بیا دنیا ته واپس راشی، تر دے چه هر کله یاجوج او ماجوج پرانستلے شی او هغوی

مِّن كُلِّ حَدَبٍ يَنسِلُونَ ﴿٩٦﴾ وَٱقْتَرَبَ ٱلْوَعْدُ ٱلْحَقُّ فَإِذَا هِىَ

له هرے لوړے نه | راز غلی | او نزدے به راؤرسیږی | وعده | رښتینې | پس ناګهانه به

دَ هرے لوړے نه په منډه کوزیږی او رښتینې وعده به نزدے راؤرسیږی نو دَ ټولو کافرانو

شَـٰخِصَةٌ أَبْصَـٰرُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ يَـٰوَيْلَنَا قَدْ كُنَّا

واړے پاتے شی | سترګے | دَ هغو خلقو | چه کافران دی | افسوس په مونږ دے | بیشکه ؤو مونږ دا

خلقو سترګے به واړے پاتے شی، (بیا به هغوی وائی چه) افسوس! مونږ دَ دے حقیقت

فِى غَفْلَةٍ مِّنْ هَـٰذَا بَلْ كُنَّا ظَـٰلِمِينَ ﴿٩٧﴾ إِنَّكُمْ وَمَا

په غفلت کښې | له دے (حال) نه | بلکه | ؤو مونږه | ظالمان | بیشکه تاسو | او دَ څهٔ چه

نه په غفلت کښې پاتے شو، نه! بلکه په ځان مونږ ظلم کولو. بیشکه چه تاسو هم او دَ الله

تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ أَنتُمْ لَهَا

تاسو عبادت کوئ | سیوا دَ الله نه | خشاک دے | دَ دوزخ | تاسو (ټول به) | هغې ته

نه بغیر چه تاسو دَ چا عبادت کوئ هغه ټول هم دَ دوزخ خشاک دے، تاسو ټول به په هغې کښې

وَارِدُوْنَ ﴿۹۸﴾ لَوْ كَانَ هٰٓؤُلَآءِ اٰلِهَةً مَّا وَرَدُوْهَا ؕ وَكُلٌّ

داخلیږئ | که چیرې وې | دا (بتان) | معبودان | (نو) نۀ | به تلل دوزخ ته | او (دوی) ټول به

ورداخلیږئ ۔ که دوئ به (رښتیا) خدایان وې نو هغۀ (دوزخ) ته به ولې ورننوتل؟ (خواوس) ټول به

فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۹۹﴾ لَهُمْ فِيْهَا زَفِيْرٌ وَّهُمْ فِيْهَا لَا يَسْمَعُوْنَ ﴿۱۰۰﴾

په دې کښې | همیشه وی | دوی له به | په دې کښې | شور وغوغاوې | او دوی به | په دے کښې | هیڅ نۀ آورې

په کښې همیشه همیشه اوسیږی ۔ په هغۀ کښې دننه به شور وغوغاکوی او (دبل) هیڅ خبره به نۀ آوری

اِنَّ الَّذِيْنَ سَبَقَتْ لَهُمْ مِّنَّا الْحُسْنٰٓى ۙ اُولٰٓئِكَ عَنْهَا

بیشکه | هغه خلق چه | له وړاندې نه مقرر شوې ده | د دوی د پاره | زمونږ له طرفه | ښیګړه | دغه خلق به | د دې نه

هغه خلق د کوم د پاره چه زمونږ د طرف نه د وړاندې نه د نیکئ فیصله شوې ده هغوئ به د دې عذاب نه

مُبْعَدُوْنَ ﴿۱۰۱﴾ لَا يَسْمَعُوْنَ حَسِيْسَهَا ۚ وَهُمْ فِيْ مَا اشْتَهَتْ

لرې ساتلے شی | نۀ به آورې دوی | آواز د دې (دوزخ) | او دوی به | په هغه څۀ کښې | چه غواړی ئے

(بالکل) لرې ساتلے شی ، د هغې کښتار قدر له به هم نۀ آورې ، او د خپلې خوښې په ژوند کښې

اَنْفُسُهُمْ خٰلِدُوْنَ ﴿۱۰۲﴾ لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْاَكْبَرُ

نفسونه د دوی | همیشه وی | نۀ به غمژن کوی دوی | ویره | لویه (د قیامت)

به تل تر تله اوسیږی ۔ (د قیامت) غټه ویره به ئے (د ذرې هومره) په غم کښې نۀ غورزوی

وَتَتَلَقّٰىهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ؕ هٰذَا يَوْمُكُمُ الَّذِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ ﴿۱۰۳﴾

او ملاقات به کوی د دوسره | فرښتې | دا ده ستاسو هغه ورځ | د کومې چه | تاسو سره وعده کولے شوه ۔

او فرښتې به ورله مخې له راځی (چه) دا ستاسو هغه ورځ ده چه وعده ئے به در سره کیدله ۔

يَوْمَ نَطْوِي السَّمَآءَ كَطَيِّ السِّجِلِّ لِلْكُتُبِ ؕ كَمَا بَدَاْنَآ

په کومه ورځ | چه راونغاړو مونږ | آسمان | په شان د رانغښتلو | د کاغذ | د خطونو | لکه څنګه چه مونږ پیدا کړل

هغه ورځ (د یاد ساتلو ده) چه مونږ به آسمان ونغاړو لکه چه لیکلې شوې کاغذ رانغښتلے شی څنګه چه مو اول ځل

اَوَّلَ خَلْقٍ نُّعِيْدُهٗ ؕ وَعْدًا عَلَيْنَا ؕ اِنَّا كُنَّا فٰعِلِيْنَ ﴿۱۰۴﴾ وَلَقَدْ

په اول ځل | (دغه شان) مونږ به دوباره پیدا کړو ئے | وعده ده | زمونږ په ذمه | بیشکه یو مونږه | کوونکی | او بیشکه

پیدا کړې وو د غسې به ئے سر دوباره پیدا کړو ، دا زمونږ په ذمه پورته وعده ده چه مونږ به ئے خامخا پوره کوو او مونږ

كَتَبْنَا فِي الزَّبُوْرِ مِنْۢ بَعْدِ الذِّكْرِ اَنَّ الْاَرْضَ يَرِثُهَا

مونږ و لیکل | په زبور کښې | پس له | نصیحت نه | چه دا زمکه | وارثان به وی د دې

په آسمانی کتابو نو کښې لیکلی دی د لوح محفوظ د لیک نه پس چه (د جنت) د زمکې وارثان به (یوازې)

عِبَادِيَ الصّٰلِحُوْنَ ﴿۱۰۵﴾ اِنَّ فِيْ هٰذَا لَبَلٰغًا لِّقَوْمٍ عٰبِدِيْنَ ﴿۱۰۶﴾

زما بندګان | نیکان | بیشکه | په دې کښې | کافی مضمون دے | هغه ئے د پاره | چه عبادت کوونکی دی

زما نیکان بندګان وی ۔ په دې (قرآن) کښې د عبادت کوونکو د پاره ډیر کافی مضمون پروت دے

وَمَآ اَرۡسَلۡنٰكَ اِلَّا رَحۡمَةً لِّلۡعٰلَمِيۡنَ ﴿١٠٧﴾ قُلۡ اِنَّمَا

او نهٔ یٔ رالیږلے مونږ تهٔ | مګر | رحمت | دَ ټولو عالمونو دَ پاره | دوایه | بیشکه

او مونږ تهٔ دَ ټولو جهانونو دَ پاره رحمت جوړ کړے لیږلے یئے. (اے پیغمبره!) تهٔ دوایه! چه ما

يُوۡحٰۤى اِلَىَّ اَنَّمَاۤ اِلٰهُكُمۡ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ فَهَلۡ

وحی کولے شی | زما طرف ته | هم دا چه | ستاسو معبود | معبود دے | هم یو | پس ایا

ته خو بس دا وحی راغلے ده چه ستاسو معبود بس یو معبود دے ، نو ایا اوس هم

اَنۡتُمۡ مُّسۡلِمُوۡنَ ﴿١٠٨﴾ فَاِنۡ تَوَلَّوۡا فَقُلۡ اٰذَنۡتُكُمۡ

یئ تاسو | فرمانبرداری کوونکی | پس که چرے | مخ واړوی دوی | نو ووایه | چه ما خبردار کړئ تاسو

تاسو منئ که نا ؟ نو که بیا هم مخونه واړوی نو تهٔ ورته ووایه چه ما خو تاسو پوره

عَلٰى سَوَآءٍ ؕ وَاِنۡ اَدۡرِىۡۤ اَقَرِيۡبٌ اَمۡ بَعِيۡدٌ مَّا

سم صفا | او زهٔ نهٔ پوهیږم | چه نزدے ده | یا | لرے ده | دَ کوم چه

پوره خبر کړئ. او ماته دا معلومه نهٔ ده چه کومه وعده تاسو سره شوے ده چه هغه نزدے

تُوۡعَدُوۡنَ ﴿١٠٩﴾ اِنَّهٗ يَعۡلَمُ الۡجَهۡرَ مِنَ الۡقَوۡلِ وَيَعۡلَمُ

تاسو سره وعده کولے شی | بیشکه دے | پوهیږی | په ښکاره | خبره | او دے پوهیږی

ده یا لرے ده. بیشکه چه الله تعالیٰ په ښکاره خبره هم پوهه دے او په هغې هم پوهه دے

مَا تَكۡتُمُوۡنَ ﴿١١٠﴾ وَاِنۡ اَدۡرِىۡ لَعَلَّهٗ فِتۡنَةٌ لَّكُمۡ

په هغه څهٔ چه تاسو یئ پټوئ | او زهٔ نهٔ پوهیږم | شاید چه دا | آزمینښت وی | تاسو دَ پاره

چه تاسو یئ پټوئ ، او زهٔ نهٔ پوهیږم کیدے شی چه دا (تاخیر) تاسو دَ پاره یو ازمینښت

وَّمَتَاعٌ اِلٰى حِيۡنٍ ﴿١١١﴾ قٰلَ رَبِّ احۡكُمۡ بِالۡحَقِّ ؕ

او فائده ورچتول | ترڅهٔ وخته پورے | پیغمبر وفرمائیل | اے زما ربه! | فیصله وکړه | په حق سره

وی او تاسو ته ترڅهٔ وخته پورے فائده رسول وی. پیغمبر وفرمائیل چه اے زما ربه! تهٔ دَ حق مطابق فیصله وکړه

وَرَبُّنَا الرَّحۡمٰنُ الۡمُسۡتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوۡنَ ﴿١١٢﴾ ع

او زمونږ رب | ډیر مهربان دے | له ده نه مدد غوښتلے شی | په هغه څهٔ | چه تاسو یئ بیانوئ.

او زمارب دَ رحمتونو خاوند دے مونږ ترے نه مدد غواړو دَ هغې خبرو په مقابله کښے کومے چه تاسو بیانوئ.

سُوۡرَةُ الۡحَجِّ مَدَنِيَّةٌ وَّهِىَ ثَمَانٌ | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | وَّسَبۡعُوۡنَ اٰيَةً وَّعَشۡرُ رُكُوۡعَاتٍ

سوره حج په مدینه کښے نازل شوه | (شروع) دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښے ۷۸ ایتونه او ۱۰ رکوع گانے

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوۡا رَبَّكُمۡ ۚ اِنَّ زَلۡزَلَةَ السَّاعَةِ شَىۡءٌ

اے | خلقو! | ویریږئ | دَ خپل رب نه | بیشکه | زلزله | دَ قیامت | څیز دے

اے خلقو! دَ خپل رب نه ویره ساتئ (ځکه چه) دَ قیامت (دَ ورځے) زلزله یو ډیر درونده

عَظِيْمٌ ① يَوْمَ تَرَوْنَهَا تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ عَمَّآ

لوئے | په کوم ورځ | چه تاسو وبه وینئ هغه | هیر به کړی | هره پئ ورکوونکے | هغه ماشوم

څیز دے. په دغه ورځ چه تاسو هغه (زلزله) وبه وینئ نو هره یوه تے ورکوونکے (مور) به خپل دَتی ماشوم هیر

اَرْضَعَتْ وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَتَرَى

کوم ته چه هغه پئ ورکوی | او وبه غورزوی | هره یوه | بارداره ښځه | حمل خپل | او وبه وینې ته

کړی ، او هره دَحمل میرمن به خپل حمل وُغورځوی ، او خلق به درته

النَّاسَ سُكٰرٰى وَمَا هُمْ بِسُكٰرٰى وَلٰكِنَّ عَذَابَ

خلق | بے هوشه | او نهٔ به وی هغوی | بے هوشه | لیکن | عذاب

بے خوده ښکاری ، حال دا چه بے خوده به نهٔ وی ، لیکن دَ الله تعالیٰ عذاب

اللّٰهِ شَدِيْدٌ ② وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّجَادِلُ فِي اللّٰهِ

دَ الله | به سخت وی | او ځنې | خلق | هغه دی | چه جګړه کوی | دَ الله په حقله

ډیر سخت دے۔ او ځنې خلق داسے هم دی چه دَ الله تعالیٰ په حقله بغیر دَ څهٔ علم (او دلیل)

بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّيَتَّبِعُ كُلَّ شَيْطٰنٍ مَّرِيْدٍ ③ كُتِبَ

بغیر دَ علم نه | او پیروی کوی | دَ هر | شیطان | سرکش | لیکلے شوے دہ

نه جګړے کوی ، او په هر یو شیطان سرکش پسے روانیږی ، چه دَ هغهٔ (مردود) په

عَلَيْهِ اَنَّهٗ مَنْ تَوَلَّاهُ فَاَنَّهٗ يُضِلُّهٗ وَيَهْدِيْهِ

په دهٔ | چه څوک | دوستی وکړی دَ دهٔ سره | نو بیشکه هغه | به دے ګمراه کړی | او لار به وښائی دهٔ ته

حقله دا لیک شوے دے چه څوک د دسره ملګرے شی نو هغه ئے ګمراه کړی او دَ دوزخ دَ

اِلٰى عَذَابِ السَّعِيْرِ ④ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنْ كُنْتُمْ فِيْ رَيْبٍ

طرف دَ عذاب | دَ دوزخ ته | اے خلقو ! | که چرے یئ تاسو | په شک کښے

عذاب لار ورته ښئ ، اے خلقو ! که تاسو دَ بیا ژوندون په حقله شکمن

مِّنَ الْبَعْثِ فَاِنَّا خَلَقْنٰكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ

دَ دوباره راپاڅیدلو نه | نو بیشکه مونږ راپیدا کړی یئ تاسو | له خاورے نه | بیا | له نطفے نه

یئ نو (لږ فکر وکړئ چه) مونږ تاسو (اول) دَ خاورے نه پیدا کړئ بیا دَ یو څاڅکی اوبو نه

ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ مِنْ مُّضْغَةٍ مُّخَلَّقَةٍ وَّغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ

بیا | دَ وینے له ټوټے نه | بیا | دَ غوښے له ټوټے نه | چه مکمله وی | او نامکمله

بیا دَ مایه وینے نه ، بیا دَ غوښے دَ ټوټی نه چه (ځنې) پوره وی او (ځنې) ناقصه وی

لِّنُبَيِّنَ لَكُمْ ۗ وَنُقِرُّ فِي الْاَرْحَامِ مَا نَشَآءُ اِلٰٓى اَجَلٍ

چه مونږ واضحه کړو | تاسو دَ پاره | او مونږ قرار ے ورکوو | په رحمونو کښے | څهٔ چه وغواړو | تر نیټے

چه په تاسو باندِ (خپل قدرتونه) واضحه کړو او مونږ چه دَ چا په حقله وغواړو نو تر یوے مودے پورے هغه دَ موریه

مُّسَمًّى ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوٓا اَشُدَّكُمْ ۚ

مقرر پورې | بیا | مونږ راوباسو تاسو | ماشوم | بیا | چه تاسو ورسیږئ | خپلې ځوانئ ته

رحم کښې ځائے کړو، بیا تاسو سم ماشوم (کمزوے او هغه) راوباسو چه بیا د ځوانئ زور ته ورسئ

وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّتَوَفّٰى وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّرَدُّ اِلٰٓى اَرْذَلِ

او ځنے له تاسو نه | هغه څوک دی | چه مړه شي | او ځنے له تاسو نه | هغه څوک دي | چه واپس کولے شي | عوړ زیل لی

او په تاسو کښې څوک داسے دی چه (په پوخ عمر کښې) مړه شي او ځنے داسے وی چه (د بوډا توب) عوړ زیلی

الْعُمُرِ لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِنْۢ بَعْدِ عِلْمٍ شَيْـًٔا ۭ وَتَرَى

عمر ته | چه هغه پوهیږې نه شي | پس | له پوهیدو نه | په هیڅ څیز | او وینې ته

عمر ته ورسی، چه د پوهے نه پس یو ځل بیا سوده ناپوهه شي. او ته وینے ګوره

الْاَرْضَ هَامِدَةً فَاِذَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَاۗءَ

زمکه | خشکه پرته | پس هر کله چه | مونږ راوورولے | په هغے باند | اوبه

چه زمکه اوچه مړه پرته ده، بیا چه مونږ په هغے اوبه راوورو، نو

اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ وَاَنْۢبَتَتْ مِنْ كُلِّ زَوْجٍۢ بَهِيْجٍ ۝

نو دا وخوزیږی | او راوپړسیږی | او راوټوکوی هغه | د هر قسم څیزونه | بنائسته

راوینبه شي او زرغونه شي، او د هر قسم بنائسته شینکے راوټوکوی

ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ وَاَنَّهٗ يُحْيِ الْمَوْتٰى وَاَنَّهٗ

دا (ټول) | ځکه چه | هم الله دے | برحق | او بیشکه هم دے | ژوندی کوی | مړی | او بیشکه دے

دا ځکه چه الله تعالیٰ حق دے او هم هغه په خپله مړو کښې ساه اچوی او هغه

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝ وَّاَنَّ السَّاعَةَ اٰتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيْهَا ۙ

په هر څیز باندِ | قادر دے | او چه | قیامت | راتلونکے دے | هیڅ شک نشته | په دے کښې

په هر څیز باندِ قدرت لری. او (دا ځکه) چه قیامت راتلونکے دے، په دے کښے هیڅ شک نشته

وَّاَنَّ اللّٰهَ يَبْعَثُ مَنْ فِي الْقُبُوْرِ ۝ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ

او یقیناً | الله | به بیا راپاڅوی | هغه څوک | چه په قبرونو کښې دی | او ځنے له خلقو نه | هغه څوک دی

او الله تعالیٰ به په قبرونو کښے پراته مړی بیا را ژوندی کوی، او په خلقو کښے ځنے داسے هم شته

يُّجَادِلُ فِي اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّلَا هُدًى وَّلَا كِتٰبٍ مُّنِيْرٍ ۝

چه جګړه کوی | د الله په حقله | بغیر د څهٔ علم نه | او بغیر د څهٔ هدایت نه | او بغیر د څهٔ کتاب | روښانه نه

چه د الله تعالیٰ په حقله بے د څهٔ علم نه او بے د څهٔ دلیل نه او بے د یو روښانه کتاب نه جګړے کوی

ثَانِيَ عِطْفِهٖ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۭ لَهٗ فِي الدُّنْيَا

تاوونکی | طرف د ګردن خپل | چه دے ګمراه کړی (خلق) | د لارے نه | د الله | د هٔ د پاره | په دنیا کښے

په تکبر سره په څټ ګرځولو چه (خلق) د الله تعالیٰ د لارے نه ګمراه کړی، داسے بندهٔ له په دنیا کښے

خِزْيٌ وَّنُذِيْقُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَذَابَ الْحَرِيْقِ ⑨

رسوائی دہ | او مونږ به څکوو دهٔ ته | په ورځ | دَ قيامت | عذاب | دَ سوزولو

هم رسوائی مقرر ده، او دَ قيامت په ورځ به مونږ دوی ته دَ سوزونکی اور دَ عذاب مزه وڅکوو

ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ يَدٰكَ وَاَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ

دا دے | په وجه دَ هغه عملونو | چه ليږلی دی وړاندې | ستا دواړو لاسونو | او يقينًا الله | نهٔ دے | ظلم کوونکے

دا دَ هغه عملونو سزا ده چه تا وړاندې ليږلی وو او الله تعالیٰ په خپلو بندګانو باندې هيڅ کله

لِّلْعَبِيْدِ ⑩ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّعْبُدُ اللّٰهَ عَلٰى حَرْفٍ

په بندګانو خپلو | او څخه | له خلقونه | هغه څوک دی | چه عبادت کوی | دَ الله | په يوه غاړه

ظلم نهٔ کوی. او له خلقو نه څخه هغه هم دی چه دَ الله تعالیٰ عبادت (دَ شک شبهې) په غاړه (ولاړ) کوی

فَاِنْ اَصَابَهٗ خَيْرُ اِۨطْمَاَنَّ بِهٖ وَاِنْ اَصَابَتْهُ فِتْنَةُ اِۨنْقَلَبَ

پس که چرے | رسيږی هغهٔ ته | ښيګړه | نو مطمئن شی | په هغے | او که چرے | رسيږی هغهٔ ته | مصيبت

(دا سے کس نه) که چرے فائده ورسيږی نو هغه دَ دے نه مطمئن شی او که چرے په هغهٔ ازميښت کښے پريوځی

اِنْقَلَبَ عَلٰى وَجْهِهٖ خَسِرَ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةَ ذٰلِكَ هُوَ

نو اُلټه وګرځی | په مخ خپل | نو نقصان وکړی | دَ دُنيا | او دَ آخرت | هم دا دے هغه

نو مخ اُوچت کړی (او دَ کفر طرف ته) بيرته وګرځی، نو دهٔ په دنيا او آخرت دواړو کښے نقصان بيا موندو، هم دا

الْخُسْرَانُ الْمُبِيْنُ ⑪ يَدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَضُرُّهٗ

نقصان | ښکاره | دے بلی | سيوا | دَ الله نه | هغه څهٔ | چه نهٔ ضرر ورکوی دهٔ ته

هغه ښکاره نقصان دے، دے دَ الله تعالیٰ نه بغير دا سے (معبودانو) ته زاری کوی چه نهٔ دهٔ ته نقصان

وَمَا لَا يَنْفَعُهٗ ذٰلِكَ هُوَ الضَّلٰلُ الْبَعِيْدُ ⑫ يَدْعُوْا

او هغه څهٔ چه | نفع نهٔ ورکوی دهٔ ته | هم دا دهٔ هغه | ګمراهی | دَ لرے | دے بلی

رسولے شی او نهٔ دهٔ ته ګټه ورکولے شی، هم دغه خو لويه ګمراهی ده. هغه دا سے (دَ دروغو معبود)

لَمَنْ ضَرُّهٗٓ اَقْرَبُ مِنْ نَّفْعِهٖ لَبِئْسَ الْمَوْلٰى وَلَبِئْسَ

هغه څوک | چه ضرر دَ هغهٔ | ډير نزدے دے | له نفع دَ هغے نه | ډير بد دے | دوست | او ډير بد دے

بلی دَ کوم نقصان چه دَ دهٔ دَ نفع نه زيات نزدے دے، دا سے اقانا کاره اقا دے او دا سے ملګرے

الْعَشِيْرُ ⑬ اِنَّ اللّٰهَ يُدْخِلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا

ملګرے | بيشکه الله به | داخل کړی | هغه خلق چه | ايمان ئے راوړو | او عملونه ئے وکړل

بد ملګرے دے، بيشکه الله تعالیٰ هغه خلق چه ايمان ئے راوړے دے او نيک کارونه

الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ اِنَّ اللّٰهَ

نيک | په باغونو کښے | بهيږی به | لاندې دَ هغے نه | نهرونه | بيشکه الله

کوی په دا سے باغونو کښے داخل کړی چه لاندې به ترے نه نهرونه بهيږی، بيشکه الله تعالیٰ

يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ ⑭ مَنْ كَانَ يَظُنُّ اَنْ لَّنْ يَّنْصُرَهُ اللّٰهُ

كوی | څهٔ چه غواړی | كوم كس چه | ګمان كوی | چه هيڅ كله به مدد ونهٔ كړی دَده | الله

چه څهٔ غواړی هغه كوی - څوک چه دا خيال كوی چه الله تعالیٰ به دُنيا او آخرت كښې دَخپل پيغمبر

فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ فَلْيَمْدُدْ بِسَبَبٍ اِلَى السَّمَآءِ ثُمَّ

په دُنيا كښې | او آخرت (كښې) | نو هغه دِ اُوږد كړی | يو پړے | آسمان طرف ته | بيا دِ

مدد نهٔ كوی ، نو هغهٔ له پكار دی چه يو پړے تر آسمانه وُغزوی بيا (دِ وُخيژی او)

لْيَقْطَعْ فَلْيَنْظُرْ هَلْ يُذْهِبَنَّ كَيْدُهُ مَا يَغِيْظُ ⑮

پرے كړی | بيا دِ وُګوری | آيا | لرے به كړی | تدبير دَدهٔ | هغه (شكايت) | دَكوم نه چه خوشحاله نهٔ دے

دَوحی سلسله دِ پريكړی بيا دِ وګوری چه آيا دَ هغهٔ دا تدبير دَ هغهٔ دَ قهر سامان ختمولے شی؟

وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنٰهُ اٰيٰتٍ بَيِّنٰتٍ ۙ وَّاَنَّ اللّٰهَ يَهْدِیْ

او دغه شان | نازل كړو مونږ دا (قرآن) | آيتونه | واضحه | او بيشكه | الله | هدايت كوی

او هم دغه شان مونږ دا (قرآن) دَ ښكاره او څرګندو نخښو په شكل كښې نازل كړے دے او چا ته چه الله تعالیٰ دِ غواړی

مَنْ يُّرِيْدُ ⑯ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَادُوْا وَالصّٰبِـِٔيْنَ

چا ته چه | وُغواړی | بيشكه | كوم خلق چه | مؤمنان دی | او كوم خلق چه يهوديان شول | او دَستورو عبادت كوونكی

هدايت ورته كوی - بيشكه كوم خلق چه مؤمنان دی او كوم چه يهوديان دی او صابيان او

وَالنَّصٰرٰی وَالْمَجُوْسَ وَالَّذِيْنَ اَشْرَكُوْٓا ۖ اِنَّ اللّٰهَ

او | نصرانيان | او مجوسيان | او كوم خلق چه | مشركان دی | بيشكه | الله

او عيسايان او آتش پرست دی او څوک چه مشركان دی - الله تعالیٰ به دَ قيامت

يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ

به فيصله وكړی | دَ دوی په مينځ كښې | په ورځ | دَ قيامت | بيشكه | الله | په هر څيز باندِ

په ورځ دَ دے ټولو په مينځ كښې فيصله وكړی ، الله تعالیٰ ته هر څيز مخامخ پروت

شَهِيْدٌ ⑰ اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يَسْجُدُ لَهٗ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ

خبردار دے | آيا تا نهٔ دی كتلی | چه بيشكه الله ته | سجده كوی | هغه څوک چه | په آسمانونو كښې دی

دے - آيا تهٔ نهٔ ګوره چه ټول الله تعالیٰ ته سجده (او اطاعت) كوی كوم مخلوقات چه

وَمَنْ فِى الْاَرْضِ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ وَالنُّجُوْمُ وَالْجِبَالُ

او هغه څوک چه | په زمكه كښې دی | او نمر | او سپوږمۍ | او ستوری | او غرونه

په آسمانونو او زمكه كښې دی ، او نمر او سپوږمۍ او ستوری او غرونه او

وَالشَّجَرُ وَالدَّوَآبُّ وَكَثِيْرٌ مِّنَ النَّاسِ ؕ وَكَثِيْرٌ حَقَّ

او ونے | او ښاروی | او ډير | له خلقونه | او ډير (داسے دی) | چه ثابت شوے دے

او ونے او ښاروی په سجده پراته دی او ډير انسانان هم سجدے كوی او ډير په كښې داسے هم دی

عَلَيْهِ الْعَذَابُ ۗ وَمَنْ يُّهِنِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ مُّكْرِمٍ ۗ

په دوی باندې | عذاب | اوچا لره چه | ذلیله کړی | الله | پس نشته | هغهٔ له | (څوک) عزت ورکوونکے

چه عذاب پرے ثابت شوے دے او څوک چه الله تعالیٰ ذلیله کړی نو هغهٔ له څوک عزت ورکوونکے نشته

اِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ ۩ ﴿۱۸﴾ هٰذٰنِ خَصْمٰنِ اخْتَصَمُوْا

بیشکه الله | کوی | هغهٔ څهٔ | چه غواړی | دا دوه | جګړه کوونکی (ډلے) دی | کوموچه جګړه وکړه

الله تعالیٰ چه څهٔ غواړی هغه کوی ، دا دواړه فرقے دی چه د خپل رب په حقله اختلاف



فِیْ رَبِّهِمْ ۫ فَالَّذِیْنَ كَفَرُوْا قُطِّعَتْ لَهُمْ ثِیَابٌ مِّنْ نَّارٍ ؕ

د خپل رب په حقله | پس کوم چه | کافران دی | پریکولے به شی | دوی ته پارہ | جامے | د اور

کوی ، نو څوک چه کافران دی هغوئ له به د اور نه جامے وُسکښتلے شی

یُصَبُّ مِنْ فَوْقِ رُءُوْسِهِمُ الْحَمِیْمُ ﴿۱۹﴾ ج یُصْهَرُ بِهٖ مَا

اچولے به شی | د پاسه نه | د دوی د سرونو | یشیدلے اوبۀ | چه ویلی به شی | په دے سره څهٔ چه دی

د سرونو د پاسه به ورله (ځتکیدلے) تودے اوبه توبولے شی، په دے سره به د دوی د خیټے دننه

فِیْ بُطُوْنِهِمْ وَالْجُلُوْدُ ﴿۲۰﴾ ؕ وَلَهُمْ مَّقَامِعُ مِنْ حَدِیْدٍ ﴿۲۱﴾ كُلَّمَاۤ

د دوی په خیټو کښے | او څرمنے | او د دوی د پاره | به ګرزونه وی | د اوسپنے | هرکله چه

کولمے او د دوی څرمنے خورییتے او د وهلو د پاره به ورته د اوسپنے ګرزونه پرانهٔ وی ، هر کله چه

ربع ٤

اَرَادُوْۤا اَنْ یَّخْرُجُوْا مِنْهَا مِنْ غَمٍّ اُعِیْدُوْا فِیْهَا ق وَذُوْقُوْا

دوئ اراده وکړی | چه ووځی | له دے نه | له غم نه | نو دوئ به واپس کولے شی | په هغے کښے | او وُڅکئ

ترے نه خفه زهیر بهرته وتل وغواړی نو بیا به ورته ورد یکه کولے شی او (ورته به ویلے شی چه)

عَذَابَ الْحَرِیْقِ ﴿۲۲﴾ ع اِنَّ اللّٰهَ یُدْخِلُ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا

عذاب | د سوزدولو | بیشکه الله | داخل به کړی | هغه کوموچه | ایمان راوړے دے

د سوزیدو عذاب وُڅکئ - الله تعالیٰ به هغه کسان چه ایماندار دی او د نیکئ

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ یُحَلَّوْنَ

او عملونه ئے کړی دی | نیک | باغونو کښے | چه بهیږی به | لاندے د هغے نه | نهرونه | اچولے به شی دوی ته

کارونه کوی په داسے باغونو کښے داخل کړی چه د هغے لاندے به ویالے بهیږی ، هلته به ورته

فِیْهَا مِنْ اَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ وَّلُؤْلُؤًا ؕ وَلِبَاسُهُمْ فِیْهَا

په هغے کښے | بازوګان | د سرو زرو | او ملغلرے | او د دوی لباس به وی | هلته

د سرو زرو بازوګان او ملغلرے اچولے شی ، او هلته به د هغوئ جامے د

حَرِیْرٌ ﴿۲۳﴾ وَهُدُوْۤا اِلَى الطَّیِّبِ مِنَ الْقَوْلِ ج صلے وَهُدُوْۤا اِلٰی صِرَاطِ

د ریښمو | او هدایت شوے وو دوی ته | د پاکیزه | کلمے (د توحید) | او هدایت شوے وو دوی ته | په طرف د لارے

ریښمو وی او (داځکه چه په دنیا کښے) دوی ته د پاکیزه کلام هدایت شوے وو ، او د ستائیلی شوی (خدائے)

الْحَمِيْدِ ﴿٢٤﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَيَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

دَ ستائیلی شوی | بیشکه | کوم خلق چه | کافران دی | او منع کوی (خلق) | دَ لارے نه | دَ الله

لارے ته بیوولے شوے وو۔ بیشکه هغه خلق کوم چه کفر اختیار کړو او چه خلق دَ الله تعالیٰ دَ لارے نه او دَ

وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ الَّذِيْ جَعَلْنٰهُ لِلنَّاسِ سَوَآءَنِ الْعَاكِفُ

او (له) مسجد حرام (نه) | هغه ته چه | جوړ کړو مونږ | خلقو دَ پاره | برابر دے | اوسیدونکے

مسجد حرام ته منع کوی کوم چه مونږ دَ ټولو خلقو دَ پاره مقرر کړے دے چه په هغه کښے اوسیدونکے (کوربه) او دَ

فِيْهِ وَالْبَادِ ۗ وَمَنْ يُّرِدْ فِيْهِ بِاِلْحَادٍۢ بِظُلْمٍ نُّذِقْهُ

په دے کښے | او دَ بهرنه راتلونکے | او څوک چه وغواړی | په دے کښے | بے دینی | په ظلم سره | مونږ به وڅکوو دَ ته

بهرنه راتلونکے (مسافر) بو برابر دی او څوک چه په ظلم سره په دے ځائے کښے دَ بے دینئ جاری کولو اراده وکړی نو مونږ به پرے

مِنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ ﴿٢٥﴾ وَاِذْ بَوَّاْنَا لِاِبْرٰهِيْمَ مَكَانَ الْبَيْتِ

عذاب | دردناک | او هر کله چه | وښودلو مونږ | ابراهیم ته | ځائے | دَ کور

دَ دردناک عذاب څکه وکړو ، او هر کله چه مونږ ابراهیمؑ ته دَ بیت الله (دَ جوړولو) ځائے په ګوته کړو (او حکم مو ورکړو)

اَنْ لَّا تُشْرِكْ بِيْ شَيْـًٔا وَّطَهِّرْ بَيْتِيَ لِلطَّآئِفِيْنَ

چه شریک مهٔ نیسه | ماسره | هیڅ څیز | او پاک وساته | زما کور | دَ پاره دَ طواف کوونکو

چه ماسره هیڅ څیز مهٔ شریکوه ، او زما کور دَ طواف کوونکو او قیام کوونکو او رکوع او

وَالْقَآئِمِيْنَ وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ ﴿٢٦﴾ وَاَذِّنْ فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ

او دَ قیام کوونکو | او دَ رکوع کوونکو | او دَ سجدے کوونکو | او اعلان وکړه | په خلقو کښے | دَ حج

سجده کوونکو دَ پاره پاک وساته ۔ او په خلقو کښے دَ حج اعلان وکړه

يَاْتُوْكَ رِجَالًا وَّعَلٰى كُلِّ ضَامِرٍ يَّاْتِيْنَ مِنْ كُلِّ فَجٍّ عَمِيْقٍ ﴿٢٧﴾

دوی به راځی تاته | پیاده | او په هرے مانده اوښے | چه راځی به | له هرے لارے | لرے نه

خلق به درله پیاده هم راځی او په تپوتپیو اوښو باندے سواره هم چه په لویو او بیدو لارو به ځان را رسوی

لِّيَشْهَدُوْا مَنَافِعَ لَهُمْ وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ فِيْٓ اَيَّامٍ

چه دوی حاضر شی | دَ خپلو فائدو دَ پاره | او یاده کړی | نامه دَ الله | په هغو ورځو کښے

دَ پاره دَ دے چه دلته خپلو فائدو له راحاضر شی ، او په مقرر و ورځو کښے دَ الله تعالیٰ نوم یاد

مَّعْلُوْمٰتٍ عَلٰى مَا رَزَقَهُمْ مِّنْۢ بَهِيْمَةِ الْاَنْعَامِ ۚ فَكُلُوْا

چه معلومے دی | په هغه څهٔ چه | ورکړل دوی ته (الله) | له چارپایانو | څاروو نه | پس خورئ تاسو

کړی په هغو څاروو باندے چه الله تعالیٰ ورته روزی کړی دی ، نو تاسو په خپله

مِنْهَا وَاَطْعِمُوا الْبَآئِسَ الْفَقِيْرَ ﴿٢٨﴾ ثُمَّ لْيَقْضُوْا

له هغے نه | او | خوروئ | په بد حاله | فقیرانو | بیا | لرے دِ کړی

هم ترے نه خورئ ، او په بد حالو فقیرانو باندے هم خوروئ ، بیا پکار دی چه خلق خپل

تَفَثَهُمْ وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ ﴿٢٩﴾

خیرے خپل | او پوره دِ کړی | خپلے منښتے | او طواف دِ وکړی | دَ دِے کور | پخوانی

خیرے لرے کړی او خپلے منښتے پوره کړی او پکار دی چه دَ (دِے) زوړه کور طواف وکړی

ذٰلِكَ ۚ وَمَنْ يُعَظِّمْ حُرُمٰتِ اللّٰهِ فَهُوَ خَيْرٌ لَّهُ

دا (حکمونه دی) | او څوک چه | تعظیم کوی | دَ شعائرو دَ الله | نو دا | غوره دی | دهٔ دَ پاره

دا خبره وشوه او څوک چه دَ الله تعالیٰ دَ درنو حکمونو ادب کوی نو دا کار دَ هغهٔ په حقله دَ خپل رب سره

عِنْدَ رَبِّهٖ ۗ وَاُحِلَّتْ لَكُمُ الْاَنْعَامُ اِلَّا مَا يُتْلٰى

په نزد دَ رب دَ دهٔ | او حلال کړے شوی دی | تاسو دَ پاره | څاروی | سیوا دَ هغې نه | چه اَوُروے شی

ډیر غوره دے ، او تاسو دَ پاره ټول څاروی حلال دی بغیر دَ هغې نه دَ کومو (دَ حرمت احکام)

عَلَيْكُمْ فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ

تاسو ته | پس ځان وساتئ | له پلیتئ | دَ بتانو نه | او ځان ساتئ | له خبرے

چه تاسو ته اَوُروَلے شوی دی پس تاسو دَ بتانو دَ پلیتئ نه ځان ساتئ او دَ دروغو دَ خبرو نه ځان

الزُّوْرِ ﴿٣٠﴾ حُنَفَآءَ لِلّٰهِ غَيْرَ مُشْرِكِيْنَ بِهٖ ۗ وَمَنْ يُّشْرِكْ

دَ دروغو نه | مائله وُسیږئ | الله دَ پاره | نهٔ شریک مقرر کوونکی دَ دهٔ سره | او څوک چه | شریک مقرر کړی

ساتئ ، دَ الله تعالیٰ اړخ ته مائله وُسیږئ هغهٔ سره هیڅوک مهٔ شریکوئ او څوک چه الله تعالیٰ سره (بل څهٔ)

بِاللّٰهِ فَكَاَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَآءِ فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ

دَ الله سره | پس ګویا | چه هغه پریوتلو | له آسمان نه | پس وُتښتوی دے لره | مارغان

شریکوی ، نو هغه (داسے دے) لکه چه دَ آسمان نه راپریوتلو ، بیا مارغانو (په فضا کښے) وُتښتولو ـ

اَوْ تَهْوِيْ بِهِ الرِّيْحُ فِيْ مَكَانٍ سَحِيْقٍ ﴿٣١﴾ ذٰلِكَ ۗ وَمَنْ

یا | راوُغوړزوی | دے | هوا | په یو لرے ځائے کښے | دا | او څوک چه

یا سیلئ چرته لرے په یو بیرته ځائے کښے وغورزولو ـ دا خبره وُشوه او څوک چه دَ

يُّعَظِّمْ شَعَآئِرَ اللّٰهِ فَاِنَّهَا مِنْ تَقْوَى الْقُلُوْبِ ﴿٣٢﴾ لَكُمْ

تعظیم کوی | دَ نخښو دَ الله | نو بیشکه دا دے | له پرهیزګارئ نه | دَ زړونو | تاسو دَ پاره

الله تعالیٰ دَ نخښو عزت کوی نو دا خبره دَ زړونو دَ پرهیزګارئ خبره ده ، تاسو له دَ دے

فِيْهَا مَنَافِعُ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ثُمَّ مَحِلُّهَآ اِلَى الْبَيْتِ

په دے کښے | فائدے دی | تر مودے مقررے پورے | بیا دَ دے ذبح کول دی | کور

څارووُ نه تر یوے ټاکلے نیټے پورے فائدے اخستل روا دی، بیا دَ دغو څارووُ دَ حلالے ځائے دَ زوړ کور

الْعَتِيْقِ ﴿٣٣﴾ ع وَلِكُلِّ اُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنْسَكًا لِّيَذْكُرُوا اسْمَ

پخوانی ته | او دَ پاره دَ هر | اُمت | مقرر کړے دَ مونږ | قربانی | دَ پاره دَ دے چه یاد کړی | نامه

(کعبے) په خوا کښے مقرر دے ـ او مونږ هر یو اُمت له یوه قربانی مقرره کړے ده ، دَ پاره دَ دے چه مونږ ورته

ع ۱۱

اللّٰهِ عَلٰى مَا رَزَقَهُمْ مِّنْۢ بَهِيْمَةِ الْاَنْعَامِ ؕ فَاِلٰهُكُمْ

دَ الله | په هغه څه چه | ورکړی دی دوی ته (الله) | له چارپایانو | دَ څاروو نه | پس ستاسو معبود

کوم څاروی ورکړی دی په هغې دَ الله تعالیٰ نوم واخلی ، نو ستاسو معبود

اِلٰهٌ وَّاحِدٌ فَلَهٗۤ اَسْلِمُوْا ؕ وَبَشِّرِ الْمُخْبِتِيْنَ ﴿٣٤﴾ الَّذِيْنَ

معبود یو دے | پس هم دهٔ ته | سر تیټ کړئ | او زیرے ورکړه | عاجزی کوونکو ته | هغه خلق چه

خو پس یو خدائے دے ، نو هم دَ هغهٔ اطاعت کوئ او (اے پیغمبره!) عاجزی کوونکو ته زیرے ورکړه. دا هغه خلق

اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ وَالصّٰبِرِيْنَ عَلٰى مَاۤ

کله | یاد کړے شی | الله | نو وویریږی | زړونه دَ دوی | او دوی صبر کوونکی دی | په هغه څهٔ

دی چه هر کله دَ الله تعالیٰ نوم واخستے شی نو دَ دوی زړونه ویریږی ، او په مصیبتونو کښے صبر

اَصَابَهُمْ وَالْمُقِيْمِى الصَّلٰوةِ ۙ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿٣٥﴾

چه دوی ته ورسیږی | او دوی قائموونکی دَ | دَ مونځ | او له هغه څهٔ نه | چه ورکړی دَ مونږ دوی ته | خرڅ کوی

کوی ، او دَ مونځونو پابندی ساتی او زمونږ دَ ورکړے روزئی نه (دَ نیکئ په لار کښے) خرڅونه کوی

وَالْبُدْنَ جَعَلْنٰهَا لَكُمْ مِّنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ لَكُمْ فِيْهَا

او دَ قربانئ (اوښان) | چه جوړ کړل مونږ دوی | تاسو دَ پاره | له نخښونه | دَ الله | تاسو دَ پاره | په دے کښے

او دَ قربانئ څاروی مونږ تاسو دَ پاره دَ الله (دَ دین) نخښے مقرر کړی دی ، په دے کښے ستاسو خپل

خَيْرٌ ۖ فَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا صَوَآفَّ ۚ فَاِذَا وَجَبَتْ

بښیګړه ده | پس یاد کړئ | نوم دَ الله | په هغے باندی | چه ولاړوی تطار کښے (قربانئ دَ پاره) | پس هر کله چه | را پریوزی

خیر دے نو څهٔ وخت چه تاسو دغه (څاروی قربانئ ته) تطار کښے دَ دروئ نو دَ الله نوم پرے اخلئ بیا چه هغوئ په اړخونو

جُنُوْبُهَا فَكُلُوْا مِنْهَا وَاَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ ؕ

اړخونه دَ هغوئ | نو خورئ | له هغے نه | او خوروئ | په صبر کوونکی غریب | او په سوالګری

پریوزی نو له هغے نه خپله هم خورئ او صبر کوونکو او غوښتونکو فقیرانو (دواړو) باندې هم خوروئ

كَذٰلِكَ سَخَّرْنٰهَا لَكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿٣٦﴾ لَنْ يَّنَالَ اللّٰهَ

دغه شان | تابع کړل مونږ دوئ | تاسو دَ پاره | چه تاسو | شکر وکړئ | هیڅکله نهٔ رسیږی | الله ته

دغه شان مونږ دا څاروی ستاسو تابع کړی دی چه تاسو زمونږ شکر ادا کړئ ، الله تعالیٰ ته نهٔ خو دَ دے (څناور)

لُحُوْمُهَا وَلَا دِمَآؤُهَا وَلٰكِنْ يَّنَالُهُ التَّقْوٰى مِنْكُمْ ؕ كَذٰلِكَ

غوښے دَ دے | او نهٔ وینے دَ دے | لیکن رسیږی هغهٔ ته | پرهیزګاری | له تاسو نه | دغه شان

غوښه رسیږی او نهٔ ئے وینه ، بلکه هغهٔ ته ستاسو صرف پرهیزګاری رسیږی. په دے شان هغهٔ

سَخَّرَهَا لَكُمْ لِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ ؕ وَبَشِّرِ

هغهٔ تابع کړل دا | تاسو دَ پاره | چه تاسو لوئی بیان کړئ | دَ الله | په هغه څهٔ چه | لار ئے وښودله تاسو ته | او زیرے ورکړه

دا څاروی ستاسو تابع کړی دی چه تاسو دَ الله تعالیٰ لوئی بیان کړئ ، هغهٔ تاسو ته لار وښودله او (اے نبی!)

الْمُحْسِنِينَ ﴿٣٧﴾ إِنَّ اللَّهَ يُدَافِعُ عَنِ الَّذِينَ آمَنُوا ۗ إِنَّ اللَّهَ

نیکی کوونکو نه | بیشکه | الله | دفع کوی | له هغه خلقونه | چه ایمان راوړی | بیشکه | الله

نیکی کوونکو ته زیری ورکړه. بیشکه چه الله تعالی به د مؤمنانو د سرنه (د مشرکانو غلبه) لرے کوی ، (او) بیشکه

لَا يُحِبُّ كُلَّ خَوَّانٍ كَفُورٍ ﴿٣٨﴾ أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ

نه خوښوی | هر | خیانت کوونکے | ناشکره | اجازت ورکړے شو | هغوته کوموسره چه | جنګ کولے شی

الله تعالی هیڅ یو ټګی چین ناشکره نه خوښوی. هغه (مسلمانان) کوموسره چه جنګ کولے شی اوس دوی ته هم

بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا ۚ وَإِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ ﴿٣٩﴾ الَّذِينَ

ځکه چه په دوی | ظلم شوے دے | او بیشکه الله | د دوی په مدد کولو باندې | قادر دے | کوم خلق چه

د جنګ کولو اجازت دے ځکه چه په دوی ظلم کیږی او بیشکه الله تعالی د دوی په مدد کولو باندې قادر دے ، دا هغه خلق

أُخْرِجُوا مِن دِيَارِهِم بِغَيْرِ حَقٍّ إِلَّا أَن يَقُولُوا رَبُّنَا اللَّهُ ۗ

ویستلے شول | د خپلو کورونو نه | په ناحقه | صرف په دے وجه | چه دوی وائی | زمونږ رب | الله دے

دی کوم چه د دوی د کورونو نه په ناحقه ویستلے شول صرف په دے خبره چه دوی وائی چه زمونږ رب الله دے

وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لَّهُدِّمَتْ صَوَامِعُ

او که چرے نه دفع کولے الله | خلق | بعض یو بل په ذریعه | نو نړولے شوے به وے | خلوت خانے

او که چرے الله تعالی خلق د یو بل په ذریعه نه دفع کولے نو (د راهبانو) خانقاګانے او (د عیسایانو) ګرجے

وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ وَمَسَاجِدُ يُذْكَرُ فِيهَا اسْمُ اللَّهِ كَثِيرًا ۗ

او ګرجے | او عبادت خانے | او جماتونه | چه یادولے شی | په دے کښے | نامه | د الله | ډیره

او (د یهودیانو) عبادت خانے او (د مسلمانانو) جماتونه چه د الله نوم په کښے ډیر ډیر اخستے شی (دا ټول) به وران شوی ووے

وَلَيَنصُرَنَّ اللَّهُ مَن يَنصُرُهُ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴿٤٠﴾

او خامخا به مدد کوی | الله | د هغه چا چه | مدد کوی د ده (د دین) | بیشکه | الله | ډیر طاقتور | غالب دے

او الله تعالی به د هغه چا مدد کوی څوک چه د هغه (د دین) مدد کوی، بیشکه چه الله تعالی زور اور او غالب دے

الَّذِينَ إِن مَّكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ أَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا

هغه خلق | که چرے مونږ قوت ورکړو دوی ته | په زمکه کښے | نو قائموی به دوی | مونځ | او اداکوی به

دغه (مظلومان) داسے خلق دی چه که مونږ ورله د زمکے په مخ باندې حکومت ورکړو نو د مونځ پابندی به ساتی او زکوٰة به

الزَّكَاةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنكَرِ ۗ وَلِلَّهِ عَاقِبَةُ

زکوٰة | او حکم به کوی | د نیک کار | او منع به کوی | له ناخوښه کار نه | او الله له دے | انجام

به ورکوی ، او نورو ته به د نیکئ کولو حکم ورکوی ، او د بدئ نه به ئے منع کوی او د هر کار انجام د الله تعالی

الْأُمُورِ ﴿٤١﴾ وَإِن يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ

د ټولو کارونو | او که چرے | دوی دروغژن وګڼی تا | نو بیشکه دروغژن ګڼلے وو | له دے نه وړاندې | قوم | د نوح

په قبضه کښے دے (او که ستا دوی تا دروغژن ګڼی نو (څه وشوی) د دے نه مخکښ د نوح علیه السلام قوم

وَّعَادٌ وَّثَمُوْدُ ﴿٤٢﴾ وَقَوْمُ اِبْرٰهِيْمَ وَقَوْمُ لُوْطٍ ﴿٤٣﴾

او عاد | او ثمود | او قوم | دَ ابراهيمؑ | او قوم | دَ لوطؑ

او عاد او ثمود هم او دَ ابراهيمؑ او دَ لوطؑ قوم او دَ مدين خلقو هم

وَّاَصْحٰبُ مَدْيَنَ ۚ وَكُذِّبَ مُوْسٰى فَاَمْلَيْتُ لِلْكٰفِرِيْنَ ثُمَّ

او اهل | دَ مدين | او دروغژن ګڼړلے شوے وو | موسیٰ | پس ما مهلت ورکړو | کافرانو ته | بيا

(خپل پیغمبران) دروغژن ګڼړلی وو او موسیٰؑ هم دروغژن ګڼړلے شوے وو نو ما کافرانو له مهلت ورکړو بيا ما

اَخَذْتُهُمْ ۚ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ ﴿٤٤﴾ فَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ

ونيول ما دوی | پس څنګه | وو | عذاب زما؟ | پس ګومره | کلی

دوی راونيول نو (تا وليدل چه) زما عذاب څنګه وو؟ پس ګومره کلی دی چه مونږ هغه

اَهْلَكْنٰهَا وَهِيَ ظَالِمَةٌ فَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا وَبِئْرٍ

مونږ هلاک کړل | او هغه ظالمان وو | پس هغه | پريوتی دی | په خپلو چتونو باندې | او کوهيان

هلاک کړل ځکه چه هغوی نافرمانه وو، نو اوس دَ هغوی چتونه پړمخ پراته دی او ډيرې کاره

مُّعَطَّلَةٍ وَّقَصْرٍ مَّشِيْدٍ ﴿٤٥﴾ اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ

چه بےکاره پراته دی | او ماڼۍ | لوړے | پس آيا نه دی ګرځيدلی دوی | په زمکه کښې

کوهيان او ګومره لوړ لوړ محلونه (وران) پراته دی، نو آيا دوی دَ زمکے په مخ تګ راتګ نه کوی

فَتَكُوْنَ لَهُمْ قُلُوْبٌ يَّعْقِلُوْنَ بِهَآ اَوْ اٰذَانٌ يَّسْمَعُوْنَ بِهَا ۚ

پس چه وے | دَ دوی | زړونه | چه دوی پوهيدلے په هغے سره | يا (وے) غوږونه | چه دوی آورېدلے په هغے سره

چه دَ دوی داسے زړونه وے چه پوهه ئے پرے اخستلے، يا داسے غوږونه ورسره وے چه په هغے ئے (حقه خبره)

فَاِنَّهَا لَا تَعْمَى الْاَبْصَارُ وَلٰكِنْ تَعْمَى الْقُلُوْبُ الَّتِىْ

ولے چه بيشکه | نه ړندیږی | سترګے | ليکن ړندیږی | زړونه | هغه چه

آورېدلے خو سمه خبره دا ده چه سترګے نه ړندیږی، بلکه هغه زړونه ړاندۀ شی چه په سينو

فِى الصُّدُوْرِ ﴿٤٦﴾ وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالْعَذَابِ وَلَنْ يُّخْلِفَ اللّٰهُ

په سينو کښے دی | او دوی زر غواړی له تانه | عذاب | او هيڅ کله به خلاف نه کوی | الله

کښے (پټ) پراته وی. او دا خلق له تانه زر عذاب غواړی او الله تعالیٰ به هيچرے دَ خپلے

وَعْدَهٗ ۭ وَاِنَّ يَوْمًا عِنْدَ رَبِّكَ كَاَلْفِ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّوْنَ ﴿٤٧﴾

دَ خپلے وعدے | او بيشکه | يوه ورځ | په نزد دَ رب ستا | په شان دَ زرو کالو ده | له هغے نه شميرئ ئے تاسو

وعدے خلاف ورزی نه کوی او ستا دَ رب يوه ورځ ستاسو دَ شميرے مطابق دَ زرو کالو سره برابره ده۔

وَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ اَمْلَيْتُ لَهَا وَهِيَ ظَالِمَةٌ ثُمَّ اَخَذْتُهَا ۚ

او ګومره | کلی دی | چه ما مهلت ورکړو هغوی ته | او هغه ظالمان وو | بيا | ما ونيول هغوی

او داسے ډير کلی دی چه ما هغوی له مهلت ورکړو او هغوی به زياتے کولو، بيا ما هغوی راونيول

وَإِلَيَّ الْمَصِيرُ ﴿٤٨﴾ قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّمَا أَنَا لَكُمْ

اوزما طرف ته دی | بیرته راګرځیدل | ووایه | اے خلقو! | بیشکه (چه) | زهٔ | تاسو دَپاره

او هم زما طرف ته (دَ ټولو) واپس راتلل دی۔ ووایه چه اے خلقو! زهٔ خو تاسو دَپاره صفا صفا

نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٤٩﴾ فَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ

ویروونکے یم | ښکاره | پس کوم خلق چه | ایمان راوړی | او عملونهٔ وکړل | نیک | دوی له

ویروونکے یم۔ نو چا چه ایمان راوړے دے او دَ نیکئ کارونه کوی نو دهغوئ

مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴿٥٠﴾ وَالَّذِينَ سَعَوْا فِي آيَاتِنَا

بخښنه ده | او روزی | دَ عزت | او هغه خلق | کوم چه کوشش وکړو | زمونږ په آیتونو کښے

اجر بخښنه او دَ عزت روزی ده او څوک چه زمونږ دَ نخښو په حقله دَ هغے دَ عاجزه کولو

مُعَاجِزِينَ أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ ﴿٥١﴾ وَمَا أَرْسَلْنَا

دَ عاجزه کولو | هم دادی | اهل | دَ دوزخ | او نهٔ دے | لیږلے مونږ

کوششونه کوی، نو هم دغه کسان دوزخیان دی۔ او مونږ له تانه وړاندِ چه کوم

مِن قَبْلِكَ مِن رَّسُولٍ وَلَا نَبِيٍّ إِلَّا إِذَا تَمَنَّىٰ أَلْقَى

له تانه وړاندِ | څوک | رسول | او نهٔ څوک نبی | مګر هر کله چه | هغه قرأت کوی | نو غورزوی

رسول یا نبی رالیږلے دے هر کله چه هغهٔ دَ الله تعالیٰ حکمونه لوستلی او آورولی دی نو شیطان

الشَّيْطَانُ فِي أُمْنِيَّتِهِ فَيَنسَخُ اللَّهُ مَا يُلْقِي الشَّيْطَانُ

شیطان (وسوسه) | دَ هغهٔ په قرأت کښے | پس لرے کړی | الله | هغه څهٔ چه | غورزوی | شیطان

دَ هغهٔ په لوستلو کښے (دَ کافرانو په زړونو کښے) وسوسه غورزولے ده۔ بیا الله تعالیٰ دَ شیطان وسوسے فنا کړی

ثُمَّ يُحْكِمُ اللَّهُ آيَاتِهِ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٥٢﴾ لِّيَجْعَلَ

بیا | مضبوطوی | الله | آیتونه خپل | او الله | پوهه | دَ حکمت خاوند دے | چه جوړ کړی

بیا الله تعالیٰ خپل آیتونه مضبوط کړی او الله تعالیٰ په هره خبره پوهه دَ حکمت خاوند دے۔ او دا (هر څهٔ)

مَا يُلْقِي الشَّيْطَانُ فِتْنَةً لِّلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ

هغه څهٔ | چه غورزوی | شیطان | یو آزمیښت | هغو دَپاره چه | په زړونو دَ هغوی کښے | مرض دے

ځکه (کیږی) چه الله تعالیٰ دَ شیطان غورزولے وسوسه یو آزمیښت وګرځوی دَ هغه خلقو دَپاره چه دَ هغوئ په زړونو کښے مرض دے

وَالْقَاسِيَةِ قُلُوبُهُمْ ۗ وَإِنَّ الظَّالِمِينَ لَفِي شِقَاقٍ بَعِيدٍ ﴿٥٣﴾

او سخت دی | دَ هغوئ زړونه | او بیشکه | ظالمان | په مخالفت کښے دی | ډیر لرے

او زړونه ئے سخت شوی دی او بیشکه چه ظالمان په ډیر دروند مخالفت کښے (بوخت) پراتهٔ دی

وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ أَنَّهُ الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ

او چه پوهه شی | کوم ته چه | ورکړے شوے دے | علم | چه هغه (حکم) | حق دے | ستا دَ رب له طرفه

او چه کوم خلقو ته علم ورکړے شوے دے چه هغوئ ښه پوهه شی چه دا ستا دَ رب له طرف نه حق دے

فَيُؤْمِنُوْا بِهٖ فَتُخْبِتَ لَهٗ قُلُوْبُهُمْ ۗ وَاِنَّ اللّٰهَ لَهَادِ

بيا دوى ايمان راوړى | په هغې | بيا ټيټ شى | دهٔ دَ پاره | دَ دوى زړونه | او بيشکه | الله | هدايت کوونکے دے

پس هغوئ په دے ايمان راوړى او دَ هغوئ زړونه دَ الله تعالىٰ په وړاندِ ټيټ شى او بيشکه الله تعالىٰ مؤمنانونه

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٥٤﴾ وَلَا يَزَالُ الَّذِيْنَ

هغه خلقو ته | چه ايمان راوړى | سمے لارے ته | او هميشه به وى | کوم خلق چه

دَ نيغے لارے طرف ته هدايت کوى ، او کوم خلق چه کافران دى

كَفَرُوْا فِىْ مِرْيَةٍ مِّنْهُ حَتّٰى تَاْتِيَهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً

کافران دى | په شک کښے | دَ دے په نسبت | تر دے چه | راشى په دوى باندِ | قيامت | ناګهانه

هغوئ به دَ قران په معامله کښے هميشه په شک کښے پراتهٔ وى تر دے چه ناګهانه به پرے قيامت راشى

اَوْ يَاْتِيَهُمْ عَذَابُ يَوْمٍ عَقِيْمٍ ﴿٥٥﴾ اَلْمُلْكُ يَوْمَىِٕذٍ لِّلّٰهِ ۗ

يا راشى په دوى باندِ | عذاب | دَ ورځے | سپيرے | حکومت به | په دغه ورځ | دَ الله وى

يا دَ شنډے (بے برکته) ورځے عذاب به ئے په سر راشى . حکومت به په دغه ورځ صرف دَ الله تعالىٰ وى

يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ ۗ فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

دے به فيصله وکړى | دَ دوى په مينځ کښے | پس کوم خلق چه | ايمان راوړى | او عملونه ئے وکړل | نيک

هغه به دَ خلقو تر مينځه فيصله وکړى ، پس هغه خلق چه ايمان راوړى او هغوئ نيک عمل وُکړو ،

فِىْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ﴿٥٦﴾ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا فَاُولٰٓىِٕكَ

(وى به) په باغونو کښے | دَ نعمت | او کوم خلق چه | کافران دى | او دوى دروغ وګڼړل | زمونږ آيتونه | پس هم دا دلهٔ دهٔ

هغوئ به دَ نعمت په باغونو کښے وى . او هغه خلق کوم چه کفر وکړو او زمونږ آيتونه ئے دروغ وګڼړل ، هغو خلقو دَ پاره

لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿٥٧﴾ وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

چه دوى دَ پاره | عذاب دے | سپکوونکے | او کوم خلق چه | هجرت وکړو | په لاره کښے | دَ الله

سپکوونکے عذاب مقرر دے . او هغه خلق کوم چه دَ الله تعالىٰ په لاره کښے هجرت وکړو

ثُمَّ قُتِلُوْٓا اَوْ مَاتُوْا لَيَرْزُقَنَّهُمُ اللّٰهُ رِزْقًا حَسَنًا ۗ وَاِنَّ اللّٰهَ

بيا ووژلے شول | يا مړهٔ شول | خامخا به رزق ورکړى دوئ ته | الله | رزق | ښهٔ | او بيشکه الله

بيا هغوئ ووژلے شول يا مړهٔ شول نو الله تعالىٰ به هغوئ له خامخا ښهٔ رزق ورکړى او (يادساتئ چه) بيشکه

لَهُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿٥٨﴾ لَيُدْخِلَنَّهُمْ مُّدْخَلًا يَّرْضَوْنَهٗ ۗ

خامخا هم دے | ډير ښهٔ | رزق ورکوونکے دے | خامخا هغه به داخل کړى دوئ | داسے ځائے ته | چه هغه به دوئ خوښ کړى

الله تعالىٰ ښهٔ روزى رسان دے . هغه به هغوئ يقينًا په داسے ځائے کښے داخل کړى کوم چه به هغوئ خوښ کړى

وَاِنَّ اللّٰهَ لَعَلِيْمٌ حَلِيْمٌ ﴿٥٩﴾ ذٰلِكَ ۚ وَمَنْ عَاقَبَ بِمِثْلِ

او بيشکه الله | پوهه | بردبار دے | دا | او څوک چه | سختى وکړى | په مثل دَ هغے

او الله تعالىٰ بيشکه (دَ ټولو دَ حال نه) واقف او بردبار دے . دا او څوک چه دَ زياتئ صرف دومره بدله واخلى څومره

مَا عُوْقِبَ بِهٖ ثُمَّ بُغِیَ عَلَیْهِ لَیَنْصُرَنَّهُ اللّٰهُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

چه خومره سختي وشوه | په ده | بیا | ظلم وشو په هغهٔ | نو ضرور به مدد وکړي دَ هغهٔ | الله | بیشکه | الله

چه دهٔ سره زیاتے شوے وي او بیا (دوباره) په دهٔ زیاتے وُشي نو الله تعالیٰ به ضرور دَ دهٔ مدد کوي بیشکه الله تعالیٰ

لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ ﴿۶۰﴾ ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ یُوْلِجُ الَّیْلَ فِی النَّهَارِ

معاف کوونکے | بخښونکے دے | دا | ځکه چه | الله | داخلوي | شپه | په ورځ کښے

ډیر معاف کوونکے او بخښونکے دے . دا په دے وجه چه الله تعالیٰ شپه په ورځ کښے او

وَیُوْلِجُ النَّهَارَ فِی الَّیْلِ وَاَنَّ اللّٰهَ سَمِیْعٌۢ بَصِیْرٌ ﴿۶۱﴾

او داخلوي | ورځ | په شپه کښے | او بیشکه | الله | آورېدونکے | لیدونکے دے

ورځ په شپه کښے داخلوي ، او بیشکه چه الله تعالیٰ هر څهٔ آوري هر څهٔ وېني ګوري

ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ وَاَنَّ مَا یَدْعُوْنَ

دا | ځکه چه | الله | رښتینے دے | او بیشکه | کوم لره چه | دوي بلي

دا امداد به ځکه (هم) کیږي چه صرف الله تعالیٰ حق دے او دا (کافران) چه دَ الله تعالیٰ نه سیوا

مِنْ دُوْنِهٖ هُوَ الْبَاطِلُ وَاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْعَلِیُّ الْكَبِیْرُ ﴿۶۲﴾

سیوا دَ الله نه | هغه دروغ دي | او بیشکه | هم الله دے | عالیشان | ډیر لوئے

کوم معبودان بلي هغه باطل دي او په دے کښے شک نشته چه الله تعالیٰ اوچت دے لوئے دے .

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ؗ فَتُصْبِحُ الْاَرْضُ

آیا تهٔ نهٔ وېنې | چه بیشکه الله | نازل کړے | له آسمان نه | اوبهٔ | پس شي | زمکه

آیا تا ته نهٔ ګورے چه الله تعالیٰ دَ بره نه اُوبهٔ راوَروي نو په هغې باندې زمکه

مُخْضَرَّةً ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَطِیْفٌ خَبِیْرٌ ﴿۶۳﴾ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ

شنه | بیشکه الله | مهربان | خبردار دے | هم دَ هغه دي څهٔ چه | په آسمانونو کښے دي

تکه شنه شي ، بیشکه چه الله تعالیٰ ډیر مهربان په هر څهٔ خبر دے ، څهٔ چه په آسمانونو کښے دي

وَمَا فِی الْاَرْضِ ؕ وَاِنَّ اللّٰهَ لَهُوَ الْغَنِیُّ الْحَمِیْدُ ﴿۶۴﴾ اَلَمْ تَرَ

او څهٔ چه | په زمکه کښے دي | او بیشکه | الله | هم دے دے | بے نیازه | ستائیلے شوے | آیا نهٔ دي کتلي تا

او څهٔ چه په زمکه کښے دي ټول دَ الله تعالیٰ مال دے او الله تعالیٰ بے نیازه او دَ هر تعریف قابل دے آیا تا ته نهٔ دي

اَنَّ اللّٰهَ سَخَّرَ لَكُمْ مَّا فِی الْاَرْضِ وَالْفُلْكَ تَجْرِیْ فِی الْبَحْرِ

چه بیشکه الله | تابع کړل ستاسو | څهٔ چه په زمکه کښے دي | او کشتۍ | چه روانے دي | په دریاب کښے

کتلي چه الله تعالیٰ دَ زمکے (ټول) څیزونه ستاسو تابع کړي دي او کشتۍ هم چه دَ هغهٔ په حکم سره په دریاب

بِاَمْرِهٖ ؕ وَیُمْسِكُ السَّمَآءَ اَنْ تَقَعَ عَلَی الْاَرْضِ اِلَّا بِاِذْنِهٖ ؕ

دَ دهٔ په حکم | او هغهٔ را ټینګ کړے دے | آسمان | له دے نه چه راپریوزي | په زمکه باندې | مګر دَ دهٔ په حکم

کښے چلیږي او هم هغهٔ آسمان ټینګ کړے دے چه په زمکه را دَ نهٔ غورزیږي مګر دَ هغهٔ په حکم سره

ع ۱۵

اِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوۡفٌ رَّحِيۡمٌ ﴿۶۵﴾ وَهُوَ الَّذِىۡۤ اَحۡيَاكُمۡ

بیشکه الله | په خلقو باندې | ډیر مهربان | رحم کوونکے دے | او هم هغه دے | کوم چه | ژوندی کړی تاسو

بیشکه الله تعالیٰ په بنیادمو باندې ډیر زیات مهربان رحم کوونکے دے. او الله هغه ذات دے کوم چه تاسو راپیدا کړی

ثُمَّ يُمِيۡتُكُمۡ ثُمَّ يُحۡيِيۡكُمۡ‌ؕ اِنَّ الۡاِنۡسَانَ لَـكَفُوۡرٌ ﴿۶۶﴾

بیا به مړه کړی تاسو | بیا به | ژوندی کړی تاسو | بیشکه | بنیادم | خامخا ناشکره دے

بیا به درباندې مرګ راولی، بیا به مو (سردوباره) ژوندی کړی خو په دې کښې شک نشته چه انسان ډیر ناشکره دے

لِكُلِّ اُمَّةٍ جَعَلۡنَا مَنۡسَكًا هُمۡ نَاسِكُوۡهُ‌ فَلَا يُنَازِعُنَّكَ

د هر یو اُمت د پاره | مونږ مقرر کړله | یوه طریقه د عبادت | چه دوی عمل کوونکی دی په هغې | پس جګړه دِ نهٔ کوی دوی تا سره

مونږ د هر اُمت د پاره (د عبادت) طریقې مقرر کړے په کوم چه هغوئ روان وی نو دوئ له پکار نهٔ دی چه

فِى الۡاَمۡرِ‌ وَادۡعُ اِلٰى رَبِّكَ‌ؕ اِنَّكَ لَعَلٰى هُدًى مُّسۡتَقِيۡمٍ ﴿۶۷﴾ وَاِنۡ

په دې معامله کښې | او بله (خلق) | د خپل رب طرف ته | بیشکه ته | خامخا په سمه لار یئے - | او که چرے

تا سره په دې باره کښې جګړه کوی، او ته نهٔ لګیا اوسه دوئ د خپل رب طرف ته رابله بیشکه ته په سمه لار یئے، او

جَادَلُوۡكَ فَقُلِ اللّٰهُ اَعۡلَمُ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۶۸﴾ اَللّٰهُ يَحۡكُمُ

جګړه کوی دوئ تا سره | نو ووایه | چه الله | ښهٔ پوهه دے | په هغه څهٔ | چه تاسو ئے کوئ | الله به | فیصله وُکړی

که دوئ تا سره جګړے کوی نو دوئ ته ووایه چه څهٔ تاسو کوئ الله تعالیٰ د هغې نه ښهٔ واقف دے، الله تعالیٰ به ستاسو

بَيۡنَكُمۡ يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ فِيۡمَا كُنۡتُمۡ فِيۡهِ تَخۡتَلِفُوۡنَ ﴿۶۹﴾ اَلَمۡ تَعۡلَمۡ

ستاسو په مینځ کښې | په ورځ | د قیامت | په هغه څهٔ کښې چه تاسو په هغې کښې | اختلاف کوئ | آیا تاسو ته معلومه نهٔ ده

ترمینځه په هغې خبرو کښې په کومو کښې چه تاسو اختلاف کوئ د قیامت په ورځ فیصله وکړی، آیا تاسو ته نهٔ

اَنَّ اللّٰهَ يَعۡلَمُ مَا فِى السَّمَآءِ وَالۡاَرۡضِ‌ؕ اِنَّ ذٰلِكَ

چه هم الله | پوهه دے | په هغه څهٔ چه په آسمانونو کښې دی | او زمکه کښې دی | بیشکه دا (ټول)

پوهیږئ چه په آسمانونو او زمکه کښې څهٔ دی، هغه د الله تعالیٰ په علم کښې دی، دا ټولے خبرے په کتاب

فِىۡ كِتٰبٍ‌ؕ اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيۡرٌ ﴿۷۰﴾ وَيَعۡبُدُوۡنَ

په کتاب کښې (درج) دی | بیشکه دا | الله د پاره | آسان دی | او | دوی عبادت کوی

(لوح محفوظ) کښې (درج) دی، بیشکه دا خبره الله تعالیٰ د پاره ډیره آسانه ده، او (دا خلق) د الله تعالیٰ نه

مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ مَا لَمۡ يُنَزِّلۡ بِهٖ سُلۡطٰنًا وَّمَا

سیوا د الله نه | د هغه څیز چه | نهٔ دے نازل کړے | د هغې | (الله څهٔ) دلیل | او هغه (څیز)

سیوا د هغو عبادت کوی د څهٔ په حق کښې چه الله تعالیٰ څهٔ دلیل نهٔ دے نازل کړے او نهٔ دوی ته

لَيۡسَ لَهُمۡ بِهٖ عِلۡمٌ‌ؕ وَمَا لِلظّٰلِمِيۡنَ مِنۡ نَّصِيۡرٍ ﴿۷۱﴾ وَاِذَا

د کوم په نشته دوی ته | علم | او نشته دے د ظالمانو | (څوک) مددګار | او هر کله

د څهٔ علم نشته، او د ظالمانو د پاره څوک مددګار نشته، او هر کله چه

تُتۡلٰى عَلَيۡهِمۡ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ تَعۡرِفُ فِىۡ وُجُوۡهِ الَّذِيۡنَ

لوستلے شي | په دوی باندې | زمونږ آيتونه | واضح | نو پيژنے ته | په مخونو | دَ هغو خلقو چه

ته زمونږ ښکاره آيتونه لوستلے شي ، نو ته دَ کافرانو په مخونو باندې دَ خفګان دوی

كَفَرُوا الۡمُنۡكَرَ‌ؕ يَكَادُوۡنَ يَسۡطُوۡنَ بِالَّذِيۡنَ يَتۡلُوۡنَ

کافران دی | ناخوښي | نزدے کیږی دوی (چه) حمله وکړی | په هغو چه | لولی

نخښے پیژندلے شے ، (نزدے چه) نزدے کیږی چه په هغو خلقو حمله وکړی چه هغوئی ته زمونږ

عَلَيۡهِمۡ اٰيٰتِنَا‌ ؕ قُلۡ اَفَاُنَبِّئُكُمۡ بِشَرٍّ مِّنۡ ذٰلِكُمُ‌ ؕ اَلنَّارُ ؕ

په دوی باندې | زمونږ آيتونه | ووایه | پس آیا زهٔ وښایم تاسوته | زیات ناخوښه | له دے نه هم | هغه اور دے

آیتونه اوروی (اے پیغمبره!) ورته ووایه چه آیا دَ دے نه زیات خراب څیز درته وښایم؟ (واورئ) هغه

وَعَدَهَا اللّٰهُ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا‌ ؕ وَبِئۡسَ الۡمَصِيۡرُ ۝٧٢ يٰۤاَيُّهَا

وعده کړے ده دَ دے | الله | هغو خلقو سره | چه کافران دی | او ډیر بد | ځائے دے | اے

څیز اور دے (چه) الله تعالیٰ کافرانو سره دَ هغے وعده کړے ده او دغه ډیر ناکاره ځائے دے. اے خلقو!

النَّاسُ ضُرِبَ مَثَلٌ فَاسۡتَمِعُوۡا لَهٗ ؕ اِنَّ الَّذِيۡنَ

خلقو! | بیان کړے شوے دے | یو مثال | پس واورئ | هغه | بیشکه هغه کوم چه

(اوس) یوه غټه خبره اوروے شی نو ښهٔ غوږونه ورته کیږدئ. تاسو چه دَ الله تعالیٰ نه

تَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ لَنۡ يَّخۡلُقُوۡا ذُبَابًا وَّلَوِ اجۡتَمَعُوۡا

تاسو بلئ | سیوا | دَ الله نه | هیڅ کله به پیدا نهٔ کړی | یو مچ | اګرکه جمع شی دوی

بغیر نور څوک رابلئ هغوئ خو یو مچ (قدرله) هم پیدا کولے نهٔ شی ، اګرکه ټول پرے باندې

لَهٗ ؕ وَاِنۡ يَّسۡلُبۡهُمُ الذُّبَابُ شَيۡـئًا لَّا يَسۡتَنۡقِذُوۡهُ مِنۡهُ‌ ؕ

دَ هغے پاره | او که چرے | وتښتوی له دوی نه | (هغه) مچ | څهٔ څیز | نو راخلاص به نهٔ کړی دوی هغه | له دهٔ نه

راټول شي او که یو مچ ترے نه څهٔ وتښتوی نو دوئ ټول ترے نه راخلاصولے قدرله هم نهٔ شی

ضَعُفَ الطَّالِبُ وَالۡمَطۡلُوۡبُ ۝٧٣ مَا قَدَرُوا اللّٰهَ

بے وسه شو | طالب | او | مطلوب | قدر ونهٔ کړو دوی | دَ الله

غوښتو والا (عابد) او دَ کوم (دروغژن معبود) نه ئے چه غواړی دواړه کمزوری دی. دے خلقو دَ الله تعالیٰ هغے

حَقَّ قَدۡرِهٖ‌ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَقَوِىٌّ عَزِيۡزٌ‏ ۝٧٤ اَللّٰهُ يَصۡطَفِىۡ

چه څومره ئے دَ تعظیم حق دو | بیشکه الله | ډیر طاقتور | غالب دے | الله | غوره کوی

قدر ونهٔ کړو څنګه چه پکار دو، بیشکه چه الله تعالیٰ زورآور او غالب دے. الله تعالیٰ په فرښتو کښے هم

مِنَ الۡمَلٰٓـئِكَةِ رُسُلًا وَّمِنَ النَّاسِ‌ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيۡعٌ ۢ

له فرښتو نه | رالیږلے شوی | او له خلقو نه | بیشکه الله | اوریدونکے

استاذی غوره کوی ، او په بنیادمو کښے هم ، بیشکه چه الله تعالیٰ هرڅهٔ اوری

بَصِيْرٌ ﴿۷۵﴾ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ

بیناد ے | هغه پوهیږی | څهٔ چه | دَ دوی په مخکښے دی | او څهٔ چه | دَ دوی نه وروستو دی

دیر بنهٔ وینی کوری ، هغهٔ ته دَ دوئ وړاندِ وروستو هر څهٔ معلوم دی

وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ﴿۷۶﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا

او طرف دَ الله ته | بیرته گرځولے شی | (ټول) کارونه | اے | خلقو ! | چه ایمان مو راوړے دے

او ټول کارونه به دَ الله تعالیٰ طرف ته واپس گرځولے شی۔ اے د ایمان خاوندانو !

ارْكَعُوْا وَاسْجُدُوْا وَاعْبُدُوْا رَبَّكُمْ وَافْعَلُوا الْخَيْرَ

رکوع کوئ | او سجده کوئ | او عبادت کوئ | دَ خپل رب | او کوئ | نیکی

دَ هغهٔ په وړاندِ ټیټ شئ او سجده کوئ او دَ خپل رب عبادت کوی او دَ نیکئ کارونه کوئ

لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۷۷﴾ السجدة وَجَاهِدُوْا فِى اللّٰهِ حَقَّ جِهَادِهٖ

چه تاسو | نجات بیا مومئ | او جهاد کوئ | دَ الله په لاره کښے | (لکه چه) حق دے دَ دهٔ دَ جهاد

چه تاسو نجات بیا مومئ۔ او دَ الله تعالیٰ په لاره کښے داسے کوشش کوئ لکه څنگه چه په حقه سره پکار دے

هُوَ اجْتَبٰىكُمْ وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِى الدِّيْنِ مِنْ حَرَجٍ

دهٔ غوره کړئ تاسو | او نهٔ دهٔ ایښے | په تاسو | (په باره دَ) دین کښے | (څهٔ) تنگی

هغهٔ تاسو له عزت در کړو او په تاسو ئے دَ دین په حقله هیڅ قسم له تنگسیا رانهٔ وستله

مِلَّةَ اَبِيْكُمْ اِبْرٰهِيْمَ هُوَ سَمّٰىكُمُ الْمُسْلِمِيْنَ

هغه دین دے | ستاسو دَ پلار | ابراهیم | هغهٔ نامه ایښی ده ستاسو | مسلمان

تاسو دَ خپل پلار ابراهیمؑ په ملت (قائم او سیږئ)، هغهٔ په تاسو دَ مسلمانانو نامه ایښے ده۔

مِنْ قَبْلُ وَفِىْ هٰذَا لِيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ شَهِيْدًا عَلَيْكُمْ

له دے نه وړاندِ | او په دے (قرآن) کښے | چه وی | رسول | گواه | په تاسو باندِ

پخوا هم او اوس په دے (قرآن) کښے هم ، دَ پاره دَ دے چه رسولﷺ په تاسو باندِ گواه شی

وَتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ فَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ

او یئ تاسو | گواهان | په خلقو باندِ | پس قائم کوئ | مونځ

او تاسو په نورو خلقو باندِ گواهان شئ ، نو همیشه دَ مونځ پابندی کوئ

وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَاعْتَصِمُوْا بِاللّٰهِ هُوَ

او ورکوئ | زکوٰة | او مضبوط ونیسئ | الله | هم هغه دے

او زکوٰة ورکوئ ، او (د) الله (حکمونه) مضبوط ونیسئ۔ هغه ستاسو

مَوْلٰىكُمْ فَنِعْمَ الْمَوْلٰى وَنِعْمَ النَّصِيْرُ ﴿۷۸﴾

ستاسو کارساز | پس ښومره ښهٔ | آقا | او ښومره ښهٔ | مددگار دے

مالک دے ، نو ښومره ښهٔ آقا او ښومره ښهٔ پوخ مددگار دے۔

سُوْرَةُ الْمُؤْمِنُوْنَ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مِائَةٌ وَّثَمَانَ عَشْرَةَ اٰيَةً وَّسِتُّ رُكُوْعَاتٍ

سورة مؤمنون په مکه کښې نازل شوې ده — په دې کښې ۱۱۸ آيتونه او شپږ رکوع گانې دي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

شروع د الله په نامه چه لوئ مهربان ډير زيات رحم کوونکے دے

د الله په نامه شروع کوم چه لوئ مهربان د ډير زيات رحم خاوند دے

قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ ۝١ الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ صَلَاتِهِمْ خٰشِعُوْنَ ۝٢

بيشکه | کامياب شول | مسلمانان | هغه خلق چه | دوی | په مونځ خپل کښې | عاجزی کوونکی دی

يقيناً هغه مؤمنان کامياب شول چه په خپلو مونځونو کښې عاجزی کوی.

وَالَّذِيْنَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُوْنَ ۝٣ وَالَّذِيْنَ هُمْ لِلزَّكٰوةِ فٰعِلُوْنَ ۝٤

او کوم چه | د فضول خبرونه | مخ اړوونکی دی | او هغه خلق چه | دوی | زکوٰة | ورکوونکی دی

او کوم چه د فضول خبرو نه ځان ساتی. او هغه چه زکوٰة ادا کوونکی دی

وَالَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَ ۝٥ اِلَّا عَلٰٓى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا

او هغه خلق چه | دوی | د خپلو شرمگاهونو | حفاظت کوونکی دی | مگر په بيبيانو خپلو | يا (وينځو) چه

او هغه چه د خپلو شرمگاهونو حفاظت کوونکی دی. مگر د خپلو ښځو او د خپلو وينځو نه (دا

مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ ۝٦ فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ

د دوی په ملکيت کښې دی | نو بيشکه دوی | ملامته نه دی | پس څوک چه غواړی | سواله دے نه

احتياط) نه کوی حکه چه په دے کښې ملامت نه دی. پس څوک چه د دے نه علاوه (د ښځو وغيره)

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْعٰدُوْنَ ۝٧ وَالَّذِيْنَ هُمْ لِاَمٰنٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رٰعُوْنَ ۝٨

پس هم دا خلق | د حد نه تيريدونکی دی | او هغه چه دوی | د خپلو امانتونو | او د خپلے وعدے | لحاظ کوونکی دی

خواهش لری نو دا سے خلق د حد نه تيريدونکی دی او هغه څوک چه د خپلو امانتونو او د خپلو وعدو لحاظ ساتی

وَالَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَوٰتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ ۝٩ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْوٰرِثُوْنَ ۝١٠

او هغه خلق چه | دوی | د خپلو مونځونو | حفاظت کوی | هم دا خلق دی | وارثان

او هغه څوک چه د خپلو مونځونو حفاظت کوی. هم دا خلق حقيقی وارثان (او حقدار) دی

الَّذِيْنَ يَرِثُوْنَ الْفِرْدَوْسَ ؕ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝١١ وَلَقَدْ خَلَقْنَا

کوم چه به | وارثان وی | د (جنت) فردوس | دوی به په دے کښې | هميشه وی | او بيشکه پيدا کړو مونږ

چه جنت فردوس به په ميراث کښې اخلی او تل عمری به پکښې اوسيږی. او مونږ انسان د خاورے

الْاِنْسَانَ مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ طِيْنٍ ۝١٢ ثُمَّ جَعَلْنٰهُ نُطْفَةً فِيْ قَرَارٍ مَّكِيْنٍ ۝١٣

انسان | د خلاصے | د خټے نه | بيا جوړه کړه مونږ هغه | نطفه | په قرارگاه | محفوظ کښے

د جوهر نه راپيدا کړو. بيا مونږ دا نطفه جوړه کړه (او) په يو محفوظ ځائے (رحم مادر) کښې موساتله

ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً فَخَلَقْنَا

بيا جوړه کړه مونږ | نطفه | ټوټه د وينے | بيا جوړه کړه مونږ | ټوټه د وينے | بوټی د غوښے | بيا جوړه کړه مونږ

بيا مو د هغے څاڅکی نه ماية وينه جوړه کړه، بيا مو د هغے ماية وينے نه (د غوښے) بوټے جوړه کړه، بيا مو هغه

الْمُضْغَةَ عِظٰمًا فَكَسَوْنَا الْعِظٰمَ لَحْمًا ق ثُمَّ اَنْشَاْنٰهُ خَلْقًا اٰخَرَ

بو ټوټې دَ غوښې | هډوکي | بیا مونږ واغوستله | هډوکو ته | غوښه | بیا پیدا اکړو مونږ دے | یو بل نوے مخلوق

بیا مو هغه پوټې هډوکي کړل بیا مو په هغې هډوکو باندې غوښه وخېژوله، بیا مو ترے نه یو بل نوے مخلوق جوړ کړو

فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ ﴿١٤﴾ ثُمَّ اِنَّكُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ لَمَيِّتُوْنَ ﴿١٥﴾

پس لوئے دے | الله | دَ ټولو نه ښۀ | جوړوُنکے | بیا بیشکه تاسو | پس | له دے نه | مړۀ کیدونکي یئ

نو مبارک دے هغه الله چه دَ ټولو نه ښۀ جوړوُنکے دے۔ بیا له دے نه پس به ضرور تاسو مرئ۔

ثُمَّ اِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ تُبْعَثُوْنَ ﴿١٦﴾ وَلَقَدْ خَلَقْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعَ

بیا | بیشکه تاسو به | په ورځ | دَ قیامت | راپورته کړے شئ | او بیشکه پیدا اکړل مونږه | ستاسو پاسه | اووۀ

بیا به دَ قیامت په ورځ دَ نوی سره راژوندی کیږئ۔ او مونږ ستاسو دَ پاسه اُووۀ آسمانونه

طَرَآئِقَ ق وَمَا كُنَّا عَنِ الْخَلْقِ غٰفِلِيْنَ ﴿١٧﴾ وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ

آسمانونه | او نۀ وو مونږ | دَ خپل مخلوق نه | غافله | او نازل کړے مونږ | له آسمان نه

جوړ کړل او مونږ (دَ خپل) مخلوق نه بے خبره نۀ یُو۔ او مونږ له آسمان نه په یو اندازه

مَآءً بِقَدَرٍ فَاَسْكَنّٰهُ فِي الْاَرْضِ ق وَاِنَّا عَلٰى ذَهَابٍ بِهٖ

اُوبۀ | په اندازه | پس ځائے ورکړو مونږ دے ته | په زمکه کښے | او بیشکه مونږ | په لرے کولو | دَ دے (م)

اُوبۀ راوُورولے، بیا هغه مونږ په زمکه کښے راایسارے کړے، او بیشکه مونږ دَ دے په ختمولو باندې

لَقٰدِرُوْنَ ﴿١٨﴾ فَاَنْشَاْنَا لَكُمْ بِهٖ جَنّٰتٍ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّ

قادر یُو | بیا پیدا اکړل مونږ | تاسو دَ پاره | په دے سره | باغونه | دَ کجورو | او

هم قدرت لرو، بیا مونږ دَ دے (اوبو) په ذریعه تاسو دَ پاره دَ کجورو او انګورو باغونه

اَعْنَابٍ لَكُمْ فِيْهَا فَوَاكِهُ كَثِيْرَةٌ وَّمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ﴿١٩﴾ وَشَجَرَةً

دَ انګورو | تاسو دَ پاره | په دے کښے | میوے دی | ډیرے | او له دے نه | تاسو خورئ | او یوه اونه

پیدا اکړل، تاسو دَ پاره په دے کښے ډیرے میوے دی او له دے نه خوراکونه هم کوئ، او یوه بله اونه

تَخْرُجُ مِنْ طُوْرِ سَيْنَآءَ تَنْۢبُتُ بِالدُّهْنِ وَصِبْغٍ لِّلْاٰكِلِيْنَ ﴿٢٠﴾

چه راوځي | له طور سینا نه | هغه راټوکیږی | په تیلو | او اینګولی سره | دَ خوړونکو دَ پاره

ئے راپیدا اکړه چه په طور سینا کښے راټوکیږی، تیل په کښے پراته وی او دَ خوړونکو دَ پاره دَ اینګولی کار هم ورکوی

وَاِنَّ لَكُمْ فِي الْاَنْعَامِ لَعِبْرَةً ط نُسْقِيْكُمْ مِّمَّا فِيْ بُطُوْنِهَا

او بیشکه | تاسو دَ پاره | په چارپایانو کښے | عبرت دے | مونږ څښوُو تاسو ته | له هغۀ څۀ نه | چه دَ دوی په خیټو کښے دی

او تاسو له په څاروُو کښے هم دَ سبق اخستو موقع ده، مونږ په تاسو باندې دَ هغوی دَ خیټو نه څښوو او تاسو

وَلَكُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ كَثِيْرَةٌ وَّمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ﴿٢١﴾ وَعَلَيْهَا

او تاسو دَ پاره | په دے کښے | فائدے دی | ډیرے | او ځنے له دے نه | تاسو خورئ | او په دے باندې

له په دے کښے نورے ډیرے فائدے هم پرتے دی او له دے نه ځنے تاسو خورئ هم۔ او په دے څاروُ

وعلى الفلك تحملون ﴿۲۲﴾ ولقد ارسلنا نوحا الى قومه فقال

او په کشتو باندِ | تاسو سوروے شئ | او بیشکه رالیږلے وو موږ | نوح | د ده د قوم طرف ته | پس ده وویل

او په کشتئ باندِ تاسو سوروے شئ . او موږ نوح د ده د قوم طرف ته ولیږلو ، نو ده وویل چه

يقوم اعبدوا الله ما لكم من اله غيره افلا تتقون ﴿۲۳﴾

اے زما قومه! | عبادت کوئ | د الله | نشته دے ستاسو | بل څوک معبود | سیوا د هغهٔ نه | آیا تاسو نهٔ ویرېږئ

اے زما قومه! تاسو هم د الله تعالیٰ عبادت کوئ د هغهٔ نه سیوا ستاسو بل معبود نشته ، نو آیا تاسو نهٔ ویرېږئ .

فقال الملؤا الذين كفروا من قومه ما هذا الا بشر مثلكم

پس وویل | سردارانو | کوم چه | کافران وُو | د ده له قوم نه | چه نهٔ دے دا | مگر یو انسان | په شان ستا

نو د هغهٔ د قوم سردارانو وویل کوم چه کافران وو ، چه دے خو ستاسو په شان یو انسان دے .

يريد ان يتفضل عليكم ولو شاء الله لانزل ملئكة

غواړی | چه | فضیلت حاصل کړی | په تاسو باندِ | او که چرے غوښتلے | الله | نو رالیږلے به ئے وے | فرښتے

دے غواړی چه په تاسو باندِ خپل ځان اوچت کړی اوکهٔ الله تعالیٰ (رسولان رالیږل) غوښتلے نو فرښتے به ئے رالیږلے وے

ما سمعنا بهذا في ابائنا الاولين ﴿۲۴﴾ ان هو الا رجل به جنة

نهٔ ده آورېدلے موږ | دا خبره | په پلارانو زمونږ کښے | چه مخکښے تیر شوی دی | نهٔ دے هغه | مگر یو سړے | په کوم چه لیونتوب دے

موږ خو دا خبره د خپلو پخوانو مشرانو نه چرے آورېدلے قدرله هم نهٔ ده دے خو یو داسے سړے دے چه د لیونتوب اثر پرے راغلے دے

فتربصوا به حتى حين ﴿۲۵﴾ قال رب انصرني بما

پس انتظار وکړئ | د ده | ترڅهٔ موده پورے | ده وویل | اے زما ربه! | زما مدد وکړه | په دے چه

نو تر یو وخته ورته انتظار وکړئ ـــــ نوح دُعا وکړه چه اے زما ربه! زما مدد وکړه ځکه چه دوی

كذبون ﴿۲۶﴾ فاوحينا اليه ان اصنع الفلك باعيننا

دوی زهٔ دروغژن وګڼلم | پس موږ وحی وکړه | د ده طرف ته | چه تیاره کړه | کشتئ | زمونږ د سترګو په وړاندِ

زهٔ دروغژن وګڼلم . نو موږ ورته حکم ولیږلو چه ته زمونږ په نګرانئ کښے یوه کشتئ جوړه کړه او

ووحينا فاذا جاء امرنا وفار التنور فاسلك فيها من كل

او په حکم زمونږ | پس هر کله چه راشی | زمونږ حکم | او جوش ووهی تنور | نو کښینوه | په دے کښے | له هر قسم نه

زمونږ په حکم ئے جوړه کړه نو هر کله چه زمونږ حکم (د عذاب) راورسیږی او د مزکے نه اوبهٔ راوخوټیږی نو د هر قسم ځناور

زوجين اثنين واهلك الا من سبق عليه القول منهم

دوه جنسه (نر او ماده) | او خپل کور والا | سیوا | د هغه چا نه | چه وړاندِ شوے دے | په هغهٔ باندِ | حکم | له دوی نه

نه دوه دوه په کښے جوړئ کیږده او خپل کور والا هم ، خو هغه څوک په کښے مهٔ پریږده چه د ډوبیدو حکم پرے شوے دے

ولا تخاطبني في الذين ظلموا انهم مغرقون ﴿۲۷﴾ فاذا

او خبرے مهٔ کوه ماسره | د هغه چا په حقله | چه ظلم ئے کړے دے | بیشکه دوی | غرقیدونکی دی | پس هر کله چه

او د هغه خلقو په باره کښے ماسره خبره مهٔ کوه کوم چه ظالمان دی هغوئ به خامخا ډوبیږی ، نو بیا څهٔ وخت

اسْتَوَيْتَ اَنْتَ وَمَنْ مَّعَكَ عَلَى الْفُلْكِ فَقُلِ الْحَمْدُ

سم کښېنې | تهٔ | او څوک چه | تاسره دی | په کشتئ کښې | نو ووایه | تعریف ستائنه

چه تهٔ او ستا ملګری په بیړئ کښې ځائے ونیسئ نو تهٔ دا دُعا لوله چه د ھرے ثنا لائق اللّٰه پاک دے

لِلّٰهِ الَّذِیْ نَجّٰىنَا مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِیْنَ ﴿۲۸﴾ وَقُلْ رَّبِّ

اللّٰه دَپاره ده | کوم چه | نجات راکړو مونږ ته | قوم | د ظالمانو نه | او ووایه | اے زما ربه!

چه مونږ ئے د ظالم قوم نه راخلاص کړو. او دا دعا کوه چه اے زما ربه!

اَنْزِلْنِیْ مُنْزَلًا مُّبٰرَكًا وَّاَنْتَ خَیْرُ الْمُنْزِلِیْنَ ﴿۲۹﴾ اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ

راکوزکړه ما | په منزل | مبارک کښې | او تهٔ | ډیر ښهٔ | راکوزونکے یئے | بیشکه | په دے کښې

ما (د کشتئ نه) د برکت په ځائے باندې کوز کړه او تهٔ د ټولو نه ښهٔ کوزونکے یئے بیشکه په دے (واقعه) کښې ډیرے

لَاٰیٰتٍ وَّاِنْ كُنَّا لَمُبْتَلِیْنَ ﴿۳۰﴾ ثُمَّ اَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ قَرْنًا اٰخَرِیْنَ ﴿۳۱﴾

نخښے دی | او مونږ خو وو | امتحان کوونکی | بیا | مونږ پیدا کړله | پس له دوی نه | یوه بله ډله

(د عبرت) نخښے دی او مونږ خو ازمیښت کوونکی وو. بیا د دوی نه پس مونږ یو بل قوم راپیدا کړو.

فَاَرْسَلْنَا فِیْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ

بیا ولیږلو مونږ | په دوی کښې | یو پیغمبر | له دوی نه | چه عبادت کوئ | د اللّٰه | نشته دے ستاسو | بل څوک معبود

نو هغوئ ته مو د خپل (قوم) نه یو پیغمبر ورولیږلو (هغه پیغمبر ووئیل) چه تاسو د اللّٰه تعالیٰ عبادت کوئ، د هغهٔ نه سیوا

غَیْرُهٗ ؕ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿۳۲﴾ وَقَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِهِ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا

سیوا د هغه نه | پس آیا تاسو نهٔ ویریږئ | او ووئیل | سردارانو | د دهٔ له قوم نه | کوم چه | کافران وو

ستاسو بل معبود نشته نو آیا تاسو نهٔ ویریږئ؟ او د هغهٔ د قوم سردارانو ووئیل، کوم چه منکران وو

وَكَذَّبُوْا بِلِقَآءِ الْاٰخِرَةِ وَاَتْرَفْنٰهُمْ فِی الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا

او دروغ ئے ګڼړلو | ملاقات | د آخرت | او مونږ عیش و آرام ورکړے وو دوی ته | په ژوند | د دُنیا کښې

او د آخرت راتلل ئے دروغ ګڼړل او مونږ ورله په دنیا کښې د راحت او عیش سامانونه ورکړی وو.

مَا هٰذَاۤ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ۙ یَاْكُلُ مِمَّا تَاْكُلُوْنَ مِنْهُ

نهٔ دے دا | مګر | یو انسان | په شان ستاسو | خوری | له هغه څهٔ نه | چه تاسو ئے خورئ

چه دے خو ستاسو په شان یو سړے دے، هغه څهٔ خوری کوم چه تاسو خورئ،

وَیَشْرَبُ مِمَّا تَشْرَبُوْنَ ﴿۳۳﴾ ۙ وَلَئِنْ اَطَعْتُمْ بَشَرًا مِّثْلَكُمْ

او څښئ | له هغه څهٔ نه | چه څښئ ئے تاسو | او که چرے | تاسو خبره ومنله | د بنیادم | په شان ستاسو

او هغه څهٔ څښی کوم چه تاسو څښئ، او که تاسو د ځان غوندې د یو سړی فرمان په ځان ومنلو، نو

اِنَّكُمْ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ ﴿۳۴﴾ ۙ اَیَعِدُكُمْ اَنَّكُمْ اِذَا مِتُّمْ وَكُنْتُمْ

نو بیشکه تاسو به | دغه وخت | نقصان موندونکی یئ | آیا دے وعده کوی تاسره | چه هر کله تاسو | مړهٔ شئ | او شئ تاسو

بیا خو تاسو په سوده تاوان کښې پریوتلئ. دا سړے خو تاسو ته وائی چه هر کله تاسو مړهٔ شئ او خاورے

تُرَابًا وَّعِظَامًا اَنَّكُمْ مُّخْرَجُوْنَ ﴿٣٥﴾ هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ لِمَا

خاورے | او | هډوکی | نو تاسو به | (دوباره) راوویستلے شئ | لرے دے | لرے دے | هغه څیز چه

او هډوکی شئ ، نو بیا به (د نوی سره) راوویستلے شئ ـ (د عقل نه) ډیره لرے ده ډیره لرے ده ، دا

تُوْعَدُوْنَ ﴿٣٦﴾ اِنْ هِيَ اِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوْتُ وَنَحْيَا

تاسو سره ئے وعدہ کولے شی | (نور څه) نه دی | مګر | (هم دا) زمونږ ژوندے | د دُنیا | مونږ مرو | او مونږ ژوندی کیږو

وعده چه تاسو سره کولے شی ، زمونږ دا ژوند خو صرف هم د دنیا ژوند دے چه څوک مری او څوک پید اکیږی

وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوْثِيْنَ ﴿٣٧﴾ اِنْ هُوَ اِلَّا رَجُلُ ِۨافْتَرٰى

او نه به | یُو مونږ | دوباره راپاځولے شوی | نه دے | دے | مګر یو سړے | چه جوړوی

او مونږ به د مرګ نه پس (بیا) هیچرے نه راپاځو ـ دا خو یو داسے سړے دے چه په الله تعالیٰ باندے

عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا وَّمَا نَحْنُ لَهٗ بِمُؤْمِنِيْنَ ﴿٣٨﴾ قَالَ رَبِّ

په الله باندِ | دروغ | او نه یُو مونږ | د دهٔ | منونکی | دهٔ دوئیل | اے زما ربه!

دروغ جوړ کړی دی او مونږ هیڅ کله د دهٔ خبره منونکی نه یُو ـ نو (پیغمبر) دُعا وکړه چه اے زما ربه!

انْصُرْنِيْ بِمَا كَذَّبُوْنِ ﴿٣٩﴾ قَالَ عَمَّا قَلِيْلٍ لَّيُصْبِحُنَّ نٰدِمِيْنَ ﴿٤٠﴾

زما مدد وکړه | ځکه چه | دوی زهٔ دروغژن وګڼلم | وې فرمائیل | په لږه موده کښے | دوی به خامخا شی | پښیمانه

نه زما مدد وکړه ځکه چه دوی زهٔ دروغژن کړے یم ـ (الله ورته) ووئیل چه دا خلق به ډیر زر (په خپلو خبرو) پښیمانه شی

فَاَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ بِالْحَقِّ فَجَعَلْنٰهُمْ غُثَآءً فَبُعْدًا

پس ونیول دوئ | یو سخت آواز | په انصاف | پس کړل مونږ دوی | ریزه ریزه | پس لرے والے دے (د رحمت نه)

نو بیا یو سخت آواز په حقه هغوئ راونیول ، نو مونږ دوئ ریزه ریزه کړل او ظالمان خلق (د رحمت نه)

لِّلْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٤١﴾ ثُمَّ اَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ قُرُوْنًا اٰخَرِيْنَ ﴿٤٢﴾

ظالمانو خلقو د پاره | بیا | پیدا کړل مونږ | پس له دوی نه | امتونه | نور

ډیر لرے پریوتل ـ بیا مونږ د هغوئ نه پس څنے نور قومونه راپیدا کړل ـ

مَا تَسْبِقُ مِنْ اُمَّةٍ اَجَلَهَا وَمَا يَسْتَاْخِرُوْنَ ﴿٤٣﴾ ثُمَّ اَرْسَلْنَا

نه شی وړاندِ کیدے | هیڅ یو اُمت | له خپل مقرره وخت نه | او نه | وروستو پاتے کیدے شی | بیا | ولیږل مونږ

هیڅ یو امت د خپلے نیټے نه نهٔ خو وړاندِ تلے شی او نهٔ وروستو پاتے کیدے شی ، ورپسے مونږ خپل

رُسُلَنَا تَتْرَا ؕ كُلَّمَا جَآءَ اُمَّةً رَّسُوْلُهَا كَذَّبُوْهُ فَاَتْبَعْنَا

پیغمبران خپل | پرله پسے | هر کله چه به | راغے | یو اُمت ته | پیغمبر د هغوئ | نو دوی به دروغژن وګڼلو | پس راوستل مونږ

پیغمبران پرله پسے راولیږل ، څهٔ وخت چه به یو اُمت ته خپل پیغمبر ورغے نو هغوئ به دروغژن وګڼلو، نو

بَعْضَهُمْ بَعْضًا وَّجَعَلْنٰهُمْ اَحَادِيْثَ ۚ فَبُعْدًا لِّقَوْمٍ

څنے د دوی | په څنو پسے | او کړل مونږ دوی | قصے | پس لرے والے دے دوی | هغه خلقو له

مونږ هم (پیغمبران) یو په بل پسے ورولیږل او د هغے خلقو نه مو قصئ جوړے کړے نو چا چه ایمان نهٔ راوړو

لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۴۷﴾ ثُمَّ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى وَاَخَاهُ هٰرُوْنَ ۙ بِاٰيٰتِنَا

چه ایمان نه راوړي | بیا | ولیږلو مونږ | موسیٰ | او ورور د ده | هارون | خپلو معجزو

هغوئ (د رحمت نه) لرے پریوتل ـ بیا مونږ ه موسیٰ ؑ او د هغهٔ ورور هارون ؑ راولیږل د خپلو حکمونو

وَسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿۴۵﴾ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهٖ فَاسْتَكْبَرُوْا وَكَانُوْا

او دلیل | روښانه (سره) | طرف د فرعون نه | او د هغهٔ سردارانو نه | نو دوئ تکبر وکړو | او وو دوی

او د ښکاره دلیل سره ـ فرعون ته او د هغهٔ سردارانو ته ، مګر هغوئ تکبر وکړو او هغه (ډیر) سرکشه

قَوْمًا عَالِيْنَ ﴿۴۶﴾ فَقَالُوْا اَنُؤْمِنُ لِبَشَرَيْنِ مِثْلِنَا وَقَوْمُهُمَا

قوم | کبر کوونکی | پس دوی ووئیل | آیا مونږ ایمان راوړو | په دوؤ سړو | چه په شان زمونږ دی | او قوم د دوی

خلق وُو ـ نو هغوئ ووئیل چه آیا مونږ د (هیله بیله) د ځان غوندې په دوه کسانو باندې ایمان راوړو؟ حال دا

لَنَا عٰبِدُوْنَ ﴿۴۷﴾ فَكَذَّبُوْهُمَا فَكَانُوْا مِنَ الْمُهْلَكِيْنَ ﴿۴۸﴾ وَلَقَدْ

زمونږ | غلامان دی | پس دوی دروغژن وګڼل دا دواړه | نو دوی شول | له هلاکیدونکو نه | او بیشکه

چه د دوی د قوم خلق زمونږ غلامان دی نو هغوئ دواړه (پیغمبران) دروغژن وګڼل پس هغوئ هلاک کړے شول ، او

اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُوْنَ ﴿۴۹﴾ وَجَعَلْنَا

ورکړو مونږ | موسیٰ ؑ ته | کتاب | شاید چه دوی | سمه لار بیا مومی | او جوړ کړو مونږ

مونږ موسیٰ ؑ ته (تورات نومے) کتاب ورکړو چه خلق ترے نه سمه لار بیا مومی ، او مونږ د مریم ځوئ

ابْنَ مَرْيَمَ وَاُمَّهٗۤ اٰيَةً وَّاٰوَيْنٰهُمَاۤ اِلٰى رَبْوَةٍ ذَاتِ قَرَارٍ

ځوئ د مریم | او مور د ده | نخښه | او مونږ پناه ورکړه دواړو له | په یو اوچت ځائے | د استوګنے قابل

او د هغهٔ مور یوه غټه او ښکاره نخښه وګرځوله او هغوئ له مو په یوه اوچته زمکه پناه ورکړه چه د استوګنے

وَّمَعِيْنٍ ﴿۵۰﴾ يٰۤاَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوْا مِنَ الطَّيِّبٰتِ وَاعْمَلُوْا

او اوبو والا (زمکه کښے) | اے رسولانو ! | خورئ | له پاکیزه څیزونو نه | او عمل کوئ

قابله او جاری اوبو والا وه ـ اے زما پیغمبرانو ! تاسو ټول پاکیزه څیزونه خورئ او ټل د نیکئ کارونه

صَالِحًا ۭ اِنِّيْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ ﴿۵۱﴾ وَاِنَّ هٰذِهٖۤ اُمَّتُكُمْ

نیک | بیشکه زهٔ | په هغه څهٔ | چه تاسو کوئ | ښهٔ پوهیږم | او بیشکه | دا | ستاسو اُمت دے

کوئ ، زهٔ ستاسو په کارونو ښهٔ خبر یم ـ او بیشکه ستاسو دا اُمت هم یو

اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّاَنَا رَبُّكُمْ فَاتَّقُوْنِ ﴿۵۲﴾ فَتَقَطَّعُوْۤا اَمْرَهُمْ

اُمت | هم یو | او زهٔ | ستاسو رب یم | پس له ما نه ویریږئ | پس جُدا جُدا کړو دوی | خپل کار

اُمت دے ـ او زهٔ ستاسو رب یم نو تاسو زما (د نافرمانئ) نه وویریږئ ـ بیا خلقو د دین په معامله

بَيْنَهُمْ زُبُرًا ۭ كُلُّ حِزْبٍۢ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُوْنَ ﴿۵۳﴾

په خپل مینځ کښے | ټوټه ټوټه | هر یوه | ډله | په هغه څهٔ | چه دوی سره دی | خوشحاله دی

کښے خپل ځان جدا جدا کړو ، هر یوه ډله هم په خپله خبره باندې خوشحاله ده ـ

فَذَرْهُمْ فِي غَمْرَتِهِمْ حَتَّىٰ حِينٍ ﴿٥٤﴾ أَيَحْسَبُونَ أَنَّمَا

پس پریږده دوی | په غفلت دَدوی کښے | ترڅۀ موده پورے | آیا ګمان کوی دوی | چه هغه څۀ چه

نو ته دوئ تریو خاص وخته پورے په خپل غفلت کښے ډوب پریږده ، آیا دوئ دا ګمان کوی چه مونږ

نُمِدُّهُم بِهِ مِن مَّالٍ وَبَنِينَ ﴿٥٥﴾ نُسَارِعُ لَهُمْ فِي الْخَيْرَاتِ

مونږ مدد کوو دَدوی | په مال | او اولاد سره | مونږ تلوار کوو | دَدوی دَپاره | په ښیګړه کښے

دوئ له کوم مالونه او ځامن ورکوو ، نو دا ګنی مونږ ورته زر زر فائدے رسوو ؟ داخبره نۀ

بَل لَّا يَشْعُرُونَ ﴿٥٦﴾ إِنَّ الَّذِينَ هُم مِّنْ خَشْيَةِ رَبِّهِم

بلکه | دوی نۀ پوهیږی | بیشکه هغه چه | له ویرے | دَخپل رب نه

ده بلکه دوئ نۀ پوهیږی ۔ بیشکه څوک چه دَ خپل رب دَ هیبت نه اندیښنه

مُّشْفِقُونَ ﴿٥٧﴾ وَالَّذِينَ هُم بِآيَاتِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُونَ ﴿٥٨﴾ وَالَّذِينَ

ناقلاره دی | او هغه خلق | چه هغوئ په آیتونو | دَرب خپل | ایمان لری | او هغه خلق چه

ساتی ۔ او څوک چه دَ خپل رب په نخښو باندِ باور ساتی ۔ او څوک چه دَ

هُم بِرَبِّهِمْ لَا يُشْرِكُونَ ﴿٥٩﴾ وَالَّذِينَ يُؤْتُونَ مَا آتَوا وَّقُلُوبُهُمْ

هغوئ خپل رب سره | شریک نۀ مقرروی | او هغه خلق چه | ورکوی | هغه څۀ چه ورکوی | او زړونه دَدوی

خپل رب سره بل هیڅوک نۀ شریکوی ۔ او څوک چه ورکړه کوی څومره چه کوی ، او زړونه ئے دَ

وَجِلَةٌ أَنَّهُمْ إِلَىٰ رَبِّهِمْ رَاجِعُونَ ﴿٦٠﴾ أُولَٰئِكَ يُسَارِعُونَ

په ویره دی | چه دوی | دَخپل رب طرف ته | واپس تلونکی دی | هم دا خلق دی | چه تندی کوی

دے نه ترهه کوی چه دوی له یوه ورځ خپل رب طرف ته واپس تلل دی ۔ هم دغه خلق دی چه خپلے فائدے

فِي الْخَيْرَاتِ وَهُمْ لَهَا سَابِقُونَ ﴿٦١﴾ وَلَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا

په نیکو کارونو کښے | او دوی | طرف دَ هغے ته | وړاندِ کیدونکی دی | او تکلیف نۀ ورکوو مونږ | یو نفس ته | مګر دَ دۀ دَطاقت مطابق

په منډه منډه حاصلوی او هم دا خلق په دے کښے وړاندِ کیدونکی دی او مونږ په هیچا باندِ دَ وس نه زیات تکلیف نۀ

وَلَدَيْنَا كِتَابٌ يَنطِقُ بِالْحَقِّ ۚ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٦٢﴾ بَلْ

او مونږ سره | یو کتاب دے | چه بیان به کړی | حقه خبره | او په دوی به | ظلم نۀ شی کولے | بلکه

اَچوُو او مونږ سره یو کتاب دے چه همیشه حقه خبره ښائی او په خلقو به دَ یوے ذرے هومره ظلم نۀ کیږی

قُلُوبُهُمْ فِي غَمْرَةٍ مِّنْ هَٰذَا وَلَهُمْ أَعْمَالٌ مِّن دُونِ

دَدوی زړونه | په غفلت کښے دی | له دے نه | او دوی دَپاره | (نور) عملونه دی | علاوه

نا بلکه دَ دے کافرانو زړونه دَ دین دَ طرف نه غافل پراته دی ، او دَ دے نه علاوه څۀ نور (خراب) کارونه

ذَٰلِكَ هُمْ لَهَا عَامِلُونَ ﴿٦٣﴾ حَتَّىٰ إِذَا أَخَذْنَا مُتْرَفِيهِم

دَدے (غفلت) نه | چه دوی هغه | کوی | تردے چه | هر کله | مونږ ونیسو | دَدوی خوشحاله خلق

دی چه دا خلق ئے کوی ، تردے چه هر کله مونږ دَ دوی مالداره خلق په عذاب کښے

بِالْعَذَابِ اِذَا هُمْ يَجْـَٔرُوْنَ ﴿٦٤﴾ لَا تَجْـَٔرُوا الْيَوْمَ اِنَّكُمْ مِّنَّا

په عذاب کښې | نو ناګهانه به دوی | فریاد کوی | فریاد مه کوئ | نن ورځ | بیشکه تاسو به | زمونږ له طرفه

را ونیسو، نو دوئ دغه وخت چغې کړی (ورته به وویلے شی) چه نن چغې مه وهئ ولے چه زمونږ له طرفه

لَا تُنْصَرُوْنَ ﴿٦٥﴾ قَدْ كَانَتْ اٰيٰتِيْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ فَكُنْتُمْ عَلٰٓى اَعْقَابِكُمْ

مدد نه شی درکولے | بیشکه | وو آیتونه زمونږ | چه لوستلے به شول | په تاسو | نو تاسو به | په پوندو خپلو

نه به ستاسو مدد نه کیږی، زما آیتونه به تاسو ته لوستلے شول، نو تاسو به ترے نه مخ په شا

تَنْكِصُوْنَ ﴿٦٦﴾ مُسْتَكْبِرِيْنَ بِهٖ سٰمِرًا تَهْجُرُوْنَ ﴿٦٧﴾ اَفَلَمْ يَدَّبَّرُوا

بیرته ګرځیدلئ | کبر کوونکی | په دے قرآن | په افسانه مشغول شوی | تاسو به پریښودلو | پس آیا دوئ غور نه کوی

تښتیدلئ، غرور به مو کولو، قصې به مو ترے نه جوړولے، بیهوده به لګیاوئ. آیا دوی په دے

الْقَوْلَ اَمْ جَآءَهُمْ مَّا لَمْ يَاْتِ اٰبَآءَهُمُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿٦٨﴾ اَمْ لَمْ يَعْرِفُوْا

په دے کلام کښې | یا راغلی دی دوی ته | هغه څه چه نه وو راغلی | پلارانو د دوی | پخوانو ته | یا دوئ نه پیژندلو دوی

کلام باندے غور ونه کړو یا دوئ ته داسے څه علم راغلے دے چه د دوئ پلارانو مشرانو ته نه وو راغلے. یا دوئ خپل

رَسُوْلَهُمْ فَهُمْ لَهٗ مُنْكِرُوْنَ ﴿٦٩﴾ اَمْ يَقُوْلُوْنَ بِهٖ جِنَّةٌ

پیغمبر خپل | پس دوی | له هغه نه | انکار کوی؟ | یا | دوی وائی چه | په ده | لیونتوب دے

پیغمبر ونه پیژندلو او د دے په وجه دوی منکر پاتے شول یا دوی داوائی چه دے سودائی دے؟

بَلْ جَآءَهُمْ بِالْحَقِّ وَاَكْثَرُهُمْ لِلْحَقِّ كٰرِهُوْنَ ﴿٧٠﴾ وَلَوِ اتَّبَعَ

بلکه | ده خو راوړے دے دوی ته | حق | او اکثر له دوی نه | حق | نه خوښوی | او که چرے پیروی کوے

نا بلکه هغه خو ورته رښتینے خبره راوړے ده او په دوئ کښے په اکثرو خلقو باندے رښتیا بدلګی او که چرے رښتینے

الْحَقُّ اَهْوَآءَهُمْ لَفَسَدَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ وَمَنْ فِيْهِنَّ بَلْ

حق | د دوی د خواهشونو | نو بے انتظامه شوی به وو | آسمانونه | او زمکه | او څوک چه په مینځ د دوی کښے دی بلکه

خدائے پاک د دوئ په خوښه تلے وے نو آسمانونه او زمکه او څه چه په دے کښے دی تباه شوی به وو، بلکه

اَتَيْنٰهُمْ بِذِكْرِهِمْ فَهُمْ عَنْ ذِكْرِهِمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿٧١﴾ اَمْ تَسْـَٔلُهُمْ

ورکړے دے مونږ دوی ته | د دوی نصیحت | پس دوی | د خپل نصیحت نه | مخ اړوی | یا ته غواړے له دوی نه

مونږ خو دوئ ته سود منده خبره ورولیږله خو دوئ د سود منده خبرے نه مخ اړوی آیا ته د دوئ

خَرْجًا فَخَرَاجُ رَبِّكَ خَيْرٌ وَّهُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿٧٢﴾

څه مزدوری؟ | پس مزدوری | ستا د رب | غوره ده | او دے | ډیر ښه | رزق ورکوونکے دے

نه څه معاوضه غواړے معاوضه خو ستا د رب د طرف نه ښه ده او هغه د ټولو نه ښه رزق ورکوونکے دے

وَاِنَّكَ لَتَدْعُوْهُمْ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٧٣﴾ وَاِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ

او بیشکه ته | رابلے دوی | طرف د لارے سمے ته | او بیشکه | کوم خلق چه | ایمان نه راوړی

او بیشکه ته دوی سمے لارے طرف ته رابلے ... او بیشکه هغه خلق چه په آخرت باندے

الربع

بِالْاٰخِرَةِ عَنِ الصِّرَاطِ لَنٰكِبُوْنَ ﴿٧٤﴾ وَلَوْ رَحِمْنٰهُمْ وَكَشَفْنَا مَا بِهِمْ

په آخرت باندې | له دغې لارې نه | یو طرف ته شوي دي | او که چېرې مونږ رحم وکړو په دوی | او لرې کړو | څه چه په دوی دي
ایمان نه لري، (هغوی د دغه سمې) لارې نه بې لارې شوي دي او که مونږ په دوی باندې رحم وکړو او د دوی تکلیفونه

مِّنْ ضُرٍّ لَّلَجُّوْا فِیْ طُغْیَانِهِمْ یَعْمَهُوْنَ ﴿٧٥﴾ وَلَقَدْ اَخَذْنٰهُمْ

تکلیف | نو خامخا به ټینګ وي دوی | په خپله سرکشۍ کښې | سرګردانه شوي | او بیشکه ونیول مونږ دوی
لرې کړو، نو بیا به هم دوی په خپله ګمراهۍ کښې سرګردانه وي. او مونږ دوی په عذاب

بِالْعَذَابِ فَمَا اسْتَكَانُوْا لِرَبِّهِمْ وَمَا یَتَضَرَّعُوْنَ ﴿٧٦﴾ حَتّٰۤى

په عذاب کښې | پس ونه کړله دوی عاجزي | د رب خپل نه | او نه زاري وکړله دوی | تر دې چه
کښې راګیر کړي وو، خو بیا هم نه خپل رب ته ټیټ شول او نه ئې ورته زاري وکړه. تر دې چه هر کله

اِذَا فَتَحْنَا عَلَیْهِمْ بَابًا ذَا عَذَابٍ شَدِیْدٍ اِذَا هُمْ فِیْهِ مُبْلِسُوْنَ ﴿٧٧﴾

پرانستله مونږ | په دوی باندې | دروازه | د عذاب | سخت نو دغه وخت دوی | په دې کښې | نا امیده شول
مونږ په دوی باندې د سخت عذاب دروازه پرانستله نو بیا دوی په دې کښې نا امیده شول.

وَهُوَ الَّذِیْۤ اَنْشَاَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ ؕ قَلِیْلًا مَّا

او الله هم هغه دې چا چه | پیدا کړل تاسو د پاره | غوږونه | او سترګې | او زړونه | ډیر لږ
او الله تعالیٰ هغه ذات دې چه تاسو له ئې غوږونه، سترګې او زړونه درکړل، خو تاسو ډیر

تَشْكُرُوْنَ ﴿٧٨﴾ وَهُوَ الَّذِیْ ذَرَاَكُمْ فِی الْاَرْضِ وَاِلَیْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿٧٩﴾

تاسو شکر کوئ | او هم هغه دې چا چه | خواره کړي تاسو | په زمکه کښې | او طرف د هغه ته به | تاسو جمع کولے شئ
کم شکر کوئ. او الله تعالیٰ هغه ذات دې چه تاسو ئې د زمکې په مخ خواره کړي یئ او هم د هغه طرف ته به تاسو جمع

وَهُوَ الَّذِیْ یُحْیٖ وَیُمِیْتُ وَلَهُ اخْتِلَافُ الَّیْلِ

او دې هغه ذات دې | چه ژوندي کوي | او مړه کوي | او هم د ده (اختیار) دې | بدلول | د شپې
کولے شئ او هم هغه دې چه ژوند درکوي او وژل کوي او د شپې ورځې اړول راړول د هغه په

وَالنَّهَارِ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿٨٠﴾ بَلْ قَالُوْا مِثْلَ مَا قَالَ

او د ورځې | پس آیا تاسو عقل نه لرئ | بلکه | دوی ووئیل | په شان | د هغه څه چه | وئیلي وو
قدرت کښې دي، نو آیا تاسو د عقل نه کار نه اخلئ؟ بلکه دا خلق هم هغسې خبرې کوي لکه چه پخوانو

الْاَوَّلُوْنَ ﴿٨١﴾ قَالُوْۤا ءَاِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَّعِظَامًا ءَاِنَّا

پخوانو خلقو | دوی وائي | آیا هر کله چه مونږ مړه شو | او شو مونږ | خاورې | او هډوکي | آیا مونږ به
(کافرانو) کړي دي. دوی وائي چه هر کله مونږ مړه شو او خاورې او هډوکي شو، نو آیا لا بیا به

لَمَبْعُوْثُوْنَ ﴿٨٢﴾ لَقَدْ وُعِدْنَا نَحْنُ وَاٰبَآؤُنَا هٰذَا مِنْ قَبْلُ

(دوباره) راپاڅولے شو | بیشکه | وعده شوې ده | مونږ سره | او د پلارانو زمونږ سره | هم دا | وړاندې له دې نه
ژوندي راپاڅولے شو؟ دا سې وعدې خو مونږ سره او زمونږ مشرانو سره پخوا را سې کیږي

إِنْ هَٰذَآ إِلَّآ أَسَٰطِيرُ ٱلْأَوَّلِينَ ﴿٨٣﴾ قُل لِّمَنِ ٱلْأَرْضُ

نۀ دی دا | مګر | قصے | دَ پخوانو خلقو | ووایه | دَ چا ده | زمکه

دا تول هیڅ هم نۀ دی تشے دَ پخوانو خلقو بے سنده خبرے دی۔ (اے پیغمبره!) تۀ ورته ووایه چه بشرا دا

وَمَن فِيهَآ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٨٤﴾ سَيَقُولُونَ لِلَّهِ ۚ قُلْ

او هغه څه | چه په دې کښے دی | کۀ چرے تاسو پوهیږئ؟ | دوی به زر وائی | دَ الله | ووایه

زمکه او دَ دے دَ پاسه ؤسیدونکی خلق تول دَ چا (مخلوق) دی کۀ تاسو ترڅۀ خبریږئ؟ دوی به ضرور دوائی چه دا تول دَ

أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٨٥﴾ قُلْ مَن رَّبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ ٱلسَّبْعِ وَرَبُّ

پس آیا نۀ | قبلوئ تاسو نصیحت | ووایه | څوک دے | رب | دَ اوؤ آسمانونو | او رب

الله (مخلوق) دی نو ورته ووایه چه بیا نو بیا فکر پرے ولے نۀ کوئ؟ ورته ووایه! چه دَ اوو واړو آسمانونو رب څوک دے او د لوئے

ٱلْعَرْشِ ٱلْعَظِيمِ ﴿٨٦﴾ سَيَقُولُونَ لِلَّهِ ۚ قُلْ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴿٨٧﴾

دَ عرش | عظیم | دوی به زر وائی | الله | ووایه | پس آیا تاسو نۀ ویریږئ؟

عرش خاوند څوک دے؟ دوی به جواب ورکړی چه دا هرڅۀ دَ الله دی نو ورته ووایه چه تاسو ترے نه ولے نۀ ویریږئ

قُلْ مَنۢ بِيَدِهِۦ مَلَكُوتُ كُلِّ شَىْءٍ وَهُوَ يُجِيرُ وَلَا يُجَارُ

ووایه | څوک دے | چه په لاس کښے هغۀ کښے | حکومت | دَ هر څیز دے | او هم هغه پناه ورکوی | او نۀ شی پناه ورکیدے

ورته ووایه چه هغه څوک دے چه دَ هغۀ په لاس کښے دَ هر څیز واک اختیار دے او هغه پناه ورکوی او دَ هغۀ په مقابله

عَلَيْهِ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٨٨﴾ سَيَقُولُونَ لِلَّهِ ۚ قُلْ فَأَنَّىٰ

دَ هغۀ خلاف | کۀ چرے تاسو پوهیږئ؟ | زر به دوی وائی | الله | ووایه | بیا دَ کوم ځائے نه

کښے څوک چا له پناه نۀ شی ورکولے کۀ چرے تاسو پوهیږئ (نو ووایئ) نو دوی به فوراً ووائی الله! نو ورته ووایه چه

تُسْحَرُونَ ﴿٨٩﴾ بَلْ أَتَيْنَٰهُم بِٱلْحَقِّ وَإِنَّهُمْ لَكَٰذِبُونَ ﴿٩٠﴾

په تاسو جادو کولے شی | بلکه | راوړے مونږ دوی ته | حقه خبره | او بیشکه دوی | دروغژن دی۔

بیا په تاسو له کومے غاړے نه جادو وشی؟ بلکه مونږ دوی ته حقه خبره رسولے ده او دوی یقیناً دروغژن دی۔

مَا ٱتَّخَذَ ٱللَّهُ مِن وَلَدٍ وَمَا كَانَ مَعَهُۥ مِنْ إِلَٰهٍ ۚ إِذًا

نۀ دے نیولے | الله | هیڅ اولاد | او نشته دے | دَ ده سره | څوک بل معبود | دغه وخت به

الله تعالیٰ هیڅوک ځان له ځوئے کړے نۀ دے او نۀ هغه سره بل معبود شریک شته، کۀ داسے وے

لَّذَهَبَ كُلُّ إِلَٰهٍۭ بِمَا خَلَقَ وَلَعَلَا بَعْضُهُمْ

وړل | هر | معبود | څۀ چه هغۀ پیدا کړی وو | او غالب به راتلو | یو په دوی کښے

نو هر یو معبود به خپل مخلوق ځان له بیل کړے وو ، او بیا به ئے په یو بل باندِ حملے

عَلَىٰ بَعْضٍ ۚ سُبْحَٰنَ ٱللَّهِ عَمَّا يَصِفُونَ ﴿٩١﴾ عَٰلِمِ

په بل باند | پاک دے | الله | له هغه څۀ نه | چه دوی ئے بیانوی | پوهه دے

کولے۔ الله تعالیٰ دَ هغه خبرو نه پاک دے کومے چه دوی دَ هغۀ په حقله بیانوی هغه په پټو

الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿۹۲﴾ قُلْ

په پټو | او په ښکاره (خبرو) | پس ډیر اوچت دے | له هغه څه نه | چه شریکوی ئے دوی | ته ووایه

او په څرګندو ټولو خبرو باندې ډیر ښه پوهه دے، غرض دا چه د دوی د شرک د خبرو نه پاک دے (اے پیغمبره!) ته

رَّبِّ اِمَّا تُرِيَنِّيْ مَا يُوْعَدُوْنَ ﴿۹۳﴾ رَبِّ

چه اے زما ربه! | که چرے | ته ووښائے ما ته | هغه (عذاب) | د کوم چه دوی سره وعده کولے شی | اے زما ربه

ووایه چه اے زما ربه! که ته ما ته هغه عذاب ښودل غواړے د کوم چه دوی سره وعده شوے ده نو اے

فَلَا تَجْعَلْنِيْ فِي الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۹۴﴾ وَاِنَّا عَلٰٓى اَنْ نُّرِيَكَ

نو مه شاملوه ما | په قوم د ظالمانو کښے | او بیشکه مونږ | په دے چه | وښایو تا ته

زما ربه! ما په دے ظالمانو کښے مه شاملوه۔ او مونږ په دے خبره پوره قدرت لرو چه کوم

مَا نَعِدُهُمْ لَقٰدِرُوْنَ ﴿۹۵﴾ اِدْفَعْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ

هغه څه چه وعده کوو دوی سره | قادر یو | مقابله وکړه | په داسے طریقه | چه ډیره ښه ده

وعده مونږ د دوی سره کوو هغه تا ته هم وښایو۔ (اے پیغمبره!) ته د بدے خبرے په جواب کښے هغه وایه کوم

السَّيِّئَةَ ۭ نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا يَصِفُوْنَ ﴿۹۶﴾ وَقُلْ رَّبِّ اَعُوْذُ بِكَ

د بدئ | مونږ | ډیر ښه پوهیږو | په هغه څه چه دوی بیانوی | او ووایه | اے ربه زما! | زه پناه غواړم ستا

چه غوره ده او څه چه دوی بیانوی هغه مونږ ته ډیر ښه معلوم دی او دعا وکړه چه اے زما ربه! زه د شیطانانو له

مِنْ هَمَزٰتِ الشَّيٰطِيْنِ ﴿۹۷﴾ وَاَعُوْذُ بِكَ رَبِّ اَنْ يَّحْضُرُوْنِ ﴿۹۸﴾

وسوسو نه | د شیطانانو | او زه پناه غواړم ستا | اے زما ربه! | چه دوی راشی ما ته

وسوسو نه تا سره پناه غواړم۔ او اے زما ربه! زه له دے خبرے نه هم ستا پناه غواړم چه هغوئ ما له راشی

حَتّٰٓى اِذَا جَآءَ اَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ رَبِّ ارْجِعُوْنِ ﴿۹۹﴾

تر دے چه | هر کله راشی | یو ته له دوی نه | مرګ | نو وائی به | اے زما ربه! | بیرته واګرځوه ما

تر دے چه هر کله په دوی کښے چا له مرګ راشی نو وائی اے زما ربه! ما دوباره دنیا ته واستوه۔

لَعَلِّيْٓ اَعْمَلُ صَالِحًا فِيْمَا تَرَكْتُ كَلَّا ۭ اِنَّهَا كَلِمَةٌ هُوَ

کیدے شی چه | زه عمل وکړم | نیک | په هغې (دنیا) کښے | چه پریښے ده ما | هیڅ کله نه | دا خو یوه خبره ده | چه دے

د پاره د دے چه کومه (دنیا) ما پریښے ده په هغې کښے څه نیک کار وکړم! هیڅ کله نه۔ دا خو هسے یوه خبره ده

قَآئِلُهَا ۭ وَمِنْ وَّرَآئِهِمْ بَرْزَخٌ اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ ﴿۱۰۰﴾

ویونکے د هغې دے | او د دوی د وړاندې (خو) | یوه پرده ده | تر هغې ورځے پورے چه | دوی به (دوباره) راپاڅولے شی

چه دغه کافر ئے وائی او د دوی مخے ته به یوه پرده وی تر هغه وخته پورے چه هر کله دوی دوباره راژوندی کړے

فَاِذَا نُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَلَآ اَنْسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ وَّلَا يَتَسَآءَلُوْنَ ﴿۱۰۱﴾

پس هر کله چه پوک کړے وشی | په شپیلئ کښے | نو نه به رشتے وی | د دوی په مینځ کښے | په دغه ورځ | او نه به څوک د یو بل پوښتنه کوی

شی، نو څه وخت چه شپیلئ پوک وهلے شی نو نه به د دوی تر مینځه خپلولئ پاتے وی او نه به څوک د چا پوښتنه کوی

فَمَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِيْنُهٗ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۱۰۲﴾ وَمَنْ

پس دَچاچه | درنه شوله | تله (دَنيکو) | نو هم هغه به وی | کامیاب | او دَچاچه

خو چه دَچا (دَعمل) تله درنه شی نو هغه کسان به کامیاب شی - او دَچاچه (دَعمل

خَفَّتْ مَوَازِيْنُهٗ فَاُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ

سپکه شوه | تله (دَنيکو) | پس هم دغه خلق دی | کوموچه | نقصان کړے دُساتل | خپل ځانونه

تله سپکه پاتے شی ، نو دا هغه خلق دی چه خپل ځانونه ئے دَخپله لاسه ببلودل ، او

فِيْ جَهَنَّمَ خٰلِدُوْنَ ﴿۱۰۳﴾ تَلْفَحُ وُجُوْهَهُمُ النَّارُ وَهُمْ فِيْهَا

په دوزخ کښے به | دوی همیشه اُوسیږی | دُبه سوزوی | مخونه دَدوی | اور | او دوی به | په دے کښے

همیشه به په دوزخ کښے اوسیږی (دَدوزخ) اور به دَدوئی مخونه وُسوزوی او هلته به دَدوی مخونه وران

كٰلِحُوْنَ ﴿۱۰۴﴾ اَلَمْ تَكُنْ اٰيٰتِيْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ فَكُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُوْنَ ﴿۱۰۵﴾

بد صورته وی | آیا زما ایتونه نهٔ شول لوستلے | په تاسو | خو تاسو به هغه | دروغ گڼړل

شی - آیا زما حکمونه به تاسو ته نهٔ شو آوړولے ؟ او تاسو به هغه دروغژن گڼړل -

قَالُوْا رَبَّنَا غَلَبَتْ عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا وَكُنَّا قَوْمًا ضَآلِّيْنَ ﴿۱۰۶﴾

دوئ به وائی | اے زمونږ ربه ! | غالبه شوه | په مونږ باندې | بد بختئ زمونږه | او وُو مونږه | یوه ډله | بے لارے -

هغوئ به وائی چه اے زمونږه ربه ! مونږه خپلے بد بختئ راګیر کړی وو او مونږ دَلارے نه بے لارے شوی خلق وُو -

رَبَّنَآ اَخْرِجْنَا مِنْهَا فَاِنْ عُدْنَا فَاِنَّا ظٰلِمُوْنَ ﴿۱۰۷﴾ قَالَ

اے زمونږه ربه | وُباسه مونږ | له دے نه | بیا که چرے | مونږ دوباره وکړو | نو بیشکه مونږ به | ظالمان یُو | دُبه فرمائی

اے زمونږه ربه ! اوس مونږ دَدے دوزخ نه اُوباسه که مونږ دوباره داسے کارونه وُکړو نو بیشکه مونږ به ظالمان یُو الله تعالیٰ به

اخْسَئُوْا فِيْهَا وَلَا تُكَلِّمُوْنِ ﴿۱۰۸﴾ اِنَّهٗ كَانَ فَرِيْقٌ مِّنْ عِبَادِيْ

لرے شئ تاسو | هم په دے کښے به یئ | او ماسره خبرے مهٔ کوئ | بیشکه هغه | وه | یوه ډله | زما له بندګانو نه

وُفرمائی چه لرے شئ هم په دے کښے پراته وُسئ او ما سره خبرے مهٔ کوئ ، حقیقت دادے چه زما دَبندګانو یوه ډله وه چه دا

يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اٰمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا وَاَنْتَ خَيْرُ

دوی به وئیل | اے زمونږه ربه ! | مونږ ایمان راوړو | پس وُبخښه | مونږ | او رحم وکړه په مونږ | او ته | دَټولو نه بنهٔ

دُعا به ئے کوله چه اے زمونږ ربه ! مونږ ایمان راوړے دے نو ته مُونږ ته بخښنه وکړه او رحم رایاندِ وکړه او ته دَهر چا نه زیات

الرّٰحِمِيْنَ ﴿۱۰۹﴾ فَاتَّخَذْتُمُوْهُمْ سِخْرِيًّا حَتّٰٓى اَنْسَوْكُمْ ذِكْرِيْ

رحم کوونکے یئے | نو کولے به تاسو دَهغوئ سره | ټوقے | تردے چه | دوی هیر کړو تاسو نه | زما یاد

رحم کوونکے یئے ، نو تاسو هغوئ پورے ټوقے وکړے تردے چه (دغے مشغولا) درنه زهٔ هم هیر کړم

وَكُنْتُمْ مِّنْهُمْ تَضْحَكُوْنَ ﴿۱۱۰﴾ اِنِّيْ جَزَيْتُهُمُ الْيَوْمَ بِمَا صَبَرُوْٓا

او تاسو به | هغوئ پورے | خندا کوله | بیشکه ما | بدله ورکړه دوی ته | نن ورځ | په بدله کښے دَدوئ دَصبر

او تاسو لګیا وئ په هغوئ پورے موخندا کولے . نن ما هغوئ ته دَصبر بدله داورکړه چه یوازے

اَنَّهُمْ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ﴿١١١﴾ قٰلَ كَمْ لَبِثْتُمْ فِى الْاَرْضِ عَدَدَ

هم دوی دی | مرادته رسیدونکی | وبه وائی (الله) | څومره موده | پاتے شوی وئ تاسو | په زمکه کښے | په شمیر

هغوئ (رسم پوره) کامیاب شول. ورته به وائی چه (بنه) تاسو د کلونو په حساب څومره موده په زمکه

سِنِيْنَ ﴿١١٢﴾ قَالُوْا لَبِثْنَا يَوْمًا اَوْ بَعْضَ يَوْمٍ فَسْـَٔلِ الْعَآدِّيْنَ ﴿١١٣﴾

د کلونو | دوئ به ووائی | پاتے شو مونږ | یوه ورځ | یا څه | د ورځے | پس تپوس وکړه | له شمیرکوونکو نه

استوګن پاتے وئ؟ هغوئ به ووائی چه یوه ورځ قدربه پاتے وو یادورځے لږه حصه یه وه، د شمیرکوونکو (فرښتو) نه تپوس

قٰلَ اِنْ لَّبِثْتُمْ اِلَّا قَلِيْلًا لَّوْ اَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿١١٤﴾ اَفَحَسِبْتُمْ

وئیه فرمائی | نهٔ وئ پاتے شوی تاسو | مګر | لږه موده | کاش چه تاسو | پوهیدلے | پس آیا تاسو خیال کړے وو

وکړه، (الله به) وفرمائی چه تاسو (په دنیا کښے) ډیره نه بلکه لږه موده پاتے وئ که تاسو پوهیږئ. آیا ستاسو دا خیال وو

اَنَّمَا خَلَقْنٰكُمْ عَبَثًا وَّاَنَّكُمْ اِلَيْنَا لَا تُرْجَعُوْنَ ﴿١١٥﴾ فَتَعٰلَى

چه بیشکه | مونږ پیدا کړی وئ تاسو | بے کاره | او چه تاسو به | زمونږ طرف ته | نهٔ شئ راګرځولے | پس ډیر اوچت دے

چه مونږ تاسو بے فائدے پیدا کړی یئ او دا چه تاسو به زمونږ طرف ته واپس نهٔ راګرځئ. هغه الله چه بادشاه

اللّٰهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ ۚ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيْمِ ﴿١١٦﴾

الله | بادشاه | حقیقی | نشته دے بل څوک معبود | سیوا د هغهٔ نه | مالک دے | د عرش | قدرمند

حقیقی دے د هغهٔ شان اوچت دے د هغهٔ نه سیوا بل معبود نشته، هغه د عزت والا د عرش مالک دے.

وَمَنْ يَّدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ ۙ لَا بُرْهَانَ لَهٗ بِهٖ ۙ فَاِنَّمَا

او څوک چه | وبلی | الله سره | معبود بل | چه نشته دے هغهٔ دلیل | د ده سره | د دے | نو بیشکه چه

او څوک چه د الله سره د بل معبود بلنه کوی ـــــ ، سره د دے چه هیڅ دلیل ورسره پرے نشته نو د هغهٔ

حِسَابُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ ؕ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿١١٧﴾ وَقُلْ رَّبِّ

حساب د دهٔ | د ده د رب سره دے | بیشکه خلاصے به نهٔ مومی | کافران خلق | او ووایه | اے زما ربه!

حساب به خامخا د خپل رب سره کیږی، دا یقینی ده چه کافران کامیابیدے نهٔ شی او ته دا ووایه چه اے زما ربه!

اغْفِرْ وَارْحَمْ وَاَنْتَ خَيْرُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿١١٨﴾

عفوه وکړه | او رحم وکړه | او تهٔ | د ټولو نه بنهٔ | رحم کوونکے یئ.

ما وبخښه او په ما رحم وکړه او تهٔ د ټولو نه بنهٔ رحم کوونکے یئ.

سُوْرَةُ النُّوْرِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ اَرْبَعٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَّسِتُّوْنَ اٰيَةً وَّتِسْعُ رُكُوْعَاتٍ

سورة نور په مدینه کښے نازل شو په | (شروع) د الله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | دے کښے ٦٤ آیتونه او ٩ رکوع ګانی

د الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم خاوند دے

سُوْرَةٌ اَنْزَلْنٰهَا وَفَرَضْنٰهَا وَاَنْزَلْنَا فِيْهَآ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ

دا یو سورت دے | چه نازل کړے دے مونږ دا | او فرض کړے دے مونږ دا | او نازل کړل مونږ | په دے کښے | آیتونه | واضح

دا یو سورت دے کوم چه مونږ نازل کړو او د دے (حکمونه مو په تاسو) فرض کړل او په دے کښے موصفا صفا حکمونه نازل کړل

لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ۝١ اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِيْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ

کېږي د دې چه تاسو | نصیحت حاصل کړئ | زناکاره ښځه | او زناکار سړے | پس ووهئ | هر | یو

چه تاسو نصیحت حاصل کړئ ، زناکاره ښځه او زناکار سړے په دواړو کښے هر یو

مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ ۖ وَّلَا تَاْخُذْكُمْ بِهِمَا رَاْفَةٌ

له دوی نه | سل | دُورے | او نه دِ | راځی ستاسو | په دواړو بانډِ | رحم

سل سل دُورے وَهئ ، او ستاسو دِ په دے دواړو بانډِ دَ الله تعالیٰ په حکم

فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۚ

دَ الله په دین کښے | که چرے تاسو | ایمان لرئ | په الله بانډِ | او په ورځ | دَ آخرت

چلولو کښے هیڅ ترس نه راځی ، که چرے تاسو په الله تعالیٰ او دَ قیامت په ورځ باور لرئ ۔

وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَآئِفَةٌ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۝٢ اَلزَّانِيْ لَا يَنْكِحُ

او پکار دَه چه حاضر وي | عذاب دَ دوی ته | یوه ډله | دَ مسلمانانو | زناکار سړے | نکاح نه کوی

او پکار دی چه دَ دِے دواړو تنو سزا ته دِ دَ مسلمانانو یو ټولے حاضر (ولاړ) وی، زناکار سړے زناکارے ښځے یا

اِلَّا زَانِيَةً اَوْ مُشْرِكَةً ۫ وَّالزَّانِيَةُ لَا يَنْكِحُهَآ اِلَّا زَانٍ

مگر دَ زناکارے ښځے | یا مشرکے ښځے سره | او زناکاره ښځه | نکاح نه کوی دَ سره | مگر زناکار

مشرکے ښځے نه سیوا بل چا سره واده نه کوی او زناکارے ښځے سره هم بغیر دَ زناکار سړی یا مشرک سړی نه

اَوْ مُشْرِكٌ ۚ وَحُرِّمَ ذٰلِكَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ ۝٣ وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ

یا مشرک سړے | او حرام شوے دے | دا کار | په مؤمنانو | او کوم خلق چه | تهمت لگوی

بل څوک نکاح نه کوی او دا عمل مؤمنانو دَ پاره حرام مقرر کړے شوے دے او هغه خلق چه په پاک لمنو

الْمُحْصَنٰتِ ثُمَّ لَمْ يَاْتُوْا بِاَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ فَاجْلِدُوْهُمْ

په پاک لمنو ښځو بانډِ | بیا | نه راولی دوی | څلور | گواهان | پس ووهئ دوی

ښځو بانډِ تهمتونه ولگوی ، بیا څلور گواهان (پرے بانډِ) پیش نه کړے شی ، نو هغوئ اتیا

ثَمٰنِيْنَ جَلْدَةً وَّلَا تَقْبَلُوْا لَهُمْ شَهَادَةً اَبَدًا ۚ وَاُولٰٓئِكَ

اتیا | دُورے | او مه قبلوئ | دَ دوی | گواهی | چرے (هم) | او هم دا خلق

دُرے ووهئ ، او بیا هیچرے دَ هغوئ هیڅ گواهی مه قبلوئ ، او هم دغه خلق

هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ۝٤ اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ

فاسقان دی | مگر | کوم خلق چه | توبه وکړی | پس | له دے نه

بدکرداره دی ، هو ! څوک چه دَ دِے کار نه پس توبه وُباسی او دَ خپلو عملونو

وَاَصْلَحُوْا ۚ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝٥ وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ

او اصلاح ئے وکړه | نو بیشکه | الله | ډیر بخښونکے | رحم کوونکے دے | او کوم خلق چه | تهمت ولگوی

اصلاح وکړی ۔ نو بیشکه الله تعالیٰ ډیر بخښونکے مهربان دے ۔ او کوم خلق چه په خپلو ښځو بانډِ

أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ شُهَدَآءُ إِلَّآ أَنْفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ

په خپلو ښځو | او نه وي | دوی سره | ګواهان | سیوا | د خپل ذات نه | نو ګواهي پکار ده

د زنا عیب ولګوي او د هغوئ سره د خپل ځان — نه سیوا نور ګواهان نه وي، نو د داسې سړي د

أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهَٰدَٰتٍۭ بِاللَّهِ ۙ إِنَّهُۥ لَمِنَ الصَّٰدِقِينَ ⑥

د یو له دوی نه | څلور ځله | ګواهي (قسم) | په الله | چه بیشکه دے | رښتینې دے.

ګواهئ صورت دا دے چه هغه به څلور ځله په الله تعالیٰ قسم خوري چه بیشکه هغه په خپله دعوٰی کښې رښتینې دے

وَالْخَٰمِسَةُ أَنَّ لَعْنَتَ اللَّهِ عَلَيْهِ إِنْ كَانَ مِنَ الْكَٰذِبِينَ ⑦

او په پنځم ځل | دا چه | لعنت دِ وي | د الله | په ده | که چرے وي دے | له دروغ ویونکو نه

او په پنځم ځل به داسے ووائي چه که چرے هغه دروغژن وي نو په هغه دِ د الله تعالیٰ لعنت وي.

وَيَدْرَؤُا۟ عَنْهَا الْعَذَابَ أَنْ تَشْهَدَ أَرْبَعَ شَهَٰدَٰتٍۭ بِاللَّهِ ۙ

او لرے کولے شي | له دِ (ښځې) نه | عذاب (دا خبره) | چه ګواهي ورکړي | څلور ځله ګواهي | په الله

او د ښځې نه سزا په دے شان سره لرے کیدے شي، چه هغه دِ څلور ځله په الله تعالیٰ باندِ قسم وخوري

إِنَّهُۥ لَمِنَ الْكَٰذِبِينَ ⑧ ۙ وَالْخَٰمِسَةَ أَنَّ غَضَبَ اللَّهِ

چه بیشکه دے | له دروغ ویونکو دے | او په پنځم ځل | دا چه | غضب دِ وي | د الله

چه دا سړے دروغژن دے او په پنځم ځل دِ داسے ووائي چه په ما دِ د الله تعالیٰ غضب

عَلَيْهَآ إِنْ كَانَ مِنَ الصَّٰدِقِينَ ⑨ وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ

په دے (ښځه) | که چرے وي دے | له رښتیا ویونکو نه | او که چرے نه وے | فضل | د الله | په تاسو

را نازل شي که دا سړے رښتیا وائي. او که د الله تعالیٰ فضل او مهرباني در باندِ نه وے او دا خبره

وَرَحْمَتُهُۥ وَأَنَّ اللَّهَ تَوَّابٌ حَكِيمٌ ⑩ إِنَّ الَّذِينَ جَآءُو بِالْإِفْكِ

او د ده رحمت | او دا چه الله | توبه قبلوونکے | حکمت والا دے | بیشکه کوم خلق چه | را غلل | په تهمت سره

نه وے چه الله تعالیٰ توبه قبلوونکے د حکمتونو خاوند دے (نو په تاسو به مصیبت کښې پرانه وُ وئ). کوم خلق چه (په عائشه رضی باندِ) تهمت ولګولو

عُصْبَةٌ مِّنْكُمْ ۚ لَا تَحْسَبُوهُ شَرًّا لَّكُمْ ۖ بَلْ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ

یوه ډله ده | له تاسو نه | مه ګڼرئ تاسو دا | بد ه | ځان د پاره | بلکه دا | غوره ده | تاسو د پاره

هغه هم له تاسو نه یو ټولے دے، تاسو د ځان د پاره دا (قیصه) بده مه ګڼرئ بلکه تاسو د پاره خو هم دا غوره ده

لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ مَّا اكْتَسَبَ مِنَ الْإِثْمِ ۚ وَالَّذِي

هر یو کس د پاره دے | له دوی نه | هغه څیز | چه ده وکړو | له ګناه نه | او کوم کس چه

په دوئ کښې هر چا د پاره څومره چه هغه حصه واخسته هغه هومره ګناه ده، او چا چه په کښې د

تَوَلَّىٰ كِبْرَهُۥ مِنْهُمْ لَهُۥ عَذَابٌ عَظِيمٌ ⑪ لَوْلَآ إِذْ سَمِعْتُمُوهُ

ذمه وار دے | د لوئے تهمت | له دوی نه | ده د پاره عذاب دے | ډیر لوئے | ولے ونه شو | هر کله چه واورېده تاسو دا

تولو نه زیاته حصه واخسته د هغه سزا هم (د نورو نه زیاته) لویه ده. هر کله چه تاسو دا (د تهمت) خبره

ظَنَّ الْمُؤْمِنُوْنَ وَالْمُؤْمِنٰتُ بِاَنْفُسِهِمْ خَيْرًا ۙ وَّقَالُوْا

چه ګمان کړے دے | مؤمنانو سړو | او مؤمنانو ښځو | په خپلو خلقو | دَ نيکئ | او دوئ ويلے دے دوی

واوريدلو نو ولے داسے ونۀ شوه چه مسلمانانو سړو او ښځو دَ خپلو خپلوانو په حقله نيک ګمان کړے وے او داسے ئے

هٰذَآ اِفْكٌ مُّبِيْنٌ ⑫ لَوْلَا جَآءُوْ عَلَيْهِ بِاَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ ۚ

چه دا خو | بهتان دے | ښکاره | ولے رانۀ وستل دوی | په دے (خبره) | څلور | ګواهان

ويلی وے چه دا خو ښکاره بهتان دے۔ دوئ په خپله خبره باندې ولے څلور ګواهان پيدا نۀ کړل؟ نو هر کله

فَاِذْ لَمْ يَاْتُوْا بِالشُّهَدَآءِ فَاُولٰٓئِكَ عِنْدَ اللّٰهِ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ ⑬

پس هر کله چه رانۀ وستل دوی | ګواهان | پس دغه کسان | په نزد دَ الله | دروغژن دی

چه دوئ ګواهان رانۀ وستلے شول، نو بس دَ الله تعالیٰ په نزد (خو) هم دوئ دروغژن شول۔

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ

او که چرے نۀ وے | فضل | دَ الله | په تاسو | او دَ ده رحمت | په دُنيا کښے | او آخرت (کښے)

او که په تاسو باندې دَ الله تعالیٰ فضل او مهربانی په دنيا او آخرت دواړو کښے نۀ وے، نو تاسو

لَمَسَّكُمْ فِيْ مَآ اَفَضْتُمْ فِيْهِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ۚ ⑭ اِذْ تَلَقَّوْنَهٗ

نو رسيدلے به وو تاسو ته | په وجه دَ هغے | چه مشغول شوئ تاسو | په هغے کښے | عذاب | ډېر لوئے | هر کله چه تاسو راوستله دا (خبره)

چه په کومه مشغله کښے پريوتی وئ نو په دے کښے به درباندې لوئے آفت رانازل شوے وو، کوم وخت چه تاسو

بِاَلْسِنَتِكُمْ وَتَقُوْلُوْنَ بِاَفْوَاهِكُمْ مَّا لَيْسَ لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ

په خپلو ژبو | او تاسو ويله | په خپلو خُلو سره | هغه خبره چه نشته | تاسو ته | دَ هغے | (څۀ) علم

دا خبره خُلے تر خُلے نقل کوله او په خُله مو هغه خبره کوله چه تاسو ترے نه خپله خبر نۀ وئ او

وَّتَحْسَبُوْنَهٗ هَيِّنًا ۖ وَّهُوَ عِنْدَ اللّٰهِ عَظِيْمٌ ⑮ وَلَوْلَآ

او تاسو ګڼرله دا | معمولی خبره | او هغه وه | په نزد دَ الله | ډېره لويه۔ | او ولے ونۀ شوه

او دا مو معمولی خبره ګڼړله حال دا چه دَ الله تعالیٰ په نزد ډېره غټه (خرابه) خبره ده۔ او څۀ وخت

اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ قُلْتُمْ مَّا يَكُوْنُ لَنَآ اَنْ نَّتَكَلَّمَ بِهٰذَا ۖ

هر کله چه | واورېدلو تاسو دغه تهمت | چه ويلے تاسو | نۀ دی مناسب | مونږ له | چه په ژبه راوړو مونږ | دا خبره

چه تاسو اورېدلے وه نو داسے مو ولے نۀ ويل چه مونږ له داسے خبره دَ خُلے نه ايستل نه ښائيږی

سُبْحٰنَكَ هٰذَا بُهْتَانٌ عَظِيْمٌ ⑯ يَعِظُكُمُ اللّٰهُ اَنْ

تۀ پاک يئے | دا خو | بهتان دے | ډېر لوئے | نصيحت کوی تاسو ته | الله | دَ دے خبرے چه

سبحان الله! دا خو ډېر لوئے بهتان (دروغ) دی۔ (واورئ) الله تعالیٰ تاسو ته نصيحت کوی، که چرے

تَعُوْدُوْا لِمِثْلِهٖٓ اَبَدًا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۚ ⑰ وَيُبَيِّنُ اللّٰهُ

تاسو دوباره (بيا) کوئ | داسے کار | هيڅ کله | که چرے يئ تاسو | مؤمنان | او بيانوی | الله

تاسو مؤمنان يئ نو بيا هيڅ چرے داسے کار ونۀ کړئ۔ او الله تعالیٰ تاسو دَ پاره حکمونه

لَكُمُ الْاٰيٰتِ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ⑱ اِنَّ الَّذِيْنَ يُحِبُّوْنَ

تاسو دَپاره | آيتونه | او الله | پوهه | دَحکمت خاوند دے | بيشکه | کوم خلق چه | غواړی

(صفا صفا) بيانوی او الله تعالیٰ په هر څهٔ پوهه دَحکمت خاوند دے. بيشکه کوم خلق چه دا غواړی

اَنْ تَشِيْعَ الْفَاحِشَةُ فِى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۙ

چه خوره شی | بے حيائی | په هغو خلقو کښے چه | مؤمنان دی | هغوی دَپاره | عذاب دے | دردناک

چه په مؤمنانو کښے دِ بے حيائی خوره شی، هغوئ دَ پاره په دنيا او آخرت کښے

فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ⑲

په دنيا کښے | او په آخرت (کښے) | او الله | پوهيږی | او تاسو | نهٔ پوهيږئ.

دردناک عذاب مقرر دے. او الله تعالیٰ تهٔ هر يے خبرے علم دے او تاسو نهٔ پوهيږئ

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ وَاَنَّ اللّٰهَ رَءُوْفٌ

او کهٔ چرے نهٔ وے | فضل | دَ الله | په تاسو | او دَ دهٔ رحمت | او دا چه | الله | ډير مهربان

او کهٔ چرے تاسو باندِ دَ الله تعالیٰ فضل او دَ دهٔ رحمت نهٔ وے (نو تاسو له به سخت ترينه سزا درکړے شوے وه) او دا چه الله تعالیٰ

رَّحِيْمٌ ⑳ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ

رحم کوونکے دے | اے دَ ايمان خاوندانو! | مهٔ روانيږئ | په قدمونو | دَ شيطان

ډير نرمی کوونکے مهربان دے. اے مؤمنانو! تاسو دَ شيطان په قدمونو پسے مهٔ ځئ

وَمَنْ يَّتَّبِعْ خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ فَاِنَّهٗ يَاْمُرُ بِالْفَحْشَآءِ

او څوک چه | پيروی کوی | دَ قدمونو | دَ شيطان | نو بيشکه هغه | حکم کوی | دَ بے حيائی

او څوک چه په شيطان پسے روان شی نو هغه خو هميشه دَ بے شرمئ او دَ بدو کارو نو لاره

وَالْمُنْكَرِ ؕ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ مَا زَكٰى

او دَ بد کار | او کهٔ چرے نهٔ وے | فضل | دَ الله | په تاسو | او دَ دهٔ رحمت | نو پاک شوے به نهٔ وو

چارے ښائی، او کهٔ په تاسو باندِ دَ الله تعالیٰ فضل او مهربانی نهٔ وے نو په تاسو کښے به هيڅوک

مِنْكُمْ مِّنْ اَحَدٍ اَبَدًا ۙ وَّلٰكِنَّ اللّٰهَ يُزَكِّىْ مَنْ يَّشَآءُ ؕ

له تاسو نه | هيڅ کس | هيڅ کله | ليکن | الله | پاکوی | څوک چه غواړی

هيڅرے پاک شوے نهٔ وو، خو الله تعالیٰ چه دَ چا په حقله وغواړی نو هغه پاک او صفا کړی

وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ㉑ وَلَا يَاْتَلِ اُولُوا الْفَضْلِ مِنْكُمْ

او الله | آورېدونکے | پوهه دے | او قسم دِ نهٔ خوری | دَ فضيلت خاوند | له تاسو نه

او الله تعالیٰ هر څهٔ آوری په هر څهٔ پوهه دے. او په تاسو کښے څوک چه دَ بزرګئ او دَ فراخے روزئ خاوندان

وَالسَّعَةِ اَنْ يُّؤْتُوْٓا اُولِى الْقُرْبٰى وَالْمَسٰكِيْنَ وَالْمُهٰجِرِيْنَ

او دَ فراخئ خاوند | چه (نهٔ) ورکوی | خپلوانو ته | او مسکينانو ته | او هجرت کوونکو ته

دی نو هغوئ دِ خپلوانو، مسکينانو او دَ الله تعالیٰ په لار کښے هجرت کوونکو ته دَ څهٔ نهٔ ورکولو

فِي سَبِيلِ اللّٰهِ ۖ وَلْيَعْفُوا وَلْيَصْفَحُوا ۗ أَلَا تُحِبُّونَ أَنْ يَغْفِرَ

په لاره کښې | دَ الله | او پکار ده چه عفوه وکړی | او درګزر وکړی | آیا تاسو نهٔ خوښوئ | چه معاف کړی

قسمونه نهٔ خوری او پکار دی چه معافی ورته کوی او دَ درګزر نه کار اخلی، آیا دا مو خوښه نهٔ ده چه الله تعالیٰ

اللّٰهُ لَكُمْ ۗ وَاللّٰهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢٢﴾ إِنَّ الَّذِينَ يَرْمُونَ

الله | تاسو | او الله | ډیر بخښونکے | مهربان دے | بیشکه | کوم خلق چه | تهمت لګوی

درته بخښنه وکړی، او الله تعالیٰ ډیر بخښونکے مهربان دے۔ هغه خلق چه په پاک لمنو، بے خبره

الْمُحْصَنَاتِ الْغَافِلَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ لُعِنُوا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ

په پاکدامنو | بے خبره | او مؤمنانو ښځو باندې | لعنت شوے په دوی | په دنیا کښې | او په آخرت کښې

او ایماندارو ښځو باندې تهمتونه لګوی، نو په هغوئ باندې په دنیا او په آخرت دواړو کښې لعنتونه وریږی

وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿٢٣﴾ يَوْمَ تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ أَلْسِنَتُهُمْ

او دوی دَ پاره | عذاب دے | ډیر لوئے | په هغه ورځ چه | ګواهي به ورکوی | په دوی باندې | ژبے دَ دوی

او هغوئ له دروند عذاب مقرر دے۔ په هغه ورځ چه خپلے ژبے او خپل لاسونه او خپلے پښے

وَأَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٢٤﴾ يَوْمَئِذٍ يُوَفِّيهِمُ

او لاسونه دَ دوی | او پښے دَ دوی | دَ هغه څهٔ | چه کول به دوی | په دغه ورځ | پوره به ورکړی دوی ته

به پرے په خپله ګواهي کوی چه دوئ څهٔ کارونه کول۔ په دغه ورځ به الله تعالیٰ دوئ ته

اللّٰهُ دِينَهُمُ الْحَقَّ وَيَعْلَمُونَ أَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ الْمُبِينُ ﴿٢٥﴾

الله | بدله دَ دوی | په انصاف | او دوی به پوهه شی | چه بیشکه الله | هم دے برحق دے | (حق) واضح کونکے

دَ دے پوره پوره سزا ورکړی او دوی ته به معلومه شی چه الله تعالیٰ واقعی رښتینے او دَ هرے خبرے ښکاره کونکے دے

اَلْخَبِيثَاتُ لِلْخَبِيثِينَ وَالْخَبِيثُونَ لِلْخَبِيثَاتِ ۖ وَالطَّيِّبَاتُ لِلطَّيِّبِينَ

ناپاکے ښځے | دَ ناپاکو سړو دَ پاره دی | او ناپاک سړی | دَ ناپاکو ښځو دَ پاره دی | او پاکے ښځے | پاکو سړو دَ پاره دی

ناپاکه ښځے دَ ناپاکو سړو لائقے دی، او ناپاکه سړی دَ ناپاکو ښځو لائق دی، او پاکے ښځے دَ پاکو سړو

وَالطَّيِّبُونَ لِلطَّيِّبَاتِ ۚ أُولٰئِكَ مُبَرَّءُونَ مِمَّا يَقُولُونَ ۖ لَهُمْ

او پاک سړی | پاکو ښځو دَ پاره دی | دا خلق | بری دی | له هغه څهٔ نه | چه دوی وائی | دوی دَ پاره

او پاک سړی دَ پاکو ښځو لائق دی، دا خلق دَ دے (شریرو دَ) خبرو نه بالکل پاک دی (او) دوی دَ

مَغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴿٢٦﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا

بخښنه ده | او رزق | دَ عزت | اے دَ ایمان خاوندانو! | د ننه مهٔ ورځئ | کورونو ته

پاره بخښنه او دَ عزت روزی ده۔ اے دَ ایمان خاوندانو! دَ خپلو کورونو نه بغیر دَ نورو چا کورونو

غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتّٰى تَسْتَأْنِسُوا وَتُسَلِّمُوا عَلٰى أَهْلِهَا ۚ ذٰلِكُمْ

سیوا | له کورونو خپلو نه | تر دے چه | تاسو اجازت واخلئ | او سلام واچوئ | دَ هغے په استوګنو | دا (خبره)

نه ترهغے مهٔ ورننوزئ ترڅو چه اجازت وانخلئ او دَ هغے په استوګنو خلقو سلام وانهٔ چوئ۔ دا کار تاسو

ع ۹

خَيْرٌ لَّكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۷﴾ فَاِنْ لَّمْ تَجِدُوْا فِيْهَا اَحَدًا

غوره ده | تاسو دَپاره | دَ پاره دَ دې چه تاسو | نصيحت حاصل کړئ | پس که چرې بيا نهٔ مومئ تاسو | په هغے کنبے | هيڅوک

دَپاره ډير غوره دے چه تاسو ئے خيال ؤساتئ ـ نو که په هغه کوره کنبے درته څوک ښکاره نهٔ شي نو ترهغے مهٔ

فَلَا تَدْخُلُوْهَا حَتّٰى يُؤْذَنَ لَكُمْ ۚ وَاِنْ قِيْلَ لَكُمُ ارْجِعُوْا

پس دننه مهٔ ورځئ دَ هغے ته | ترڅو چه | اجازت درکړے شي | تاسو ته | او که چرے وويلے شي تاسو ته | چه واپس شئ

ورننوزئ ترڅو چه اجازت درته ونهٔ شي ، او که دا درته وويلے شي چه واپس لاړ شئ

فَارْجِعُوْا هُوَ اَزْكٰى لَكُمْ ۚ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ ﴿۲۸﴾

نو واپس شئ | دا (خبره) | زياته پاکيزه ده | تاسو دَپاره | او الله | په هغه څهٔ | چه کوئ ئے تاسو | پوهه دے۔

نو واپس شئ ، هم دا خبره ستاسو په حقله غوره ده او الله تعالىٰ ستاسو په کارونو ښهٔ پوهه دے ۔

لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَدْخُلُوْا بُيُوْتًا غَيْرَ مَسْكُوْنَةٍ

نشته دے | په تاسو | (څهٔ) ګناه | چه دننه ورشئ تاسو | کورونو ته | چه نهٔ وُسيږي څوک

دے خبره کنبے په تاسو څهٔ ګناه نشته چه په کومو کورونو کنبے څوک نهٔ وُسيږي (او) ستاسو مال او سامان په هغے کنبے

فِيْهَا مَتَاعٌ لَّكُمْ ۚ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا تَكْتُمُوْنَ ﴿۲۹﴾

په هغے کنبے | (بلکه په هغے کنبے) سامان وي | ستاسو | او الله | پوهيږي | څهٔ چه تاسو ښکاره کوئ | او څهٔ چه | تاسو پټوئ

پروت وي نو هغے ته ورننوزئ ، او الله تعالىٰ ستاسو په ښکاره او په پټو کارونو ياندِ ښهٔ پوهيږي

قُلْ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ۚ

ووايه | مؤمنانو سړو ته | چه ټيټے ساتي | سترګے خپلے | او حفاظت دِ کوي | دَ خپلو شرمګاهونو

(اے پيغمبره!) مؤمنانو ته ووايه چه خپلے سترګے دِ ټيټے ساتي او دَ خپلو سترونو حفاظت دِ کوي

ذٰلِكَ اَزْكٰى لَهُمْ ۚ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌ ۢ بِمَا يَصْنَعُوْنَ ﴿۳۰﴾ وَقُلْ

دا | ډيره پاکيزه ده | دوی دَپاره | بيشکه الله | خبردار دے | په هغه څهٔ | چه دوی ئے کوي | او ووايه

دا خبره دَ دوی دَپاره ډيره بهتره ده ، الله تعالىٰ دَ خلقو په ټولو کارونو ښهٔ خبر دے ۔ او مؤمنانو ښځو

لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ

مؤمنانو ښځو ته | چه کوزے ساتي | خپلے سترګے | او حفاظت دِ کوي | دَ خپلو شرمګاهونو

ته ووايه چه خپلے سترګے دِ کوزے ساتي ، او دَ خپلو سترونو حفاظت دِ کوي

وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَلْيَضْرِبْنَ

او نهٔ دِ ښکاره کوي | خپل ښائست | مګر | کوم چه ظاهر وي | له هغے نه | او هغوئ دِ راواچوي

او خپل ډول سنګار دِ نهٔ څرګندوي ، البته کوم چه نهٔ شي پټيدے ، او خپلے لوپټے دِ په سينو

بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوْبِهِنَّ ۠ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا لِبُعُوْلَتِهِنَّ

خپلے لوپټے | په خپلو ګريوانونو | او نهٔ دِ ښکاره کوي | خپل ښائست | مګر خاوندانو خپلو ته

باندِ غوړيدلے لري ، او خپل ډول سنګار دِ نهٔ څرګندوي خو خپلو خاوندانو ته

اَوْ اٰبَآئِهِنَّ اَوْ اٰبَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اَبْنَآئِهِنَّ اَوْ اَبْنَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ

یا خپلو پلارانو ته | یا | دَ خپلو خاوندانو پلارانو ته | یا خپلو ځامنو ته | یا دَ خپلو خاوندانو ځامنو ته | یا

یا خپلو پلارانو ته یا سخرانو ته یا خپلو ځامنو ته یا دَ خاوندانو ځامنو ته یا

اِخْوَانِهِنَّ اَوْ بَنِیْٓ اِخْوَانِهِنَّ اَوْ بَنِیْٓ اَخَوٰتِهِنَّ اَوْ نِسَآئِهِنَّ اَوْ مَا

یا خپلو وروڼو ته | یا خپلو وریرونو ته | یا خپلو خوریونو ته | یا خپلو ښځو ته | یا په هغه (وینځو)

خپلو وروڼو ته یا خپلو وریرونو ته یا خپلو خوریونو ته یا (دَ خپل مذهب) ښځو ته یا

مَلَكَتْ اَیْمَانُهُنَّ اَوِ التّٰبِعِیْنَ غَیْرِ اُولِی الْاِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ

دَ کوم چه مالکان دی | دَ دوی ښی لاسونه | یا هغه خادمان چه | چه حاجت نه لری (دَ ښځو) | له سړو نه

خپلو وینځو ته ، یا له سړو نه هغه خادمانو ته چه نفساني خواهشات نه لری

اَوِ الطِّفْلِ الَّذِیْنَ لَمْ یَظْهَرُوْا عَلٰی عَوْرٰتِ النِّسَآءِ ۪ وَلَا یَضْرِبْنَ

یا هغه ماشومان | کوم چه | خبر نه وی | په شرمګاهونو | دَ ښځو | او نه دِ وهی دوی (زمکه)

یا هغه ماشومانو ته چه لا دَ ښځو دَ پردو دَ خبرو نه واقف نه وی او (دَ تلو په وخت کښې) ښځې

بِاَرْجُلِهِنَّ لِیُعْلَمَ مَا یُخْفِیْنَ مِنْ زِیْنَتِهِنَّ ؕ وَتُوْبُوْٓا

په خپلو پښو | چه معلوم شی | هغه څه چه | پټوی ئې دوی | له خپل ښائست نه | او تاسو توبه وکړئ

دِ خپلې پښې په زور نه وهی چه په دے سره دَ دوی ګڼهو کالو آواز واورېدے شی ، او تاسو ټول الله تعالیٰ

اِلَی اللّٰهِ جَمِیْعًا اَیُّهَ الْمُؤْمِنُوْنَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿٣١﴾

دَ الله په وړاندې | ټول | اے | مؤمنانو ! | دَ پاره دَ دې چه تاسو | کامیاب شئ ۔

ته توبے وباسئ اے مؤمنانو ! چه تاسو نجات بیا مومئ ۔ او په

وَاَنْكِحُوا الْاَیَامٰی مِنْكُمْ وَالصّٰلِحِیْنَ مِنْ عِبَادِكُمْ وَاِمَآئِكُمْ ؕ

او نکاح وکړئ | دَ کونډو ښځو | له خپل قوم نه | او دَ نیکانو | غلامانو | او دَ وینځو

تاسو کښې چه کومے ښځے کونډے دی دَ هغوئ نکاح کوئ او دَ خپلو نیکانو غلامانو هم او دَ وینځو هم (نکاح کوئ)

اِنْ یَّكُوْنُوْا فُقَرَآءَ یُغْنِهِمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ؕ وَاللّٰهُ

که چرے وی دوی | محتاجه | نو غنیان به کړی دوی | الله | په خپل فضل سره | او الله

که دوئ غریبان وی نو الله تعالیٰ به ئې په خپل فضل سره غنیان کړی او الله تعالیٰ دَ ډیرے

وَاسِعٌ عَلِیْمٌ ﴿٣٢﴾ وَلْیَسْتَعْفِفِ الَّذِیْنَ لَا یَجِدُوْنَ نِكَاحًا

ډیر ورکونکے | پوهه دے | او پاکدامنه دِ وسیږی | هغه خلق چه | نه بیا مومی (سامان) | دَ نکاح

فراختیا خاوند دے په هر څه پوهه دے او کوم خلق چه دَ نکاح طاقت نه لری پکار دی چه هغوئ ځان

حَتّٰی یُغْنِیَهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ؕ وَالَّذِیْنَ یَبْتَغُوْنَ الْكِتٰبَ

ترڅو چه | غنیان کړی دوی | الله | په خپل فضل سره | او هغه خلق چه | غواړی | معاهده کول

پاکدامنه ساتی ترڅو چه الله تعالیٰ په خپل فضل سره هغوئ غنیان کړی او کوم غلامان چه تاسو سره مکاتبت (معاهده)

مِمَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ فَكَاتِبُوْهُمْ اِنْ عَلِمْتُمْ فِيْهِمْ خَيْرًا ۖ

له هغه چا نه | چه مالکان شوی دي پړې لاسو ستاسو | پس مکاتب کړئ هغوئ | که چرې تاسو معلومه کړئ | په هغوئ کښې | څه نیکي

کول او ازادي حاصلول) غواړي که چرې تاسو ته په هغوئ کښې نیکي او صلاحیت معلوم وي نو هغوئ سره مکاتبت وکړئ

وَّاٰتُوْهُمْ مِّنْ مَّالِ اللّٰهِ الَّذِيْٓ اٰتٰىكُمْ ۭ وَلَا تُكْرِهُوْا فَتَيٰتِكُمْ

او تاسو ورکړئ دوی ته | د الله د مال نه | کوم چه ئې درکړے دے تاسو ته | او مه مجبوره کوئ | خپلې وینځې

او د کوم مال چه الله تعالیٰ تاسو له درکړے دے له هغې نه دوئ ته هم لږ ورکړئ، او خپلې وینځې د دنیا د ژوند

عَلَى الْبِغَاۗءِ اِنْ اَرَدْنَ تَحَصُّنًا لِّتَبْتَغُوْا عَرَضَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۭ

په بد کارئ باندې | که چرې | غواړي دوی | پاکدامنې وسیل | د پاره د دے چه حاصل کړئ | سامان | د دنیا د ژوند

د فائدو حاصلولو د پاره په زنا کارئ مه مجبوره کوئ هر کله چه هغوئ پاک ملنے او سیدل غواړي

وَمَنْ يُّكْرِهْهُّنَّ فَاِنَّ اللّٰهَ مِنْۢ بَعْدِ اِكْرَاهِهِنَّ غَفُوْرٌ

او څوک چه | مجبوره کوی دوی | نو بیشکه | الله | پس د دوئ د مجبوره کولو نه | بخښونکے

او څوک چه هغوئ (په زنا کولو) مجبوره کړی، نو الله تعالیٰ د هغوئ د مجبورتیا نه پس بخښونکے

رَّحِيْمٌ ۝ وَلَقَدْ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكُمْ اٰيٰتٍ مُّبَيِّنٰتٍ وَّمَثَلًا

مهربان دے | او بیشکه | نازل کړل مونږ | ستا طرف ته | آیتونه | روښانه | او مثالونه

مهربان دے، او مونږ ستا طرف ته واضح حکمونه نازل کړی دی او د هغو خلقو مثالونه

مِّنَ الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ ۝ اَللّٰهُ

د هغو خلقو چه | تیر شوی دی | له تاسو نه وړاندې | او نصیحت | د پرهیزګارانو د پاره | الله

(بیان کړی دی) چه ستاسو نه وړاندې تیر شوی دی او د ویریدونکو د پاره (د) نصیحت (ذریعه) ده، الله تعالیٰ

نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ مَثَلُ نُوْرِهٖ كَمِشْكٰوةٍ فِيْهَا مِصْبَاحٌ ۭ

نور | د آسمانونو | او د زمکے دے | مثال | د ده د نور | په شان د تاخ دے | چه په هغې کښې | ډیوه ده

د آسمانونو او د زمکے نور دے، د ده د نور مثال داسے دے لکه چه یو تاخ دے چه په هغې کښې ډیوه پرته

اَلْمِصْبَاحُ فِيْ زُجَاجَةٍ ۭ اَلزُّجَاجَةُ كَاَنَّهَا كَوْكَبٌ دُرِّيٌّ يُّوْقَدُ

هغه ډیوه | په یوه شیشه کښې ده | هغه شیشه | داسے ده لکه چه | د استوري دے | ځلیدونکے | بلولے شی هغه

ده او هغه ډیوه په یوه شیشه کښې ده (او هغه) شیشه لکه یو ځلانده ستورے دے، دغه ډیوه د یوے

مِنْ شَجَرَةٍ مُّبٰرَكَةٍ زَيْتُوْنَةٍ لَّا شَرْقِيَّةٍ وَّلَا غَرْبِيَّةٍ ۙ يَّكَادُ

له یوے ونے نه | چه برکتی ده | د زیتون | چه نه نور ختاته ده | او نه نور پریوانه ته | نزدے ده چه

فائده منده برکتی ونے نه بلیږی (یعنی) د زیتون نه چه نه د نور ختاته غاړے ته ولاړه ده او نه د قبلے غاړے ته

زَيْتُهَا يُضِيْۗءُ وَلَوْ لَمْ تَمْسَسْهُ نَارٌ ۭ نُوْرٌ عَلٰي نُوْرٍ ۭ يَهْدِي

تیل د هغې | رڼا ورکړی | اګرکه نه وی رسیدلے هغې ته | اور | رڼا ده د پاسه د رڼا | لاره ښائي

داسے روښانه ښکاری لکه چه په خپله به اوس بله شی اګرکه اور ورته نزدے هم نه شی هغه تو له رڼا رڼا ده، الله تعالیٰ چه د چا

اللّٰهُ لِنُوْرِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَيَضْرِبُ اللّٰهُ الْاَمْثَالَ لِلنَّاسِ

الله | خپل نور ته | چاته چه دے وغواړی | او بیانوی | الله | مثالونه | خلقو دپاره

په حقله وغواړی نو د خپل نور هدایت ورته وکړی او الله تعالیٰ خلقو د پاره مثالونه بیانوی

وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمٌ ۝٣٥ فِیْ بُیُوْتٍ اَذِنَ اللّٰهُ اَنْ تُرْفَعَ وَیُذْكَرَ

او الله | هر څیز باندِ | پوهه دے | په هغه کورونو کښے | چه حکم کړے دے | الله | چه اوچت دِ کړے شی | او یاد دِ شی

او الله تعالیٰ په هر څیز ښهٔ پوهه دے ، په دا سے کورونو (یعنی جماتونو) کښے چه الله تعالیٰ د هغې (کورونو) په حقله

فِیْهَا اسْمُهٗ ۙ یُسَبِّحُ لَهٗ فِیْهَا بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ ۝٣٦

په هغې کښے | نامه د دهٔ | پاکی بیانوی | د دهٔ | په هغے کښے | سحر | ماښام

دا حکم ورکړے دے چه د هغې ادب لحاظ دِ ساتلے شی او د هغهٔ نوم دِ په کښے اخستلے شی په هغے کښے سحر ماښام خلق د الله پاکی

رِجَالٌ ۙ لَّا تُلْهِیْهِمْ تِجَارَةٌ وَّلَا بَیْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَاِقَامِ

(دا سے) سړی | چه نهٔ غافله کوی دوی | سوداګری | او نهٔ اخستل خرڅول | د الله د ذکر نه | او د قائمو

بیانوی، دا سے خلق کوم چه د الله تعالیٰ د ذکرنه نهٔ تجارت غافله کولے شی نهٔ اخستل خرڅول او نهٔ د مونځ قائمولو او

الصَّلٰوةِ وَاِیْتَآءِ الزَّكٰوةِ ۙ یَخَافُوْنَ یَوْمًا تَتَقَلَّبُ

د مونځ نه | او اداکولو | د زکوٰة نه | دوی ویریږی | له هغه ورځے نه | چه اُلټه به شی

زکوٰة اداکولو نه (دغهٔ څیز دوی منع کولے شی) ، هغوئ د هغه ورځے نه ویریږی چه زړونه

فِیْهِ الْقُلُوْبُ وَالْاَبْصَارُ ۝٣٧ لِیَجْزِیَهُمُ اللّٰهُ اَحْسَنَ

په هغې کښے | زړونه | او سترګے | د پاره د دے چه جزا ورکړی دوی ته | الله | غوره

او سترګے به په کښے (په بل مخ) واوړی ، انجام به ئے دا وی چه الله تعالیٰ به ورله د خپلو نیکو عملونو

مَا عَمِلُوْا وَیَزِیْدَهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ؕ وَاللّٰهُ یَرْزُقُ

د هغو عملونو | چه دوی کول | او چه زیات ورکړی دوی ته | د خپل فضل نه | او الله | رزق ورکوی

ډیره ښهٔ بدله ورکړی او د خپل فضل نه به زیات هم ورکړی ، او الله تعالیٰ چه د چا په حقله

مَنْ یَّشَآءُ بِغَیْرِ حِسَابٍ ۝٣٨ وَالَّذِیْنَ كَفَرُوْٓا اَعْمَالُهُمْ كَسَرَابٍ

چاته چه غواړی | بے حسابه | او کوم چه کافران دی | عملونه د دوی | په شان د سراب دی

غواړی نو بے حسابه رزق ورکوی ، او څوک چه کافران دی د هغوئ عملونه د سراب په شان دی

بِقِیْعَةٍ یَّحْسَبُهُ الظَّمْاٰنُ مَآءً ؕ حَتّٰۤی اِذَا جَآءَهٗ لَمْ یَجِدْهُ

په بیابان کښے | چه خیال کوی په هغې | تږے | د اُوبو | تردے چه | هر کله راشی هغې ته | نو بیا نهٔ مومی (هلته)

چه په یو هوار میدان کښے پړے تږے د اُوبو ګمان کوی خو هر کله چه ورته نزدے ورشی نو هیڅ بیا نهٔ

شَیْـًٔا وَّوَجَدَ اللّٰهَ عِنْدَهٗ فَوَفّٰىهُ حِسَابَهٗ ؕ وَاللّٰهُ سَرِیْعُ

هیڅ | او بیا مومی الله | هلته | نو هغهٔ پوره ورکړی دهٔ ته | حساب د دهٔ | او الله | ډیر ژر

مومی او هلته (د) الله (تقدیر) بیا مومی نو هغه ورسره خپل حساب پوره کړی (او دے مړ کړی) او الله تعالیٰ ډیر

الْحِسَابِ ﴿۳۹﴾ اَوْ كَظُلُمٰتٍ فِیْ بَحْرٍ لُّجِّیٍّ یَّغْشٰىهُ مَوْجٌ مِّنْ فَوْقِهٖ

حساب کونکے دے | یا په شان دَ تیارو | په یو ژور دریاب کښې | چه راپټوی دے | چپه | دَ پاسه

زر حساب خلاصوی یا (دهغه عملونه) داسے دی لکه دَ لوئے ژور سمندَ دَلاندِ تورے تیارے چه لوئے لوئے چپے پرے

مَوْجٌ مِّنْ فَوْقِهٖ سَحَابٌ ؕ ظُلُمٰتٌۢ بَعْضُهَا فَوْقَ بَعْضٍ ؕ

دَ بلے چپے | دَ پاسه دَ هغے | وریځ وی | تیارے دی | ځنې دَ هغے | دَ پاسه ځنې نورو

بانِدِ راځي، دَ یوے چپے دَ پاسه بله چپه وی او بیا دَ هغے ټولو دَ پاسه وریځ وی غرض دا چه لاندِ باندِ تیارے راتوے

اِذَاۤ اَخْرَجَ یَدَهٗ لَمْ یَكَدْ یَرٰىهَا ؕ وَمَنْ لَّمْ یَجْعَلِ اللّٰهُ لَهٗ نُوْرًا

هرکله چه راوباسی دے | خپل لاس | نو لیدے نه شی هغه | او هر هغه کس چه | نه دے جوړ کړے | الله | دهٔ له | (څه) نور

شوی وی که څوک خپل لاس راوباسی نو داسے (تیاره) وی لکه چه هغه هم لیدلے نه شی او چاله چه الله (دَ هدایت) رڼا

فَمَا لَهٗ مِنْ نُّوْرٍ ﴿۴۰﴾ اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ یُسَبِّحُ لَهٗ مَنْ فِی السَّمٰوٰتِ

پس نشته دے دهٔ دَ پاره | (څه) نور | آیا نه دی کتلی تا | چه دَ الله | پاکی بیانوی | څوک چه په آسمانونو کښې

ورنه کړی نو هغهٔ له بل هیچرته رڼا نشته، آیا تا ته معلومه نه ده چه ټول (مخلوقات) دَ الله تسبیح وائی څوک چه په آسمانونو

وَالْاَرْضِ وَالطَّیْرُ صٰٓفّٰتٍ ؕ كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهٗ

او زمکه (کښې دی) | او مارغان | وزرے خوروونکی | هر یو | پیژندلے ده | خپله دُعا

کښې او زمکه کښې دی او الوتونکی مارغان هم چه وزرے ئے غوړولے وی، هر یو ته خپله خپله دُعا او خپله خپله تسبیح

وَتَسْبِیْحَهٗ ؕ وَاللّٰهُ عَلِیْمٌۢ بِمَا یَفْعَلُوْنَ ﴿۴۱﴾ وَلِلّٰهِ مُلْكُ

او خپله تسبیح | او الله | پوهه دے | په هغه څهٔ | چه دوی ئے کوی | او هم الله دَ پاره ده | بادشاهی

معلومه ده، او الله تعالیٰ ته دَ دوئی ټول عملونه معلوم دی۔ او دَ آسمانونو او دَ زمکے

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَاِلَی اللّٰهِ الْمَصِیْرُ ﴿۴۲﴾ اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ یُزْجِیْ

دَ آسمانونو | او دَ زمکے | او دَ الله طرف ته | واپس تلل دی | آیا نه دی کتلی تا | چه الله | روانوی

بادشاهت هم دَ الله تعالیٰ دَ پاره دے هم دَ الله تعالیٰ طرف ته واپس تګ دے آیا تا نه دی لیدلی چه هم الله تعالیٰ

سَحَابًا ثُمَّ یُؤَلِّفُ بَیْنَهٗ ثُمَّ یَجْعَلُهٗ رُكَامًا فَتَرَی الْوَدْقَ

وریځ | بیا | یو ځائے کوی | دا په خپل مینځ کښې | بیا کړی دا | قط په قط | بیا نه وینې (چه) | باران

وریځ روانوی، بیا ئے په خپل مینځ کښې یو ځائے کوی، بیا ئے لاندِ باندِ کوی، نو ته ئے وینې چه دَ هغے دَ

یَخْرُجُ مِنْ خِلٰلِهٖ ۚ وَیُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ جِبَالٍ فِیْهَا

راوځی | دَ دے دَ مینځ نه | او هغه راوروی | له آسمان نه | دَ غرونو (په شان دریځو) نه | چه په دے کښې دی

مینځ نه باران راوځی او دَ وریځو دلویو لویو حصو نه ږلۍ راوروی

مِنْۢ بَرَدٍ فَیُصِیْبُ بِهٖ مَنْ یَّشَآءُ وَیَصْرِفُهٗ عَنْ مَّنْ یَّشَآءُ ؕ

ږلۍ | پس هغه ورروی | دا | په چا چه غواړی | او بیرته ئے کرځوی | له هغه چا نه | چه غواړی

نو په چا چه غواړی په هغه ئے راوروی او چه دَ چا نه ئے خوښه شی دَ هغوی نه ئے بیرته ساتی

ع ۵

يَكَادُ سَنَا بَرْقِهٖ يَذْهَبُ بِالْاَبْصَارِ ﴿٤٣﴾ يُقَلِّبُ اللّٰهُ الَّيْلَ

نژدے دہ چہ | پرق | دَ دے دَ برېښنا | بوځی | سترګے (نظرئے) | بدلوی | اللّٰه | شپہ

دَ هغے دَ بجلئ پرق داسے ښکاری لکہ چہ اوس بہ دَ سترګو نظر بوځی ، هم اللّٰه تعالیٰ شپے او ورځے اړوی

وَالنَّهَارَ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّاُولِي الْاَبْصَارِ ﴿٤٤﴾ وَاللّٰهُ

او ورځ | بیشکہ | پہ دے کښے | عبرت دے | دَ سترګو دَ خاوندانو دَ پارہ | او اللّٰه

را اړوی ۔ بیشکہ پہ دے کښے دَ سترګو دَ خاوندانو دَ پارہ لوئے عبرت دے او اللّٰه تعالیٰ هر یو

خَلَقَ كُلَّ دَاۗبَّةٍ مِّنْ مَّاۗءٍ ۚ فَمِنْهُمْ مَّنْ يَّمْشِيْ عَلٰي بَطْنِهٖ ۚ

پیدا کړو | هر تلونکے ساددار | له اوبونه | پس ځنے له دوی نه دی | چہ روان وی | پہ خیټہ خپلہ

ګرځندہ څیز دَ اوبونہ پیدا کړے دے ، نو ځنے پہ کښے داسے دی چہ پہ ګیډہ باندِ خوځیږی

وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّمْشِيْ عَلٰي رِجْلَيْنِ ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّمْشِيْ

او ځنے له دوی نہ | چہ روان دی | پہ دوؤ ښپو | او ځنے له دوی نہ | هغہ دی چہ روان وی

او ځنے داسے دی چہ پہ دوؤ ښپو ګرځی او ځنے له دوی نہ داسے دی چہ پہ څلور ښپو

عَلٰٓي اَرْبَعٍ ۭ يَخْلُقُ اللّٰهُ مَا يَشَاۗءُ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٤٥﴾

پہ څلورو (ښپو) | پیدا کوی اللّٰه | څہ چہ غواړی | بیشکہ اللّٰه | پہ هر څیز باندِ | قدرت لری

تګ کوی ، اللّٰه تعالیٰ چہ څہ غواړی هغہ پیدا کوی ، بیشکہ اللّٰه تعالیٰ پہ هر څیز باندِ قدرت لری

لَقَدْ اَنْزَلْنَآ اٰيٰتٍ مُّبَيِّنٰتٍ ۭ وَاللّٰهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَاۗءُ

بیشکہ | نازل کړل مونږ | آیتونہ | روښانہ | او اللّٰه | هدایت کوی | چا تہ چہ | غواړی

یقیناً مونږ واضحہ حکمونہ نازل کړل ، او اللّٰه تعالیٰ چہ دَ چا پہ حقلہ غواړی نو پہ سمہ

اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٤٦﴾ وَيَقُوْلُوْنَ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالرَّسُوْلِ

طرف دَ لارے سمے تہ | او دوی وائی | مونږ ایمان راؤړو | پہ اللّٰه | او پہ رسول باندِ

لارے ئے روان کړی ۔ او دا خلق وائی چہ مونږ اللّٰه تعالیٰ او دَ دهٔ پہ رسول باندِ ایمان راوړے

وَاَطَعْنَا ثُمَّ يَتَوَلّٰى فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ ۭ وَمَآ

او مونږ حکم ومنلو | بیا مخ واړوی | یوہ ډلہ | له دوی نہ | پس | له دے نہ | او نہ دی

دے او دَ هغوی حکمونہ مو ومنل خو دَ دے نہ پس هم دَ دوی یو تولے مخ اړوی او دا خلق

اُولٰۗىِٕكَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٤٧﴾ وَاِذَا دُعُوْٓا اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ لِيَحْكُمَ

دا خلق | مؤمنان | او هر کلہ چہ | دوی راوبللے شی | طرف دَ اللّٰه او دَ رسول دَ دهٔ تہ | چہ فیصلہ وکړی

(هیڅ کلہ) ایمان راوړونکی نہ دی ۔ او هر کلہ چہ دوی اللّٰه تعالیٰ او دَ دهٔ دَ رسول طرف تہ راوبللے شی

بَيْنَهُمْ اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿٤٨﴾ وَاِنْ يَّكُنْ لَّهُمُ الْحَقُّ

دَ دوی پہ مینځ کښے | نو ناڅاپہ یوہ ډلہ | له دوی نہ | مخ اړوی | او کہ چیرے وی | دَ دوی | حق

چہ دَ دوی ترمینځہ فیصلہ وکړی نو پہ دوی کښے یوہ ډلہ فوراً مخ واړوی ۔ او کہ چیرے دَ دوی پہ چا څہ حق

يَأْتُوْٓا اِلَيْهِ مُذْعِنِيْنَ ﴿٤٩﴾ اَفِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ اَمِ ارْتَابُوْٓا

نو راځي دوی | دهٔ طرف ته | فرمان منونکي | آيا دَ دوی په زړونو کښې | مرض دے | يا دوی په شک کښې پراته دي

حو ورته به راشي (دا خلق) نو بيا (رسول ته) فرمان منونکي راروان وي، آيا دَ دوی په زړونو کښې مرض دے يا په شک کښې پراته دي

اَمْ يَخَافُوْنَ اَنْ يَّحِيْفَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَرَسُوْلُهٗ ؕ بَلْ اُولٰٓئِكَ هُمُ

يا دوی ويريږي | چه ظلم به وکړي | الله | په دوی باندې | او رسول دَ دهٔ | بلکه هم دوی دي

يا دا انديښنه ورسره ده چه الله او رسول به پرې (ظلم) زياتے وکړي؟ داسے نهٔ ده بلکه دوی

الظّٰلِمُوْنَ ﴿٥٠﴾ اِنَّمَا كَانَ قَوْلَ الْمُؤْمِنِيْنَ اِذَا دُعُوْٓا اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ

ظالمان | بيشکه | ده | وينا | دَ مؤمنانو | هرکله چه دوی بللے شي | الله او دَ دهٔ دَ رسول طرف ته

په خپله ظالمان دي، هرکله چه مؤمنان الله تعالیٰ او دَ دهٔ دَ رسول طرف ته راؤبللے شي چه دَ دوی

لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ اَنْ يَّقُوْلُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا ؕ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ

چه هغه فيصله وکړي | دَ دوی په مينځ کښې | نو دوی وائي | مونږ واورېدل | او مونږ فرمانبرداري وکړه | او هم دوی دي

ترمينځهٔ فيصله وکړي نو دَ دوی خبره فقط دا وي چه مونږ واورېدل او حکم مو ومنلو او هم دا خلق

الْمُفْلِحُوْنَ ﴿٥١﴾ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَخْشَ اللّٰهَ وَيَتَّقْهِ

کامياب | او څوک چه | حکم مني دَ الله | او دَ دهٔ دَ رسول | او ويريږي | دَ الله نه | او تقوی اختيار کړي

کامياب دي. او څوک چه دَ الله تعالیٰ او دَ هغهٔ دَ رسول خبره مني او دَ الله تعالیٰ نه ويره کوي او دَ هغهٔ (د

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ﴿٥٢﴾ وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ

پس هم دا خلق | کاميابيدونکي دي | او دوی قسمونه خوري | په الله | پاخهٔ | قسمونه خپل

نافرمانئ) نه ځان بچ ساتي نو هم دا سے خلق به کامياب وي او دا خلق په الله تعالیٰ سخت قسمونه خوري کهٔ ته دوی ته

لَئِنْ اَمَرْتَهُمْ لَيَخْرُجُنَّ ؕ قُلْ لَّا تُقْسِمُوْا ۚ طَاعَةٌ مَّعْرُوْفَةٌ ؕ

کهٔ چرته ته وکړے دوی ته | نو خامخا به بهر ته لاړشي دوی | دوايه | قسمونه مهٔ خورئ | (ستاسو) فرمانبرداري | ظاهره ده

حکم وکړے نو دوی به ضرور (جهاد دَ پاره دَ کورونو نه) ووځي دوی ته ووايه، قسمونه مهٔ خورئ (ستاسو) فرمانبرداري

اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿٥٣﴾ قُلْ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا

بيشکه الله | ښهٔ واقف دے | له هغه څهٔ نه | چه تاسو کوئ | دوايه | حکم منئ دَ الله | او حکم منئ

معلومه ده، الله تعالیٰ ستاسو دَ ټولو کارونو نه ښهٔ خبردے (اے پيغمبره!) ورته ووايه چه تاسو دَ الله اطاعت کوئ

الرَّسُوْلَ ۚ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا عَلَيْهِ مَا حُمِّلَ وَعَلَيْكُمْ

دَ رسول | پس کهٔ چرے تاسو مخ وګرځوئ | پس بيشکه په پيغمبر دی | هغه څهٔ چه | په دهٔ لازم کړے شو | او په تاسو دی

او دَ رسول حکم منئ لو کهٔ تاسو بيا هم ترے نه مخ ګرځوئ نو (پوهه شئ چه) دَ رسول په غاړه خپلے ذمه وارئ دي

مَّا حُمِّلْتُمْ ؕ وَاِنْ تُطِيْعُوْهُ تَهْتَدُوْا ؕ وَمَا عَلَى الرَّسُوْلِ

هغه څهٔ چه | په تاسو لازم کړے شو | او کهٔ چرے تاسو دَ هغهٔ حکم منئ | نو هدايت به بيا مومئ | او نهٔ دی | دَ رسول په ذمه

او ستاسو په غاړه خپلے دي او کهٔ تاسو دَ هغهٔ خبره ومنله نو سمه لار به بيا مومئ او دَ رسول په ذمه خو نو څهٔ

إِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ﴿۵۴﴾ وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ

مگر | پیغام رسول | ښکاره | وعده کړې ده | الله | هغو خلقو سره | چه ایمان ئې راوړے دے | له تاسو نه

ښکاره خو صفا صفا (حکمونه) رسول دی ، په تاسو کښې چا چه ایمان راوړے دے او د نیکئ کارونه کوی

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْاَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ

او عملونه ئې وکړل | ښه | چه ضرور به دوی ته خلافت ورکړی | په زمکه کښې | لکه څنګه چه | ده خلافت ورکړو

نو الله تعالیٰ ورسره وعده کړې ده چه د ز مکے حکومت به ورله ورکړی لکه چه د دوئ نه پخوا خلقو

الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۠ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِيْنَهُمُ الَّذِي ارْتَضٰى لَهُمْ

هغو خلقو ته | چه وړاندې له دوی نه وو | او مضبوط به کړی | دوی دپاره | د دوی دین | هغه دین | چه ده خوښ کړے دے | د دوی دپاره

له ئې ورکړے وو ، او هغه دین به ورله مضبوط کړی کوم چه ئې دوئ له خوښ کړے دے

وَلَيُبَدِّلَنَّهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ خَوْفِهِمْ اَمْنًا ۭ يَعْبُدُوْنَنِيْ لَا يُشْرِكُوْنَ

او بدل له به ورکړی دوی ته | پس له ویرے د دوی نه | امن | دوی به عبادت کوی زما | شریک به نه مقرر وی

او د ویرے په بدل به ئې امن نصیب کړی ۔ (په شرط د دے) چه زما عبادت کوئ هیڅوک راسره

بِيْ شَيْـــًٔا ۭ وَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذٰلِكَ فَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿۵۵﴾

ما سره | هیڅ څیز | او څوک چه ناشکری وکړی | پس له دے نه | پس دغه خلق | دوی دی نافرمان ۔

نه شریکوئ ، او څوک چه د دے نه پس هم کفر غوره کړی نو هم دغه خلق نافرمانه دی

وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿۵۶﴾

او قائم ساتئ | مونځ | او ورکوئ زکوٰة | او حکم منئ د رسول | چه په تاسو | رحم وکړے شی

او (اے مسلمانانو!) د مونځونو پابندی ساتئ او زکوٰة ورکوئ او د رسول حکم منئ چه مهربانی درباندې وکړے شی ۔

لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مُعْجِزِيْنَ فِي الْاَرْضِ ۚ وَمَاْوٰىهُمُ النَّارُ ۭ

خیال مه کوه | په هغو چه | کافران دی | د عاجز کوونکو | په زمکه کښې | او ځائے د دوی | اور دے

دا خیال مه کوئ چه کافران به (مونږ ه) په زمکه کښې عاجزه کړی او د دوئ تیکاؤنړه دوزخ دے

وَلَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿۵۷﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِيَسْتَاْذِنْكُمُ الَّذِيْنَ

او دا بد ځائے | د ورتلو دے | اے ایمان والو! | اجازت دې اخلی له تاسو نه | هغه خلق

او هغه ډیر خراب ځائے دے ۔ اے مسلمانانو! ستاسو (خادمانو) مریانو له او هغې ماشومانو له چه د

مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ وَالَّذِيْنَ لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ مِنْكُمْ ثَلٰثَ مَرّٰتٍ ۭ

چه د هغوئ مالک شوی دی لاسونه ستاسو | او هغه (هلکان) چه | نه دی رسیدلی | حد د احتلام ته | له تاسو نه | درے ځله

عقل حد ته رسیدلی نه دی ، پکار دی چه په درے وخته کښې درنه (د راتلو) اجازت غواړی (یو)

مِنْ قَبْلِ صَلٰوةِ الْفَجْرِ وَحِيْنَ تَضَعُوْنَ ثِيَابَكُمْ مِّنَ الظَّهِيْرَةِ

وړاندې | د مونځ د صبا نه | او څه وخت چه | تاسو کوزوئ | جامے خپلے | د غرمے

د سحر د مونځ نه وړاندې او (بل) څه وخت چه تاسو د غرمے خپلے جامے وباسئ او (بل)

وَمِنۡ بَعۡدِ صَلٰوةِ الۡعِشَآءِ ۚ ثَلٰثُ عَوۡرٰتٍ لَّكُمۡ ؕ لَيۡسَ عَلَيۡكُمۡ

اد پس | له مانځهٔ دَ ماسختن نه | دا درے | وختونه دَ خلوتِ دي | دَ پاره ستاسو | نشته دے | په تاسو

دَ ماسختن دَ مونځ نه وروستو . (دا) درے وختونه ستاسو دَ پردے (رختونه) دي ، دَ دے درېو وختونو

وَلَا عَلَيۡهِمۡ جُنَاحٌۢ بَعۡدَهُنَّ ؕ طَوّٰفُوۡنَ عَلَيۡكُمۡ بَعۡضُكُمۡ

او نهٔ په دوی | څهٔ ګناه | دَ دے (وختونو) نه پس | چه راتلونکي دي دوی | په تاسو | ځنے له تاسو نه

سیوا (دَ دوی دَ اجازت نه بغیر تګ راتګ کښے) نهٔ په تاسو څهٔ ګناه شته نهٔ په دوی چه (کار دَ پاره تاسو) یو بل له

عَلٰى بَعۡضٍ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الۡاٰيٰتِ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيۡمٌ

په ځنو | دغه شان | بیانوی | الله | تاسو دَ پاره | آیتونه | او الله | پوهه

راځئ ، دغه شان الله تعالیٰ تاسو ته خپل حکمونه ښکاره کوی ، او الله تعالیٰ ډیر ښهٔ پوهه

حَكِيۡمٌ ۝٥٨ وَاِذَا بَلَغَ الۡاَطۡفَالُ مِنۡكُمُ الۡحُلُمَ فَلۡيَسۡتَاۡذِنُوۡا

دَ حکمت خاوند دے | او هر کله چه ورسیږی | هلکان | له تاسو نه | حد دَ احتلام ته | پس اجازت دِ غواړی دوی

دَ حکمت خاوند دے ، او هر کله چه ستاسو هلکان بالغان شی ، نو پکار دی چه هغوی هم

كَمَا اسۡتَاۡذَنَ الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ

لکه څنګه چه | اجازت غوښتلو | هغو خلقو چه | وړاندې له دوی نه وُو | دغه شان | بیانوی | الله

اجازت غواړی ، لکه چه وړاندې بنو (ذکر شوُو) خلقو ته دَ اجازت غوښتلو حکم شوے دے . دغه شان الله تعالیٰ تاسو دَ پاره خپل

لَكُمۡ اٰيٰتِهٖ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيۡمٌ حَكِيۡمٌ ۝٥٩ وَالۡقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَآءِ

دَ پاره ستاسو | ایتونه خپل | او الله | پوهه | دَ حکمت خاوند دے | او ډیرے زیاتے بوډئ | له ښځو نه

حکمونه په وضاحت سره بیانوی او الله تعالیٰ په هر څهٔ پوهه دَ حکمت خاوند دے . او زړے بوډئ کانے چه دَ نکاح

الّٰتِيۡ لَا يَرۡجُوۡنَ نِكَاحًا فَلَيۡسَ عَلَيۡهِنَّ جُنَاحٌ اَنۡ يَّضَعۡنَ

هغه چه | اُمید نهٔ لری | دَ نکاح | پس نشته دے | په دوئ | څهٔ ګناه | چه کیږدی دوی

اُمید ئے پاتے نهٔ وی ، دَ هغوئ هیڅ ګناه نشته که خپلے زیاتی جامے (لکه پړونے او

ثِيَابَهُنَّ غَيۡرَ مُتَبَرِّجٰتٍۭ بِزِيۡنَةٍ ؕ وَاَنۡ يَّسۡتَعۡفِفۡنَ خَيۡرٌ

خپلے (زیاتی) جامے | چه نهٔ وی ښکاره کوونکے | دَ ښائست خپل | او که احتیاط وکړی دوی | نو ډیره ښهٔ ده

لوپټه) کوز کړی خو داسے نه چه خپل ځولونه او سنګار ښائی ، او که د دے نه هم) احتیاط وکړی نو داورله

لَّهُنَّ ؕ وَاللّٰهُ سَمِيۡعٌ عَلِيۡمٌ ۝٦٠ لَيۡسَ عَلَى الۡاَعۡمٰى حَرَجٌ

دوی دَ پاره | او الله | آوریدونکے | پوهه دے | نشته دے | په ړوند | څهٔ ګناه

غوره ده او الله تعالیٰ هر څهٔ آوری په هر څهٔ پوهه دے . نهٔ په چا ړوند سړی څهٔ الزام شته ، او

وَّلَا عَلَى الۡاَعۡرَجِ حَرَجٌ وَّلَا عَلَى الۡمَرِيۡضِ حَرَجٌ وَّلَا

او نهٔ | په ګډ | څهٔ ګناه | او نهٔ | په بیمار | څهٔ ګناه | او نهٔ

نهٔ په چا ګډ سړی څهٔ ملامته شته ، او نهٔ په چا ناروغ څهٔ وبال شته ، او نهٔ

عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ اَنْ تَاْكُلُوْا مِنْۢ بُيُوْتِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ اٰبَآئِكُمْ

په ذات ستاسو | چه خورئ تاسو | له خپلو کورونو نه | یا له کورونو | دَ پلارانو خپلو نه

هیڅ په تاسو څهٔ ګناه نشته که تاسو دَ خپلو کورونو نه خوراک خورئ یا دَ پلارانو دَ کورونو نه

اَوْ بُيُوْتِ اُمَّهٰتِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ اِخْوَانِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ اَخَوٰتِكُمْ

یا له کورونو | دَ میندو خپلو نه | یا له کورونو | دَ ورونړو خپلو نه | یا له کورونو | دَ خویندو خپلو نه

یا دَ میندو دَ کورونو نه ، یا دَ ورونړو دَ کورونو نه ، یا دَ خویندو دَ کورونو نه

اَوْ بُيُوْتِ اَعْمَامِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ عَمّٰتِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ اَخْوَالِكُمْ

یا له کورونو | دَ ترونو خپلو نه | یا له کورونو | دَ پلارانو دَ خویندو خپلو نه | یا له کورونو | دَ ماما ګانو خپلو نه

یا دَ ترونو دَ کورونو نه ، یا دَ ماسی ګانو دَ کورونو نه ، یا دَ ماما ګانو دَ کورونو نه

اَوْ بُيُوْتِ خٰلٰتِكُمْ اَوْ مَا مَلَكْتُمْ مَّفَاتِحَهٗٓ اَوْ صَدِيْقِكُمْ ؕ

یا له کورونو | دَ مور دَ خویندو خپلو نه | یا له هغو کورونو نه | چه ستاسو په قبضه کښې دي | کنجیانې دَ هغې | یا له (کورونو) دَ دوستانو خپلو نه

یا دَ پیو ګانو دَ کورونو نه یا (دَ هغه کورونو نه) چه دَ هغې کنجئ ستاسو په اختیار کښې وي یا دَ خپلو دوستانو دَ (کورونو) نه

لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَاْكُلُوْا جَمِيْعًا اَوْ اَشْتَاتًا ؕ فَاِذَا دَخَلْتُمْ

نشته دے په تاسو | څهٔ ګناه | چه تاسو وُخورئ | ټول یو ځائے | یا جُدا جُدا | پس هرکله چه | تاسو ورننه ځئ

په تاسو دے کښې هیڅ ګناه نشته که په یو ځائے شریک خوراک کوئ او که جدا جدا اکوئ خو چه کله دغه کورونو ته

بُيُوْتًا فَسَلِّمُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ تَحِيَّةً مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُبٰرَكَةً

کورونو ته | نو سلام کوئ | خپلو خلقو ته | دُعاءِ خیر | له طرفه دَ الله نه | دَ برکت

ورننوځئ نو (اول) خپلو خلقو ته سلام کوئ ، چه دَ دُعا په شان دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه مقرر دے، برکتی

طَيِّبَةً ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿٦١﴾

پاکیزه | دغه شان | بیانوی | الله | دَ پاره ستاسو | آیتونه | دَ پاره دَ چه تاسو | پوهه شئ

(او) پاکیزه ۔ دغه شان الله تعالیٰ تاسو ته خپل حکمونه څرګند آورُوی چه تاسو پرے بنهٔ پوهه شئ ۔

اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَاِذَا كَانُوْا

بیشکه | مؤمنان | هغه خلق دی چه | ایمان ئے راوړو | په الله | او په رسول دَ دهٔ | او هرکله چه وی دوی

مؤمنان خو بس هم هغه خلق دی چه الله تعالیٰ او دَ دهٔ په رسول باندې ایمان راوړی او هرکله چه دَ رسول

مَعَهٗ عَلٰٓى اَمْرٍ جَامِعٍ لَّمْ يَذْهَبُوْا حَتّٰى يَسْتَاْذِنُوْهُ ؕ

دَ دهٔ سره | په یو داسے کار | چه اجتماعی وی | نو دوی نهٔ ځی | ترڅو چه | اجازت وغواړی دوی له پیغمبره نه

ملګرتیا ته په یو داسے کار پسے راټول شوی وی چه دَ هغې دَ پاره ټولنه شوی وی نو تر څو چه اجازت وانخلی تر هغې نهٔ

اِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَاْذِنُوْنَكَ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ

بیشکه کوم خلق چه | اجازت غواړی له تانه | هم دا هغه خلق دی | کوم چه | ایمان راوړی | په الله

پستنه کیږی (اے پیغمبره !) څوک چه له تانه اجازت اخلی ځی نو هم دا هغه خلق دی چه الله تعالیٰ او دَ دهٔ په رسول

وَرَسُوْلِهٖ ۚ فَاِذَا اسْتَاْذَنُوْكَ لِبَعْضِ شَاْنِهِمْ فَاْذَنْ لِّمَنْ

اوږدهٔ په رسول | پس هرکله چه | دوی اجازت وغواړی له تانه | د پاره د ځنې کار خپل | نو اجازت ورکړه | هغه چا ته چه

ایمان لری، پس هرکله چه دوی د خپل ځنې کار د پاره له تانه اجازت غواړی نو په دوی کښې چه تهٔ چا ته

شِئْتَ مِنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمُ اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝

غواړې تهٔ | له دوی نه | او معافی غواړه | دوی د پاره | د الله رب | بیشکه الله | بخښونکے | مهربان دے

غواړې اجازت ورکړه او د دوی د پاره د الله تعالیٰ نه بخښنه غواړه بیشکه الله تعالیٰ بخښونکے مهربان دے

لَا تَجْعَلُوْا دُعَاۗءَ الرَّسُوْلِ بَيْنَكُمْ كَدُعَاۗءِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا ۭ

تاسو مهٔ جوړوئ | بلنه | د پیغمبر | په خپل مینځ کښې | په شان د بلنے | ستاسو تو بل ته

(مؤمنانو!) تاسو د رسول بلنه داسے (معمولی) مهٔ گڼړئ لکه چه تاسو په خپل مینځ کښې یو بل ته را بلئ

قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ يَتَسَلَّلُوْنَ مِنْكُمْ لِوَاذًا ۚ فَلْيَحْذَرِ

یقینا پیژنی | الله | هغه خلق چه | روغونه اوځی | له تاسو نه | غلے شان | پس پکار دهٔ چه ووېرېږی

یقینا الله تعالیٰ هغه خلق ډیر ښهٔ پیژنی چه یو بل ته نښتی تو اوغلی اوځی (گوښه کیږی) نو څوک چه د الله تعالیٰ د

الَّذِيْنَ يُخَالِفُوْنَ عَنْ اَمْرِهٖٓ اَنْ تُصِيْبَهُمْ فِتْنَةٌ اَوْ يُصِيْبَهُمْ

هغه خلق چه | مخالفت کوی | د ده د حکم | چه ورسیږی دوی ته | مصیبت | یا ورسیږی دوی ته

حکم نه مخالفت کوی هغوی له دا ویره پکار ده چه (دنیا کښے) پرهغه آفت رانازل نهٔ شی یا دردناک عذاب کښے

عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ اَلَآ اِنَّ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ

عذاب | دردناک | خبردار | بیشکه | هم د الله دی | هغه څه | چه په آسمانونو کښے

(په آخرت کښے) راونهٔ نیسی، یاد ساتئ چه په آسمانونو او په ځمکه کښے هر څهٔ چه دی هغه ټول د الله تعالیٰ

وَالْاَرْضِ ۭ قَدْ يَعْلَمُ مَآ اَنْتُمْ عَلَيْهِ ۭ وَيَوْمَ يُرْجَعُوْنَ

او ځمکه (کښے دی) | بیشکه الله پیژنی | په کوم (حال) کښے چه تاسو یئ | او په کومه ورځ چه به | دوی واپس کړے شی

دی . هغه ته ستاسو دا موجوده حالت هم ښهٔ معلوم دے او په کومه ورځ چه خلق هغهٔ ته واپس

اِلَيْهِ فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا ۭ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۝

د ه طرف ته | بیا دے به وښائی دوی ته | هغه څهٔ | چه کړی دی دوی | او الله | په هر څیز | پوهه دے

کړے شی نو هغه به ورته ټول کارونه په گوته کړی او الله تعالیٰ په هر څهٔ پوهه دے

سُوْرَةُ الْفُرْقَانِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ سَبْعٌ وَسَبْعُوْنَ اٰيَةً وَسِتُّ رُكُوْعَاتٍ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة فرقان په مکه کښے نازل شوے دے | (شروع) د الله په نوم سره چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښے ۷۷ آیتونه او ۶ رکوع گانے دی

د الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم خاوند دے

تَبٰرَكَ الَّذِيْ نَزَّلَ الْفُرْقَانَ عَلٰى عَبْدِهٖ لِيَكُوْنَ لِلْعٰلَمِيْنَ

ډیر با برکت دے | هغه ذات چه | نازل ئے کړو | په حق او باطل کښے فرق کوونکے (قرآن) | په خپل بنده باندے | چه هغه دے | د عالمونو د پاره

هغه الله ډیر با برکته دے چا چه خپل بنده (محمد ﷺ) باندے قرآن نازل کړو چه د ټولو جهانونو د پاره د

نَذِيرًا ۝١ الَّذِي لَهُ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَلَمْ يَتَّخِذْ

ویرونکے | هغه ذات | چه دَ هغهٔ ده | بادشاهي | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | او نهٔ ئے دے نیولے

(عذاب نه) ویرونکے وی. یوازے هغه ذات دے چه په آسمانونو او په زمکه دَ هغهٔ بادشاهي ده او هغهٔ هیڅوک

وَلَدًا وَّلَمْ يَكُن لَّهُ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ

څوک اولاد | او نشته دے | دَ دهٔ | (څوک) شریک | په بادشاهئ کښے | او هغه پیدا کړو | هر یو څیز

څوک ځوئ کړے نه دے، نهٔ ورسره په حکومت کښے څوک شریک شته، او هغهٔ هر څیز پیدا کړے دے.

فَقَدَّرَهُ تَقْدِيرًا ۝٢ وَاتَّخَذُوا مِن دُونِهِ آلِهَةً لَّا يَخْلُقُونَ

پس اندازه ئے کړو | په اندازه کولو سره | او دوی ونیول | دَ دهٔ نه سیوا | معبودان | چه نهٔ پیدا کوی

بیا ئے دَ هر یو دَ پاره جُدا جُدا اندازه ایښے ده او (دے مشرکانو) دَ خدائے نه علاوه نور داسے خدایان نیولی دی چه هیڅ څیز

شَيْئًا وَّهُمْ يُخْلَقُونَ وَلَا يَمْلِكُونَ لِأَنفُسِهِمْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا

څهٔ څیز | او دوی | پیدا کیدے شی | او دوی اختیار نهٔ لری | دَ خپل ځان دَ پاره | دَ څهٔ زیان | او نهٔ دَ څهٔ فائدے

پیدا کولے نهٔ شی بلکه دوی خپله پیدا کړے شوی دی او دوی خپل ځان دَ پاره دَ زیان او فائدے څهٔ اختیار نهٔ لری

وَلَا يَمْلِكُونَ مَوْتًا وَّلَا حَيٰوةً وَّلَا نُشُورًا ۝٣ وَقَالَ الَّذِينَ

او نهٔ دوی اختیار لری | دَ مرګ | او نهٔ دَ ژوند | او نه بیا دَ راپورته کیدو | او وائی | هغه خلق چه

او نهٔ دَ چا دَ مرګ واک لری او نهٔ دَ چا دَ ژوند او نهٔ دَ چا دَ سر دوباره ژوندی کولو. او کافران وائی

كَفَرُوا إِنْ هٰذَا إِلَّا إِفْكٌ افْتَرٰهُ وَأَعَانَهُ عَلَيْهِ

کافران دی | چه نهٔ دے دا (قرآن) | مګر دروغ | چه تړلے ئے دے له ځان نه | او مدد کړے دے دَ دهٔ | په دے

چه دا (قرآن) خو بس تش دروغ دی چه دِے سړی دَ ځان نه راجوړ کړی دی او نورو خلقو ورسره دَ دے په

قَوْمٌ آخَرُونَ ۚ فَقَدْ جَاءُو ظُلْمًا وَّزُورًا ۝٤ وَقَالُوا أَسَاطِيرُ

نورو خلقو | بیشکه عمل وکړو دوی | دَ ظلم | او دَ دروغو | او دوی وائی | چه دا قیصئ دی

جوړولو کښے امداد کړے دے (په دِے دنیا کښے) دِے خلقو ډیر زیاتے وکړو او غټ دروغ ئے ووئیل او دوئ وائی چه دا

الْأَوَّلِينَ اكْتَتَبَهَا فَهِيَ تُمْلٰى عَلَيْهِ بُكْرَةً وَّأَصِيلًا ۝٥ قُلْ

دَ پخوانو خلقو | چه دهٔ لیکلی دی | پس هغه | ویلے کیدے شی په دهٔ | سحر | او ماښام | ووایه

دَ پخوانو خلقو قیصئ دی چه دِے سړی په چا لیکلی دی نو هم دغه نوشتے ورته صبا بیګا آوروله شی نهٔ ورته

أَنزَلَهُ الَّذِي يَعْلَمُ السِّرَّ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ۚ إِنَّهُ كَانَ

نازل کړے دے دا | هغه ذات | چه پیژنی | راز | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | بیشکه دے | دے

ووایه چه دا (قرآن) هغه ذات نازل کړے دے چه هغهٔ ته دَ آسمانونو او دَ زمکے هر یو راز معلوم دے بیشکه هغه

غَفُورًا رَّحِيمًا ۝٦ وَقَالُوا مَالِ هٰذَا الرَّسُولِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ

بخښونکے | مهربان | او دوی ووئیل | څهٔ شوی په دِے پیغمبر باندِ | چه خوری | طعام

بخښونکے مهربان دے. او دوی وائی چه دا لا څنګه پیغمبر دے چه خوراکونه خوری

يَمْشِي فِي الْأَسْوَاقِ ۗ لَوْلَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مَلَكٌ فَيَكُونَ مَعَهُ

په بازارونو کښې ګرځي ؟ ده ته نه څوک فرښته ولې رانه لیږلې شوه چې هغه ورسره د ویرونکو

نَذِيرًا ﴿٧﴾ أَوْ يُلْقَىٰ إِلَيْهِ كَنزٌ أَوْ تَكُونُ لَهُ جَنَّةٌ يَأْكُلُ مِنْهَا

ملګرې وې یا ورته د غیبو خزانه ورکړې شوې وې یا ورسره باغ وې چې د هغه نه ئې خوړلې (خیښتلې)

وَقَالَ الظَّالِمُونَ إِن تَتَّبِعُونَ إِلَّا رَجُلًا مَّسْحُورًا ﴿٨﴾ انظُرْ

او ظالمان وائي چې تاسو خلق خو په یو داسې سړي پسې روان یئ چې جادو پرې شوے دے. اے نبي !

كَيْفَ ضَرَبُوا لَكَ الْأَمْثَالَ فَضَلُّوا فَلَا يَسْتَطِيعُونَ سَبِيلًا ﴿٩﴾ ع

وګوره چې دوئ ستا په حقله څنګه عجیبه عجیبه خبرې کوي، پس دوئ ګمراه شول نو څکه دوئ سمه لار موندلے نه

تَبَارَكَ الَّذِي إِن شَاءَ جَعَلَ لَكَ خَيْرًا مِّن ذَٰلِكَ جَنَّاتٍ

شي، هغه ذات ډیر برکت لرې چې که وغواړي نو تاله به د دې نه هم بهتر څیز ورکړي (یعني) باغونه چې

تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ وَيَجْعَل لَّكَ قُصُورًا ﴿١٠﴾ بَلْ كَذَّبُوا

د هغې (د اُونو) لاندې به نهرونه بهیږي او تاله به محلونه جوړ کړي - خبره دا ده چې دا خلق

بِالسَّاعَةِ ۖ وَأَعْتَدْنَا لِمَن كَذَّبَ بِالسَّاعَةِ سَعِيرًا ﴿١١﴾ إِذَا رَأَتْهُم

د قیامت نه منکر دي او څوک چې د قیامت نه منکر دي نو موږ هغوئ له دوزخ تیار کړے دے - څه وخت چې هغه

مِّن مَّكَانٍ بَعِيدٍ سَمِعُوا لَهَا تَغَيُّظًا وَزَفِيرًا ﴿١٢﴾ وَإِذَا أُلْقُوا مِنْهَا

(دوزخ) داخلیدونکي خلق د لرې نه ووینې نو دوئ به د هغې زوږ او شور واوري - او هر کله چې دوئ د دوزخ په

مَكَانًا ضَيِّقًا مُّقَرَّنِينَ دَعَوْا هُنَالِكَ ثُبُورًا ﴿١٣﴾ لَّا تَدْعُوا الْيَوْمَ

یو تنګ ځائے کښې په زنځیرونو کښې تړلي وغورزولي شي، نو هلته به د مرګ دعاګانې وغواړي (ورته به ووئیلے شي چه)

ثُبُورًا وَاحِدًا وَادْعُوا ثُبُورًا كَثِيرًا ﴿١٤﴾ قُلْ أَذَٰلِكَ خَيْرٌ أَمْ جَنَّةُ الْخُلْدِ

نن یو مرګ مه غواړئ بلکه ډیر ډیر مرګونه وغواړئ - تپوس ترې وکړه چې دا (دوزخ) غوره دے که د همیشه جنت

الَّتِیْ وُعِدَ الْمُتَّقُوْنَ ؕ کَانَتْ لَهُمْ جَزَآءً وَّمَصِیْرًا ﴿۱۵﴾ لَهُمْ فِیْهَا

هغه چه | وعده ئې شوې ده د متقیانو سره | دی به | دوی ځ پاره | جزا | او ځائې د بیرته ورتللو | دوی پاره دی | په هغې کې

د کوم چه د نیکو خلقو سره وعده شوې ده، هغه د دوی د پاره بدله او د واپس ورتلو ځائې دے، هلته چه دوی څه

مَا یَشَآءُوْنَ خٰلِدِیْنَ ؕ کَانَ عَلٰی رَبِّکَ وَعْدًا مَّسْئُوْلًا ﴿۱۶﴾ وَیَوْمَ

هغه څه چه دوی ئې غواړی | همیشه | دی | ده | په رب ستا | وعده | چه سوال ئې شوے | او په کومه ورځ چه

غواړی هغه به ورته تیار پراته وی، همیشه به په کښې وسیږی دا یوه وعده ده ستا د رب په ذمه د غوښتلو قابله او په کومه ورځ

یَحْشُرُهُمْ وَمَا یَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَیَقُوْلُ ءَاَنْتُمْ

هغه جمع کړی دوی | او هغه څه چه دوی ئې عبادت کولو | سیوا | د الله نه | نو پوښتنه به وکړی | آیا تاسو

چه (الله) دوی را جمع کړی او ورسره هغه معبودان هم چه دوی به ئې د الله تعالیٰ نه بغیر عبادت کولو نو بیا به ورته ووائی چه آیا تاسو

اَضْلَلْتُمْ عِبَادِیْ هٰۤؤُلَآءِ اَمْ هُمْ ضَلُّوا السَّبِیْلَ ﴿۱۷﴾ قَالُوْا سُبْحٰنَکَ

ګمراه کړی وو | زما دا بندګان | یا دوی | په خپله غلطه کړے ده | لار | دوی به ووائی | پاک ئې ته

زما دا بندګان ګمراه کړی وو؟ یا دوی په خپله د لارے نه بے لارے شوی وو؟ هغوی به ووائی چه ته پاک ئې

مَا کَانَ یَنْۢبَغِیْ لَنَاۤ اَنْ نَّتَّخِذَ مِنْ دُوْنِکَ مِنْ اَوْلِیَآءَ وَلٰکِنْ مَّتَّعْتَهُمْ

نه دی | مناسب مونږ د پاره | چه مونږ ونیسو | بے له تا نه | څوک دوست | او لیکن | فائده در کړه تا دوی ته

مونږ د پاره دا خبره مناسب نه وه چه تا نه بغیر مو بل مدد ګار نیولے لیکن (حقیقت دا دے چه) هم تا هغوی

وَاٰبَآءَهُمْ حَتّٰی نَسُوا الذِّکْرَ ۚ وَکَانُوْا قَوْمًاۢ بُوْرًا ﴿۱۸﴾ فَقَدْ

او د دوی پلار انو ته | تر دے چه | هیر کړو دوی | (ستا) یاد | او وُو | دا خلق | هلاکیدونکی | پس بیشکه

او د هغوی پلار انو له خوشحالی ورکړے وه تر دے چه (ستا) یاد ئې هیر کړل او تباه برباد شول نو (دغې فرضی معبودانو)

کَذَّبُوْکُمْ بِمَا تَقُوْلُوْنَ ۙ فَمَا تَسْتَطِیْعُوْنَ صَرْفًا وَّلَا نَصْرًا ۚ وَمَنْ

هغوی دروغژن کړی ئې تاسو | په هغه څه کښې چه تاسو وایئ | پس نه تاسو طاقت لرئ | د دفع کولو | او نه د مدد کولو | او څوک چه

ستاسو خبرے په خپله دروغژنے کړے نو اوس نه خو تاسو په خپله دا (عذاب) بند ولے شئ او نه د چا نه مدد حاصلولے شئ او په

یَّظْلِمْ مِّنْکُمْ نُذِقْهُ عَذَابًا کَبِیْرًا ﴿۱۹﴾ وَمَاۤ اَرْسَلْنَا قَبْلَکَ

ظلم کوی | له تاسو نه | و به څکوو مونږ هغه ته | عذاب | ډیر لوئے | او نه دی | لیږلی مونږ | وړاندې له تا نه

تاسو کښې هر څوک چه (په ځان) ظلم کوی نو مونږ به پرے د غټ عذاب مزه وڅکوو او مونږ چه ستا نه وړاندې هم څومره

مِنَ الْمُرْسَلِیْنَ اِلَّاۤ اِنَّهُمْ لَیَاْکُلُوْنَ الطَّعَامَ وَیَمْشُوْنَ فِی الْاَسْوَاقِ ؕ

پیغمبران | مګر یقیناً هغوی | خوړلو | طعام | او ګرځیدل به | په بازارونو کښې

پیغمبران لیږلی دی نو ټولو به خوراک هم خوړل، او په بازارونو کښې به هم ګرځیدل او

وَجَعَلْنَا بَعْضَکُمْ لِبَعْضٍ فِتْنَةً ؕ اَتَصْبِرُوْنَ ۚ وَکَانَ رَبُّکَ بَصِیْرًا ﴿۲۰﴾ ع

او جوړ کړی دی مونږ | ځینې له تاسو | ځینو د پاره | آزمیښت | آیا تاسو به صبر وکړئ | او دے ستا رب | لیدونکے

مونږ تاسو د یو بل د پاره د (ذریعه) آزمیښت ګرځولی یئ تو اوس هم صبر کوئ (که نه)؟ او ستا رب د بیرښه دیخې کوری

وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا الْمَلٰٓئِكَةُ

او وويل | هغوخلقو | چه اُميد نه لري | دَملاقات زموږ | چه ولے نازلے نه شوے | په موږ | فرښتے

او کوم خلق چه موږ سره دَ ملاقات اُميد نه لري هغوي وويل چه موږ باندې فرښتے ولے نازلے نه کړے شوے

اَوْ نَرٰى رَبَّنَا ۭ لَقَدِ اسْتَكْبَرُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ وَعَتَوْ عُتُوًّا كَبِيْرًا ﴿٢١﴾

يا موږ ووينو | خپل رب | بيشکه دوي تکبر وکړو | په خپل زړونو کښے | او سرکشي وکړه دوي | سرکشي لويه

يا موږ خپل رب ليدلے وے، دوي خپل ځان ډير لوئے گنړلے دے او له حد نه ډير لرے وتلي دي

يَوْمَ يَرَوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ لَا بُشْرٰى يَوْمَئِذٍ لِّلْمُجْرِمِيْنَ وَيَقُوْلُوْنَ

په کومه ورځ چه | دوي به ووينی | فرښتے | (نو) هيڅ خوشحالي به نه وي | په دغه ورځ | گناهگارانو دَپاره | او وائي به دوي

په کومه ورځ چه دوي فرښتے ووينی نو دغه ورځ به دَ مجرمانو دَ پاره دَ خوشحالئ ورځ نه وي. او دا به وائي

حِجْرًا مَّحْجُوْرًا ﴿٢٢﴾ وَقَدِمْنَآ اِلٰى مَا عَمِلُوْا مِنْ عَمَلٍ

پناه غواړو | په پناه غوښتونو سره | او موږ به متوجه شو | طرف دَ هغه څه ته | چه کړي دي دوي | له څه عمل نه

چه پناه غواړو پناه. او موږ به دَ دوي دَ عملونو طرف ته توجه وکړو

فَجَعَلْنٰهُ هَبَآءً مَّنْثُوْرًا ﴿٢٣﴾ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ يَوْمَئِذٍ خَيْرٌ

نو کړو به موږ هغه | ذرے | خورے شوے | اهل جنت به | په دغه ورځ (وي) | به ښه

نو هغه به وړل دَ (تالا ترغه) گرد لکه الوتونکے گرد. دَ جنت خاوندان به په دغه ورځ په ښو ځايونو اوښائسته

مُّسْتَقَرًّا وَّاَحْسَنُ مَقِيْلًا ﴿٢٤﴾ وَيَوْمَ تَشَقَّقُ السَّمَآءُ بِالْغَمَامِ وَنُزِّلَ

هستوگنه کښے | او په ډير ښه | آرام ځائے کښے | او په کومه ورځ چه | دَ چوي | آسمان | په وريځے سره | او راکوزے به کړے شي

خراب ځايونو کښے په آرام ناست وي. او په کومه ورځ چه دَ بوے وريځے نه آسمان وُچوي او ډيرے ډيرے

الْمَلٰٓئِكَةُ تَنْزِيْلًا ﴿٢٥﴾ اَلْمُلْكُ يَوْمَئِذِ ۣالْحَقُّ لِلرَّحْمٰنِ ۭ وَكَانَ يَوْمًا

فرښتے | په راکوزولو سره | بادشاهي به | په دغه ورځ | رښتيني | دَ (الله) رحمٰن وي | او وي به | دغه ورځ

فرښتے (په قطارونو) راکوزے کړے شي. په دغه ورځ به رښتينے حکومت دَ رحمٰن (خدائے) وي او دغه به په

عَلَى الْكٰفِرِيْنَ عَسِيْرًا ﴿٢٦﴾ وَيَوْمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ عَلٰى يَدَيْهِ يَقُوْلُ

په کافرانو باندې | ډيره سخته | او په کومه ورځ چه | چکونه به لگوي | ظالم | په خپلو دواړو لاسونو | وائي به

کافرانو ډيره سخته ورځ وي او په دغه ورځ به ظالم خپلے زگوتے) لاسونه چيچي، دا به وائي

يٰلَيْتَنِى اتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُوْلِ سَبِيْلًا ﴿٢٧﴾ يٰوَيْلَتٰى لَيْتَنِىْ

اے کاش! | چه نيولے وے ما | سره | دَ پيغمبر | لار | هائے زما بد نصيبه! | افسوس چه

چه اے کاش! زه دَ پيغمبر سره په (سمه) لار تلے وے، هائے زما بد نصيبه! افسوس چه فلانے

لَمْ اَتَّخِذْ فُلَانًا خَلِيْلًا ﴿٢٨﴾ لَقَدْ اَضَلَّنِىْ عَنِ الذِّكْرِ بَعْدَ اِذْ

ما نه وے نيولے | فلانے | دوست | بيشکه هغه بے لارے کړم زه | له نصيحت نه | پس له هغے نه چه

سړے ما آشنا کړے نه وے. دغه آشنا خو زه دَ هغے نه پس گمراه کړم چه نصيحت راته راکوټه

جَآءَنِیْ ؕ وَكَانَ الشَّیْطٰنُ لِلْاِنْسَانِ خَذُوْلًا ﴿٢٩﴾ وَقَالَ الرَّسُوْلُ

راغلے وو ماته | او دے | شیطان | دَ انسان | رسوا کوونکے | او ووئیل | پیغمبر

راغلے ؤو، او شیطان (دَ همیشه نه) دَ انسان رسوا کوونکے دے. او رسول (صلی الله علیه وسلم) به وائی

یٰرَبِّ اِنَّ قَوْمِی اتَّخَذُوْا هٰذَا الْقُرْاٰنَ مَهْجُوْرًا ﴿٣٠﴾ وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا

ای زما ربه! | بیشکه زما قوم | نیولے وو | دا | قرآن | پریښودلے شوے | او دغه شان | جوړ کړل مونږ

چه ای زما ربه! زما قوم دا قرآن پریښودے وو، او دغه شان مونږ دَ هر

لِكُلِّ نَبِیٍّ عَدُوًّا مِّنَ الْمُجْرِمِیْنَ ؕ وَكَفٰی بِرَبِّكَ هَادِیًا وَّنَصِیْرًا ﴿٣١﴾

هر نبی دَ پاره | دښمنان | له ګناهګارانو نه | او کافی دے | ستا رب | لار ښودونکے | او مدد ورکوونکے

نبی دَ پاره له ګناهګارانو نه دښمنان جوړ کړی دی او ستا رب لار ښودونکے او دَ مدد دَ پاره کافی دے

وَقَالَ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَیْهِ الْقُرْاٰنُ جُمْلَةً وَّاحِدَةً ۛۚ

او وائی | هغه خلق | چه کافران دی | ولے نازل نه کړے شو | په پیغمبر | قرآن | په یو ځل

او دا کافران وائی چه په دے سړی باندې (ټول) قرآن په یو ځل ولے راکوز نه شو؟

كَذٰلِكَ ۛۚ لِنُثَبِّتَ بِهٖ فُؤَادَكَ وَرَتَّلْنٰهُ تَرْتِیْلًا ﴿٣٢﴾

دغه شان | دَ پاره دَ دے چه مضبوط کړو مونږ | په دے سره | زړه ستا | او لوستلو مونږ دا | په قلاره قلار

داځکه (لږ لږ راغے) چه دَ دے په ذریعه مونږ ستا زړه مضبوط کړو او مونږ (ځکه) دا کتاب په ورو ورو (ستا وړاندې)

وَلَا یَاْتُوْنَكَ بِمَثَلٍ اِلَّا جِئْنٰكَ بِالْحَقِّ وَاَحْسَنَ تَفْسِیْرًا ﴿٣٣﴾

او نه راوړی دوی تاته | څه مثال | مګر راوړو مونږ تاته | جواب حق | او ډیر ښه | وضاحت

لوستلے دے او دا خلق چه تاته هر څنګه عجیبه سوال راوړاندې کړی نو مونږ دَ هغې سم جواب او ښه واضح (جواب) تاته

اَلَّذِیْنَ یُحْشَرُوْنَ عَلٰی وُجُوْهِهِمْ اِلٰی جَهَنَّمَ ۙ اُولٰٓئِكَ شَرٌّ

کوم خلق چه | به جمع کړے شی | پړ بوتونکی په مخونو خپلو | په طرف دَ دوزخ | هم دا خلق دی | ډیر بد

دُنیا یو، دا هغه خلق دی چه پړمخے به دوزخ ته بوتلے شی. دَ دوی ځائے ډیر خراب

مَّكَانًا وَّاَضَلُّ سَبِیْلًا ﴿٣٤﴾ وَلَقَدْ اٰتَیْنَا مُوْسَی الْكِتٰبَ وَجَعَلْنَا

په مقام کښے | او ډیر بے لاره دی | دَ لارے نه | او بیشکه | مونږ ورکړے وو | موسیٰ ته | کتاب | او جوړ کړو مونږ

دے او دَ لارے نه ډیر زیات بے لارے روان دی، او مونږ موسیٰ ؑ له کتاب ورکړو، او دَ دهٔ سره مو

مَعَهٗٓ اَخَاهُ هٰرُوْنَ وَزِیْرًا ﴿٣٥﴾ فَقُلْنَا اذْهَبَآ اِلَی الْقَوْمِ الَّذِیْنَ

دَ دهٔ سره | دَ دهٔ ورور | هارون | مددګار | پس مونږ ووئیل | لاړ شئ تاسو | هغه قوم ته | کوم چه

دَ دهٔ ورور هارون ؑ مددګار مقرر کړے وو، نو مونږ ورته ووئیل چه تاسو دواړه هغه خلقو ته ورشئ

كَذَّبُوْا بِاٰیٰتِنَا ؕ فَدَمَّرْنٰهُمْ تَدْمِیْرًا ﴿٣٦﴾ وَقَوْمَ نُوْحٍ لَّمَّا كَذَّبُوا

دروغژن کړل | زمونږ آیتونه | نو مونږ هلاک کړل دوی | په هلاکولو سره | او قوم دَ نوح ؑ (هم) | هرکله چه | دروغ وګڼل دوی

چه زمونږ خبرے ئے دروغژنے کړی دی بیا مونږ دا (کفار) هلاک کړل. او مونږ دَ نوح ؑ قوم هم تباه کړو څه وخت چه

الرُّسُلَ اَغْرَقْنٰهُمْ وَجَعَلْنٰهُمْ لِلنَّاسِ اٰيَةً ؕ وَاَعْتَدْنَا

پیغمبران | (نو) مونږ غرق کړل دوی | او مونږ وګرځول دوی | خلقو دَپاره | یوه نښه | او تیار کړے دے مونږ

معنوی پیغمبران دروغژن وګڼل نو مونږ ډوب کړل او دَ خلقو دَپاره مو (دَ عبرت) نښه کړل، او مونږ ظالمانو له

لِلظّٰلِمِيْنَ عَذَابًا اَلِيْمًا ۝٣٧ وَّعَادًا وَّثَمُوْدَاۡ وَاَصْحٰبَ الرَّسِّ وَقُرُوْنًا ۢ

ظالمانو دَپاره | عذاب | دردناک | او (قوم دَ) عاد | او ثمود | او اهل دَ رس | او نورو قومونو ته (هم)

دردناک عذاب تیار کړے دے ۔ او دغه شان مو عاد او ثمود او اصحاب رس او دَ دوی ترمینځه نور ډیر

بَيْنَ ذٰلِكَ كَثِيْرًا ۝٣٨ وَكُلًّا ضَرَبْنَا لَهُ الْاَمْثَالَ ؗ وَكُلًّا تَبَّرْنَا

په مینځ دَ دوی کښې | ډیر | او دَ هر یو دَپاره | مونږ بیان کړل | مثالونه | او هر یو | مونږ هلاک کړل

قومونه (تباه کړل) ۔ او مونږ هر یو ته عجیبه عجیبه مثالونه بیان کړل او (بیا) هر یو مو (دَ انکار په

تَتْبِيْرًا ۝٣٩ وَلَقَدْ اَتَوْا عَلَى الْقَرْيَةِ الَّتِيْٓ اُمْطِرَتْ مَطَرَ السَّوْءِ ؕ

په هلاکولو سره | او بیشکه تیر شوی دی دوی | په هغه کلی (هم) | په کوم چه | وَرَوَلے شوے وو | باران | ډیر خراب

وجه) بالکل برباد کړل او دا خلق دَ هغې کلی په زمکه تګ راتګ کوی چه (دَ کاڼړو) باران پرې ډیر بد بد راوَرولے شوے وو

اَفَلَمْ يَكُوْنُوْا يَرَوْنَهَا ۚ بَلْ كَانُوْا لَا يَرْجُوْنَ نُشُوْرًا ۝٤٠

پس آیا نهٔ وُو دوی | چه لیدلے وے دوی هغه | بلکه | اُمید نهٔ لرلو دوی | دَ راپورته کیدلو

نو آیا دا خلق دغې کلی ته نهٔ ګوری؟ (نا) بلکه دا خلق دَ دوباره ژوندی کیدو اُمید نهٔ لری ۔

وَاِذَا رَاَوْكَ اِنْ يَّتَّخِذُوْنَكَ اِلَّا هُزُوًا ؕ اَهٰذَا الَّذِيْ بَعَثَ اللّٰهُ

او هر کله چه | دوی ووینی تا | نو دوی نهٔ کوی تا سره (څهٔ نور) | سیوا دَ مذاق نه | چه آیا دا دے | کوم چه | راولیږلو الله

او هر کله چه دا خلق تا ته ګوری نو تا پورے ملنډے کوی چه آیا دا هغه سړے دے چه الله تعالیٰ پیغمبر

رَسُوْلًا ۝٤١ اِنْ كَادَ لَيُضِلُّنَا عَنْ اٰلِهَتِنَا لَوْلَآ اَنْ صَبَرْنَا عَلَيْهَا ؕ

پیغمبر؟ | نزدے وه چه | ګمراه کړی دے مونږ | زمونږ دَ معبودانو نه | کهٔ چرے مونږ ټینګ نهٔ وے | په هغې

کړے رالیږلے دے ۔ دے سړی خو به مونږ دَ خپلو معبودانو نه اړولی وُو کهٔ مونږ پرے کلک ولاړ پاتے نهٔ وے

وَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ حِيْنَ يَرَوْنَ الْعَذَابَ مَنْ اَضَلُّ سَبِيْلًا ۝٤٢

او ډیر زر به | دوی پوهه شی | څهٔ وخت چه | دوی ووینی | عذاب | چه څوک دے | زیات بے لارے | دَ لارے نه

او هر کله چه دوی عذاب ووینی نو دوی ته به معلومه شی چه څوک دَ لارے نه بے لارے وُو ؟

اَرَءَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰىهُ ؕ اَفَاَنْتَ تَكُوْنُ عَلَيْهِ وَكِيْلًا ۝٤٣

آیا تا لیدلے دے | هغه کس چه | نیولے دے | خپل معبود | خپل خواهش | پس آیا تهٔ | کیږے | په هغهٔ باندې | نګهبان؟

آیا تا هغه سړے لیدلے دے کوم چه خپل خواهش لره خپل خدائے جوړ کړے دے نو آیا تهٔ دَ هغهٔ ذمه اخستے شے؟

اَمْ تَحْسَبُ اَنَّ اَكْثَرَهُمْ يَسْمَعُوْنَ اَوْ يَعْقِلُوْنَ ؕ اِنْ هُمْ اِلَّا كَالْاَنْعَامِ

آیا | تهٔ ګمان کوے | چه اکثر له دوی نه | آوُری | یا دَ عقل نه کار اخلی | نهٔ دی دوی | مګر په شان دَ څارو

آیا ستا دا خیال دے چه په دوی کښے اکثر کسان (سمه خبره) آوُری یا پوهیږی؟ دوی خو دَ څارو په شان دی

بَلْ هُمْ اَضَلُّ سَبِيْلًا ﴿٤٤﴾ اَلَمْ تَرَ اِلٰى رَبِّكَ كَيْفَ مَدَّ

بلکه | دوی | زیات بے لارے دی | دَ لارے نه | آیا تانه دی کتلی | خپل رب طرف ته | چه څنګه | دې اوږد کړو

بلکه دَ څاروو نه زیات بے لارے دی. آیا تۀ دِ خپل رب ته (کارونو ته) نۀ ګورے چه هغۀ څنګه سورے راټول

الظِّلَّ ۚ وَلَوْ شَآءَ لَجَعَلَهٗ سَاكِنًا ۚ ثُمَّ جَعَلْنَا الشَّمْسَ عَلَيْهِ دَلِيْلًا ﴿٤٥﴾

سورے | او که چرے دۀ غوښتلے | نو جوړ کړے به ئے وو دا | ولاړ | بیا مونږ جوړ کړو | نمر | په دے باندې | دلالت کوونکے

کړے دے؟ که هغۀ غوښتلے نو دۀ سورے به ئے په ځائے ولاړ پرے ښودے وو. بیا مونږ نمر په دغه سوري باندې یو ښکاره دلیل کړو

ثُمَّ قَبَضْنٰهُ اِلَيْنَا قَبْضًا يَّسِيْرًا ﴿٤٦﴾ وَهُوَ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ لِبَاسًا

بیا راټول کړو مونږ دا | خپل ځان ته | په رو رو راټولو سره | او هم ذات دے | چا چه | جوړه کړه | تاسو د پاره | شپه | لباس

بیا دا سورے مونږ رو رو خپل طرف ته راټولوو. او الله تعالیٰ هغه ذات دے چه تاسو لره ئے شپه دَ پردے

وَّالنَّوْمَ سُبَاتًا وَّجَعَلَ النَّهَارَ نُشُوْرًا ﴿٤٧﴾ وَهُوَ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ

او خوب | آرام | او جوړه کړه دۀ | ورځ | وخت دَ پورته کیدو | او هم ذات دے | چا چه | راولیږلے

څیز او خوب دَ آرام ذریعه او ورځ ئے دَ ګرځیدو راګرځیدو دَ پاره جوړه کړه. او الله تعالیٰ هغه ذات دے چه هواګانے

الرِّيٰحَ بُشْرًۢا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهٖ ۚ وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ

هواګانے | زیرے ورکوونکی | وړاندې | دَ خپل رحمت (باران) نه | او رابښکته کړے مونږ | له آسمان نه

دَ خپل رحمت (یعنی باران) نه وړاندِ دَ زیری په طور لیږی. او مونږ دَ آسمان نه پاکیزه اوبۀ

مَآءً طَهُوْرًا ﴿٤٨﴾ لِّنُحْيِۦَ بِهٖ بَلْدَةً مَّيْتًا وَّنُسْقِيَهٗ مِمَّا خَلَقْنَآ

اوبۀ | پاکے | دَ پاره دَدے چه مونږ ژوندی کړو | په دے سره | ښار | مړ | او مونږ ئے څښوو دا | هغه څۀ نه چه پیدا کړل مونږ

راوروُو، چه دَ دے په ذریعه یو مړ شوے ښار بیا راژوندے کړو او دَ خپل پیدا کړی مخلوق نه ډیر څاروی

اَنْعَامًا وَّاَنَاسِيَّ كَثِيْرًا ﴿٤٩﴾ وَلَقَدْ صَرَّفْنٰهُ بَيْنَهُمْ لِيَذَّكَّرُوْا ۖ

څاروی | او انسانان | ډیر | او بیشکه | په رنګ رنګ بیان کړو مونږ دا | دَ دوی په مینځ کښے | چه دوی غور وکړی

او بنیادم پرے خړوب کړو، او مونږ دا (اوبۀ) په دوی کښے په مختلفو طریقو سره تقسیمو چه دوی غور وکړی

فَاَبٰٓى اَكْثَرُ النَّاسِ اِلَّا كُفُوْرًا ﴿٥٠﴾ وَلَوْ شِئْنَا لَبَعَثْنَا فِيْ كُلِّ قَرْيَةٍ

پس ونۀ منلو | اکثرو خلقو | سیوا | دَ ناشکرئ نه | او که چرے غوښتلے مونږ | نو مونږ به لیږلے وو | په هر کلی کښے

خو بیا هم اکثر خلق دَ ناشکرئ کولو نه بغیر نۀ پاتے کیږی، او که مونږ غوښتلے نو په هر یو کلی کښے به مو یو یو

نَّذِيْرًا ﴿٥١﴾ فَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ وَجَاهِدْهُمْ بِهٖ جِهَادًا كَبِيْرًا ﴿٥٢﴾

ویروونکے | پس تۀ خبره مۀ منه | دَ کافرانو | او جهاد د که دَ دوی سره | په دے سره | جهاد | لوئے

ویروُنکے لیږلے وو، نو تۀ دَ کافرانو خلقو خبره هیچرے مۀ منه او دَ قرآن په ذریعه هغوئ سره ښه کلکه مقابله

وَهُوَ الَّذِيْ مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ هٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ وَّهٰذَا مِلْحٌ اُجَاجٌ

او هم ذات دے | چا چه | یو ځائے کړل | دوه دریابونه | دا (یو) | خوږ دے | تنده ماتوونکے | او دا | مالګین | تریخ دے

کوه. او الله هغه ذات دے چه دوه دریابونه ئے یو ځائے وُچلول چه یو خوږ دے تنده وژونی او بل مالګین تریخ دے

وَجَعَلَ بَيْنَهُمَا بَرْزَخًا وَّحِجْرًا مَّحْجُوْرًا ﴿۵۳﴾ وَهُوَ الَّذِیْ خَلَقَ

او جوړه کړله | دَ دواړو په مینځ کښې | یوه پرده | او بند | مضبوط | او هم دے دے | چا چه | پیدا کړو

دَ دواړو تر مینځه ئے یوه پرده او یو مضبوط بند پیدا کړے دے. او الله تعالیٰ هغه ذات دے چه دَ اوبو

مِنَ الْمَآءِ بَشَرًا فَجَعَلَهٗ نَسَبًا وَّصِهْرًا ؕ وَكَانَ رَبُّكَ قَدِیْرًا ﴿۵۴﴾

له اوبو نه | انسان | بیائے جوړ کړو دے | خاندان | او سخرګنئ والا | او دے | رب ستا | لوئے قدرت والا

(دَ څاڅکی) نه ئے انسان پیدا کړو بیائے هغه دَ ځپلے کورنئ او دَ سخرګنئ خاوند کړو او ستا رب (په هر څه) قادر دے

وَیَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا یَنْفَعُهُمْ وَلَا یَضُرُّهُمْ ؕ وَكَانَ

او دوی عبادت کوی | سیوا دَ الله نه | دَ هغه څه | چه نهٔ نفع ورکوی دوئ ته | او نهٔ نقصان ورکوی دوئ ته | او دے

او دوئ دَ الله تعالیٰ نه سیوا دَ هغه چا عبادت کوی چه نهٔ ورته نفع رسولے شی او نهٔ زیان ، او کافر خو

الْكَافِرُ عَلٰى رَبِّهٖ ظَهِیْرًا ﴿۵۵﴾ وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا مُبَشِّرًا وَّنَذِیْرًا ﴿۵۶﴾

کافر | په مخالفت دَ رب خپل | پشتی ورکوونکے | او نهٔ یئے رالیږلے مونږ ته | مګر | زیرے ورکوونکے | او ویروونکے.

هسے هم دَ خپل رب قدرتونو ته ئے شا کړے ده. او مونږ خو ته بس خوشخبری رسوونکے او ویروونکے لیږلے یئ.

قُلْ مَآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَیْهِ مِنْ اَجْرٍ اِلَّا مَنْ شَآءَ اَنْ یَّتَّخِذَ اِلٰى رَبِّهٖ

ووایه | نهٔ غواړم زهٔ له تاسو نه | په دے (تبلیغ) | څهٔ اجر | مګر | څوک چه غواړی | چه اختیار کړی | خپل رب طرف ته

ته ووایه زهٔ له تاسو نه دَ دے هدایت څهٔ اجر خو نهٔ غواړم مګر صرف دا چه څوک غواړی، هغه دِ خپل رب طرف ته

سَبِیْلًا ﴿۵۷﴾ وَتَوَكَّلْ عَلَى الْحَیِّ الَّذِیْ لَا یَمُوْتُ وَسَبِّحْ بِحَمْدِهٖ ؕ

لاره | او توکل وکړه | په هغه ژوندی ذات چه | هیڅ کله نهٔ مری | او پاکی بیان کړه | دَ دهٔ په تعریف سره

لاره ونیسی، او ته په هغے تل ژوندی (خدائے) باندِ باور لره چه هیچرے نهٔ مری او دَ هغهٔ په تعریف کښے تسبیح

وَكَفٰى بِهٖ بِذُنُوْبِ عِبَادِهٖ خَبِیْرًا ﴿۵۸﴾ ۚ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ

او کافی دے دے | په ګناهونو | دَ بندګانو خپلو | خبردار | کوم چه | پیدا کړل | آسمانونه

وله او هغه دَ خپلو بندګانو دَ ګناه نه بنهٔ باخبره دے. (الله) هغه ذات دے چه آسمانونه او زمکه او مینځ

وَالْاَرْضَ وَمَا بَیْنَهُمَا فِیْ سِتَّةِ اَیَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ ۚ

او زمکه | او هغه څه چه | په مینځ دَ دوی کښے دی | په شپږو | ورځو کښے | بیا قائم شو | په عرش

تر مینځ څیزونه ئے په شپږو ورځو کښے راپیدا کړل ، بیا هغه په عرش باند قائم شو.

اَلرَّحْمٰنُ فَسْـَٔلْ بِهٖ خَبِیْرًا ﴿۵۹﴾ وَاِذَا قِیْلَ لَهُمُ اسْجُدُوْا

دے بخښونکے دے | پس پوښتنه وکړه | دَ دے په حقله | له خبردار نه | او هر کله چه وویلے شی | دوی ته | چه سجده وکړئ

هم هغه رحمٰن دے پس دَ هغهٔ په حقله دَ چا باخبره نه پوښتنه وکړه او هر کله چه دوئ ته وویلے شی چه تاسو رحمٰن ته

لِلرَّحْمٰنِ ج قَالُوْا وَمَا الرَّحْمٰنُ ق اَنَسْجُدُ لِمَا تَاْمُرُنَا

رحمٰن ته | نو دوی وائی | او څهٔ دے رحمٰن ؟ | آیا مونږ سجده وکړو | هغه څیز ته چه ته ئے مونږ ته حکم کوے

سجده وکړئ نو دوئ وائی چه رحمٰن څوک دے ؟ آیا مونږ به هغه چا ته سجده کوو چه (دَ چا په حقله ته) راته حکم راکوے

وَزَادَهُمْ نُفُوْرًا ﴿٦٠﴾ السجدة تَبٰرَكَ الَّذِیْ جَعَلَ فِی السَّمَآءِ بُرُوْجًا وَّجَعَلَ

او دې نه زیاتي شي دَدوی نفرت | بابرکته دے | هغه ذات | چه جوړے کړل | په آسمان کښې | برجونه | او جوړه ئې کړله

او دوی په نفرت کښې نور زیات وړاندې شي، مبارک دے هغه ذات چا چه آسمانونو کښې ستوري جوړ کړل او په هغې کښې ئې

فِیْهَا سِرٰجًا وَّقَمَرًا مُّنِیْرًا ﴿٦١﴾ وَهُوَ الَّذِیْ جَعَلَ الَّیْلَ وَالنَّهَارَ

په دے کښې | ډیوه | او سپوږمۍ | روښانه | او دے | هغه ذات دے | چه جوړ ئې کړله | شپه | او ورځ

یوه لویه ډیوه (نمر) او روښانه سپوږمۍ جوړه کړه۔ او هم هغه ذات (الله) دے چه شپه او ورځ ئې پیدا کړل

خِلْفَةً لِّمَنْ اَرَادَ اَنْ یَّذَّكَّرَ اَوْ اَرَادَ شُكُوْرًا ﴿٦٢﴾ وَعِبَادُ الرَّحْمٰنِ

دَیو بل نه وروستو | دَ پاره دَهغه چا چه غواړي | چه هغه غور وکړي | یا غواړي | شکرگزار جوړیدل | او بندګان | دَ رحمن

پسے او بدلېدونکي (د یو بل پسې راتلونکې) دَ هغه چا دَ پاره دي چه نصیحت حاصلول غواړي یا شکر ادا کول غواړي، او دَ الله تعالیٰ

الَّذِیْنَ یَمْشُوْنَ عَلَی الْاَرْضِ هَوْنًا وَّاِذَا خَاطَبَهُمُ الْجٰهِلُوْنَ

هغه دي چه | روان وي | په زمکه | په قلاره | او هر کله چه خبره کوي دَ دوی سره | ناپوه خلق

(رښتینی) بندګان خو هغه دي چه په عاجزۍ سره په زمکه ګرځي، او چه جاهلان ورسره خبرے کوي

قَالُوْا سَلٰمًا ﴿٦٣﴾ وَالَّذِیْنَ یَبِیْتُوْنَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَّقِیَامًا ﴿٦٤﴾

نو دوی وائي | سلام دے | او کوم خلق چه | شپې تیروي | دَ خپل رب دَ پاره | په سجده | او قیام کښې

نو دوی وائي چه زما سلام دے۔ او څوک چه شپه خپل رب ته په سجده او په قیام تیروي

وَالَّذِیْنَ یَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اصْرِفْ عَنَّا عَذَابَ جَهَنَّمَ ۖ اِنَّ عَذَابَهَا

او کوم خلق چه | وائي | اے زمارَبه! | لرے ؤساته | له مونږ نه | عذاب | دَ دوزخ | بیشکه عذاب دَ دے

او څوک چه دا دُعا غواړي چه اے زمونږه ربه! دَ دوزخ عذاب مونږ نه لرے ؤساته، بیشکه چه دَ هغه

كَانَ غَرَامًا ﴿٦٥﴾ ۖ اِنَّهَا سَآءَتْ مُسْتَقَرًّا وَّمُقَامًا ﴿٦٦﴾ وَالَّذِیْنَ اِذَآ اَنْفَقُوْا

لوئے مصیبت دے | بیشکه هغه | ډیره بده ده | تیکاو تره | او مقام | او هغه خلق | هر کله چه | خرڅ کوي

عذاب سمه تباهي ده، هغه یقیناً ډیره خرابه تیکاؤ نره او خراب ځائے دے۔ او هغه خلق چه څه وخت خرڅ کوي

لَمْ یُسْرِفُوْا وَلَمْ یَقْتُرُوْا وَكَانَ بَیْنَ ذٰلِكَ قَوَامًا ﴿٦٧﴾ وَالَّذِیْنَ

نو نه فضول خرچي کوي | او نه | تنګي کوي | او وي | په مینځ دَ دے کښې | اعتدال | او کوم خلق چه

نو نه خو مال بے ځایه الوزوي او نه شومتیا کوي او دَ هغوئ خرڅ په اعتدال سره وي۔ او دا هغه خلق دي

لَا یَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ وَلَا یَقْتُلُوْنَ النَّفْسَ الَّتِیْ حَرَّمَ

نه بلي | الله سره | بل معبود | او نه وژني | هغه نفس | کوم چه | حرام کړے دے

چه دَ الله تعالیٰ سره بل څوک معبود نه بلي او دَ کوم نفس وژل چه الله تعالیٰ حرام کړي دي

اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا یَزْنُوْنَ ۚ وَمَنْ یَّفْعَلْ ذٰلِكَ یَلْقَ

الله | مګر | په حقه | او نه هغه زنا کوي | او څوک چه | کوي | دا سے کار | نو بیا به مومي

هغه نه وژني مګر په حقه او هغوئ زنا نه کوي، او څوک چه دا سے وکړي نو دَ ګناه سزا به

وَيُخْلُدْ فِيهِۦ مُهَانًا ﴿٦٩﴾ يُضٰعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

د قیامت په ورځ به د هغهٔ عذاب زیاتیږي، او هغه به په کښې همیشه خوار ذلیل ...

إِلَّا مَنْ تَابَ وَاٰمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صٰلِحًا فَأُولٰٓئِكَ

مګر څوک چه توبه وباسي او ایمان راوړي او د نیکئ کارونه کوي نو داسے خلقوله

يُبَدِّلُ اللّٰهُ سَيِّاٰتِهِمْ حَسَنٰتٍ ۗ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿٧٠﴾

... الله تعالی د بدئ په ځائے نیکئ ورکړي او الله تعالی بخښونکے مهربان دے.

وَمَنْ تَابَ وَعَمِلَ صٰلِحًا فَإِنَّهُ يَتُوبُ إِلَى اللّٰهِ مَتَابًا ﴿٧١﴾

او څوک چه توبه وباسي او د نیکئ کارونه کوي نو هغه خاص د الله تعالی اړخ ته رجوع کوي.

وَالَّذِينَ لَا يَشْهَدُونَ الزُّورَ ۙ وَإِذَا مَرُّوا بِاللَّغْوِ مَرُّوا كِرَامًا ﴿٧٢﴾

او هغه خلق چه دروغ ګواهي نهٔ ورکوي او هرکله چه په بې فضول مجلس باندې تیریږي نو په شریفانه

وَالَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ لَمْ يَخِرُّوا عَلَيْهَا صُمًّا وَّعُمْيَانًا ﴿٧٣﴾

انداز سره تیریږي، او هغوئ داسے خلق دي چه څهٔ وخت ورته د خپل رب د آیتونو په ذریعه نصیحت کیږي نو هغوئ

وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا هَبْ لَنَا

... او هغوئ داسے خلق دي چه داډعا کوي چه اے زمونږه ربه! مونږ ته د

مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيّٰتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ وَّاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا ﴿٧٤﴾

خپلو ښځو او د خپل اولاد د طرف نه د سترګو یخوالے راوبخښه او مونږ د پرهیزګارانو مشران کړه!

أُولٰٓئِكَ يُجْزَوْنَ الْغُرْفَةَ بِمَا صَبَرُوا وَيُلَقَّوْنَ فِيهَا

همدے خلقو ته به (په جنت کښے) بالاخانے ورکولے شي ځکه چه دوي صبر وکړو او هلته به پرے دعا او سلام

تَحِيَّةً وَّسَلٰمًا ﴿٧٥﴾ خٰلِدِينَ فِيهَا ۚ حَسُنَتْ مُسْتَقَرًّا وَّمُقَامًا ﴿٧٦﴾

... شي، چه همیشه به په کښے اوسیږي ځکه ښهٔ ځائے د هستوګنے د ه او ښه مقام د ے

قُلْ مَا يَعْبَؤُا بِكُمْ رَبِّيْ لَوْلَا دُعَآؤُكُمْ

وُوایه | پرواه نهٔ کوی | ستاسو | زما رب | کهٔ چرے نهٔ وی عبادت ستاسو

(اے پیغمبره!) تهٔ ورته ووایه چه زما رب به ستاسو یوه ذره قدرله پرواه هم ونهٔ کړی کهٔ تاسو عبادت نهٔ کوئ

فَقَدْ كَذَّبْتُمْ فَسَوْفَ يَكُوْنُ لِزَامًا ﴿٧٧﴾

پس بیشکه دروغ وګڼړل تاسو | پس زر دے چه وی به | (سزا) لازمه

پس تاسو د هغهٔ حکمونه دروغ وګڼړل نو اوس به د دے سزا لازمی وی

سُوْرَةُ الشُّعَرَآءِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مِائَتَانِ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَسَبْعٌ وَّعِشْرُوْنَ اٰيَةً وَّاَحَدَ عَشَرَ رُكُوْعًا

سورة شعراء په مکه کښے نازل شو په | (شروع) د الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | دے کښے ٢٢٧ اٰیتونه او ١١ رکوع کانړی

شروع کوم په نوم د الله چه لوئے مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے

طٰسٓمّٓ ﴿١﴾ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ﴿٢﴾ لَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ

طٰسٓمّٓ | دا | آیتونه دی | د کتاب | روښانه | شاید ته ۴ | هلاکوونکے یې | خپل ځان

ط، سین، میم - دا د یو واضح کتاب آیتونه دی ، دا سے ښکاری چه ته به د دے خلقو په

اَلَّا يَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ ﴿٣﴾ اِنْ نَّشَاْ نُنَزِّلْ عَلَيْهِمْ مِّنَ السَّمَآءِ اٰيَةً

چه دوی ایمان نهٔ راوړی | کهٔ چرے وغواړو موږ | نو نازل به کړو | په دوی باندے | له آسمان نه | څهٔ نخښه

نهٔ مسلمانیدو پسے خپل ژوند بائیلے - کهٔ موږ وغواړو نو په دوئ به د آسمان نه یوه لویه نخښه راکوزه کړو

فَظَلَّتْ اَعْنَاقُهُمْ لَهَا خٰضِعِيْنَ ﴿٤﴾ وَمَا يَاْتِيْهِمْ مِّنْ ذِكْرٍ

پس شی به | څټونه د دوی | هغے ته | ټیټ | او نهٔ | راځی دوی ته | څهٔ نصیحت

نو د دوئ څټونه به ورته ټیټ شی ، او دوئ ته د رحمٰن خدائے له غاړے

مِّنَ الرَّحْمٰنِ مُحْدَثٍ اِلَّا كَانُوْا عَنْهُ مُعْرِضِيْنَ ﴿٥﴾ فَقَدْ كَذَّبُوْا

د (الله) رحمٰن د طرف نه | نوے | مګر | وی دوی | له هغے نه | مخ ګرځوونکی | پس بیشکه دوی دروغ وګڼړل

نه هیچرے دا سے یو نوے نصیحت نهٔ دے راغلے چه دوئ ترے نه مخونه نهٔ وی اړولی - نو دوئ خو (قرآن)

فَسَيَاْتِيْهِمْ اَنْۢبٰٓؤُا مَا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿٦﴾ اَوَلَمْ يَرَوْا

نو زر به راشی دوی ته | خبرونه | د هغے خبرے | کومے پورے چه دوی | خندا ملکانے کولے | آیا نهٔ دی کتلی دوی

دروغ وګڼړلو خو ډیر زر به ورته د هغے خبرو اصلیت مخے ته راشی چه دوی به ورپورے خندا ملکانے کولے، آیا دوئ

اِلَى الْاَرْضِ كَمْ اَنْۢبَتْنَا فِيْهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍ كَرِيْمٍ ﴿٧﴾ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ

زمکے طرف ته | چه څومره موږ توکولی دی | په دے کښے | هر قسم څیزونه | ښهٔ | بیشکه په دے کښے

زمکے ته نهٔ ګوری چه موږ په کښے څومره ښهٔ ښهٔ بوټی راز راز غون کړی دی؟ یقیناً په دے کښے (خلقو د

لَاٰيَةً ۚ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿٨﴾ وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿٩﴾

نخښه ده | او نهٔ دی | اکثر په دوی کښے | ایمان راوړونکی | او بیشکه | ستا رب | هغه ډیر غالب | مهربان دے

پاره) نخښه ده او په دے خلقو کښے اکثر کسان ایمان نهٔ راوړی او بیشکه چه ستا رب غالب مهربان دے